# وروستی جګړه



لیکوال: نسیم حجازي

ژباړن: محمد زبیر شفیقي

## اهداء:

خپل درانه او مظلوم اولس ته چې د وخت د توپانونو په څپو کې د بت پال او بت پلور نه بلکې یوه بت ماتوونکي لارښود ته سترګې پر لار دی.

«شفیقی»

# ((وروستۍ جګړه)) په څلورم خپرني پړاو کې

د اروانباد نسیم حجازي د شهکاراثارو پښتو ژباړو چې په اولس کې څومره دروند هر کلی وشو دا په ربښتیا چې زما لـه ا ټکل او تصور نه لوړ دی، ځکه خو زه د دې هر کلي په هر پړاو کې ځان د خپل درانه اولس د ځوان او لوستونکي پاړ کې د احسان پوروړی بولم.

زه اوس پـر دې ښـه ډاډه یـم چـې د دې تلپـاتي اثـارو درنـو لوستونکیو زړونه له دغه ناولونو سره داسې غوټه شوي دي لکـه زمـا چې دی، لکه زه چې د دې ژباړو نه پرته په روزګار تنګ شم دوی یې لـه لوستلو مخ نشي اړولای او دا نو د یوه لیکوال او یا زمـا پـه څېـر ژبـاړن د هیلو هغه تر ټولو لوړه او ستره هیله ده.

زه د دې تـاوده هـر کلـي پـه لـړ کـې د اروانبـاد نسـیم حجـازي د ((وروستۍ جګړه)) د څلورم ځل خپرېدو په اړه د دې اثارو مینه والو تـه مبارکي وایم، نه غواړم چې په هر ځل خپرېدو خامخا ځانګړې لیکنـه پـرې بـار کـړم او د سریزو او اضـافي لیکنـو بـوج پـر لوسـتونکیو ور واچوم، خو ځان پـر دې اړ احساسوم چې بایـد پـر دې تللې لاره خپـل شتون ثابت کړم.

موږ چې کومو توپانونو پر اوږو ورسره اخیسـتي یـو د هیچا هـم سبا ته تمه نشته چې کومه زورورة څپه بـه یـې چېرتـه یوسـي او پـر کـوم چول او بیابان به یې غورځوي! سره له دې چې د وخت نـاخوالو لـه مانـه

هم د پرون شیمه او روغتیا دواړه اخیستي دي او د نویو سرگردانیو گردابونو ته يې ورټیل وهلی یم، خو درنو لوستونکیو ته بیا هم داډ ورکوم چې زه به دې لړۍ ته د ژوند تر پایه دوام ورکوم او همدغه لاره به تر پایه پالم. له ستر پالونکي څخه پر خپله دغه ژمنه د پاتې کېدو بری غواړم، همدغسې دعا کوم چې الله تعالی دې زما د اولس هر زلمی او پېغله د اروانباد نسیم حجازي د تاریخي ناولونو د لانو په څېر درانه او سپېڅلي کړي چې سبا ته نور حجازیان قلمونه را واخلي او د دوی د سپېڅلو ارمانونو او کرکټرونو حماسې او له برمه ډک داستانونه وکاږي

په پای کې د دې لړۍ د خپرندوی، «میوند خپرندیې ټولنې» مشر درانه محمد عمر جان ته اوږد ژوند او سوکالي غواړم چې د هېواد د فرهنگي بن په ښکلا او سمسورتیا کې بوخت وي

په درنښت

محمد زبیر شفیقي

# د نوي دوران مشعلدار

هغوی ناپوهان وو او پر خپله ناپوهی یې ویاړ کاوه، ددوي ماضي تاریخ تر قومي جګړو پورې محدود ؤ او ددوی پرمخکې د همدغو جګړولمه دوام پرته هیڅ راتلونکې نه وه. چا یې چې د ظلم کولو توان نه درلود دظلم په زغملو اوسهلو به مجبوریدل خو چې اسلام راغی همدغه خلك د یوه نوي دوران مشعلداران وګرځیدل.

د کایناتو جوړوونکي د خپل رحمت د رانازولو لپاره یوه بې اوبو او وښو سارا غوره کړه. د عربو له تیارو نه د نور یو سیلاب راپورته شو او مختلف قومونه او قبیلې یې په خپله غیږه کې راواخستل او په ټوله نړۍ خپور شو

اسلام په سوځیدونکې سارا کې یوه یخه او خوږه چینه وه او د خدای مخلوق یې تږی. نړۍ د جهالت په تیاره کې سرګردانه وه. او اسلام د یوه نوي سهار لمر ؤ. انسانیت د ظلم او استبداده لاسه ځپل شوی ؤ او اسلام ورته د عدل او برابری پیغام راوړی ؤ.

د بدر او حنین په جګړو کې د اسلام د زامنو لومړنۍ بریاوې اصلاً د پیړیو د ځپل شوي او تر پښو لاندې شوي انسانیت بریاوې وې، کومو مورخینو چې د روم او کسرا د امپراتوریو جلال او دبدبه لیدلې وه اوس یې هغه د پوزې خاوندان لیدل چې د نړۍ د اولسونو د برخلیك پریکړې یې کولې چې خپلې شلیدلې چپنې به یې پخپله پیوند کولې.

د وخت فرعونان د خدای او د هغه د بنده ګانو ترمنځ د یوه اوچت دیوال په څیر ولاړ وو. چې کوم وخت دغه دیوالونه راوغورځیدل نو د ګاونډیو هیوادونو اوسیدونکیو ولیدل چې د عربو سارایان ددوی

دښمنان نه، بلکې دوستان او ساتونکي دي. ځکه خو هغه خلك چې د نژادي او قومي تعصبونو پر بنسټ يو وخت د اسلام پر خلاف ولاړ وو اوس د کفر او اسلام په جګړو کې د عربو سره اوږه په اوږه جنګيدل.

د راشده خلافت دوره د اسلامي حکومت دنظام يوه مثالي دوره وه. خو تر هغو وروسته چې دخلافت ځاى ملوکيت ونيو. نو داسلامي حکومت تدريجي زوال پيل شو، د حکومت په دفترونو کې اسلام د ژوند د بشپړ قانون په حيث مسلط پاتې نه شو. ځينې وختونه لا داسې هم وو چې پر اقتدار سپاره پاړکي برالا د الهي احکامو څخه سرغړونه کړې ده.

خو د زوال په دې دوره کې هم کله کله د اسلام د لومړيو وختونو د مثالي نظام څرکونه ليدل شوي دي.

د لومړۍ پيړۍ مسلمانانو چې د انساني خويونو او کړو وړو کومې نمونې وړاندې کړې وې. د هغو تصور په مختلفو دورو کې د سپيڅلي ملت کاروان سالارانو ته د برې او لوړتيا لارې وربښودلې. چې د هغو تصور پردې هم پردې فکر کولو اړ کړل چې د کوم بڼ د خزان دغه حالت دى پسرلى به يې څنګه وي؟

د عامو مسلمانانو په زړونو په مختلفو وختونو کې ددغه مثالي دوران لوري ته دورګرځيدو جذبې راپيدا کيدلې. که دوي کوم ښه واکمن او لارښود موندلی، نو دوی د ختيځ او لويديځ د سياليو په ميدانونو کې يو ځل بيا د تيرو وختونو يادونه تازه کړي دی، کله ددوی آذانونه د فرغانې په درو کې کړنګيدلي دي او کلهٔ يې د اقبال جنډې د اندلس په سمسورو درو کې رپيدلې.

*****

د اموي واکمنو له زوال وروسته د حکومت واکې د عباسيانو لاس ته ورغلې چې له دې سره د ملوکيت له خرابيو سره د عجمي خيالونو بدۍ هم ورګډې شوې چې د قبيلوي او قوم پالنې احساس په نوي توندۍ راپورته شو، ددين هغه رشته چې دنړۍ د ګوټ ګوټ خلك يې

یو له بل سره ترلي وو کمزورې شوه او عباسي خلیفه ګانو لرې لرې هیوادونه له مرکز سره ترلي ونه ساتلای شوای.

په ۱۳۸ هـ سپوږمیز کال عبدالرحمن الداخل په هسپانیه کې د اموي کورنۍ د آزادې واکمنۍ بنسټ کیښود. له هغه نه څو کاله وروسته د علوي کورنۍ یوه تن ادریس په مراکش کې خپلواکي اعلان کړه.

نژدې په همدې زمانه کې تونس هم د عباسي خلافت نه بیل شو، درېیمې هجري پیړۍ په پیل کې محمد بن زیاد خپل حکومت جوړ کړ، د همدې پیړۍ په نیمایي کې دمصر والي احمد ابن طولون د عباسي واکمنۍ پر خلاف بغاوت وکړ، او مصر هم بیل شو، په ۳۵۸ هجري کې په مصر کې د فاطمیانو حکومت جوړ شو او هغوی د څو کلونو په اوږدو کې پر شام هم خپل تسلط ټینګ کړ.

د زوال په دې دوره کې په فارس، خراسان اوشمال هیوادونو هم د عباسي خلافت واك هسې په نامه و. د هغو هیوادونو ولایتونه د څو کورنیو میراث جوړ شوي و.

د بني عباس د لوړتیا په زمانه کې د عربو پر ځای ایراني امیرانو قبضه لګیدلې وه. خو د زوال په وخت کې د ایرانیانو ځای ترکي امیرانو ونیو.

په څلورمه پیړۍ کې د هر هیواد والي خپلواك پاچا و او د حکومت مینې نوي د قدرت مینه وال رامنځته کړل، عباسي خلیفه ګان د بې وسه تندارچیانو په څیر وو چې د حکومت د پخوانیو او نویو دعوه دارانو زور ازمویل یې لیدل، چې کوم یو به بریالی شو ددوی تش په نامه سرپرستي به یې ومنله او هغوی ته به یې یونیم لقب وروباخښه.

ساماني کورنۍ چې د مامون الرشید د خلافت په پیل کې راپورته شوه، درېیمې پیړۍ تر نیمایي پورې د یوه ستر حکومت په جوړولو بریالۍ شوه چې له خراسان څخه تر کاشغر، خوارزم او طبرستان پورې غځیدلې وه. عباسي خلیفه ګانو چې نیکونو یې سامانیانو ته د

خراسان امارت وربخښلې وه اوس ددې کورنۍ سرپرست او پالونکي نه وو. بلکې مجبور او بې وسه دعاکوونکي شوي وو.

د څلورمې پیړۍ په نیمایي کې ددې امپراتورۍ زوال پیل شو چې د پیړۍ تر پایه ساماني شاهان د تیر وخت په داستان بدل شوي وو.

بیا دغه امپراتوري د واکمنۍ د نویو دعوه دارانو ترمنځ د سیالۍ ډګر شوه. خو دغزني له درونه هغه ستر شخصیت راښکاره شو چې د هغه د سترځواك په مخکې دهغوقسمت ازمویونکوحوصلې سړې شوې

په کومو فضا کې چې کارګانو الوتنې کولې هلته یو شاهین راښکاره شو، په کومو ښکارځایونو کې چې لیوانو او ګیدړانو کرېږې وهلې هلته د یوه زمري ناره اوچته شوه.

د محمود غزنوي راښکاریدل د سمندر د راپورته شوې څپې په څیر وه چې د لارې نورې څپې یې ورسره واخیستې. دې یو داسې فاتح وه چې د توري شرنګ یې کله په ترکستان او کله د هندوستان په میدانونو کې اوریدل کیده او آس به یې کله پر آمو او کله په ګنګا اوبه څښلې.

دی د ژوند د واټ د هغو مساپرو له ډلې څخه وه چې پر کوم منزل داوسیدو پر ځای د نور وړاندې تلو اراده ورسره وي او د پرمختګ ذوق یې کوم سرحد او برید نه مني. غرونه، سیندونه او دښتې دهغه د لارې پړاوونه وو.

غزني چې د الپتګین له زمانې څخه یې معمولي شهرت درلود د محمود د بریو له امله د منځنۍ آسیا ددغه سترې امپراتورۍ په پلازمینه بدل شو چې تر خراسان، کرمان، سیستان، مکران، طبرستان، آذربایجان، خوارزم او فرغانې پورې غځیدلې وه.

د شمالي ریاستونو فتحو محمود د تاریخ د سترو فاتحانو په کتار کې ودراوه، خو زموږ داستان د محمود غزنوي له هغو فتحو سره تړلې دی چې په هندوستان کې د یوه نوي دوران پیلیزه شو.

ظاهراً له ده سره د نړۍ په ګوټ ګوټ کې د بریاوو د بیرغونو له رپولو پرته کوم بل هدف نه وه خو په هند کې تقدیر دی ددې نه د ډیر ستر او لوړ هدف د لارو خلاصولو لپاره غوره کړی وه.

تقدیر چې د خزان ځپلي چمن د وچو پاڼو د جارو کولو او د پسرلي د نویو غوټیو راشنه کولو لپاره د ځای پیدا کولو لپاره د یخو او تونډو شمالونو څپې را والوزوي. د سوځېدلیو دښتو د تندې ماتولو لپاره لرې پرتو غرنیو خوړونو ته د کمرونو د تیرونو څیرې کولو ځواک ورکوي؛ دی یې هم د یوه ستر کار د ترسره کولو لپاره غوره کړ.

په هندوستان کې له پېړیو راسې د ژوند د یوې فلسفي حکومت او واکمني وه؛ چې لومړنی هدف یې د لوړ او ټیټ . شریف او ټیټ ذاتي تر منځ توپیر پیدا کول او د هغو ساتل وو.

کله چې د منځنۍ آسیا آریایي فاتحین دې هیواد ته راننوتل. نو دوی د خپلو کلیو آبادولو لپاره حاصلخیزې ځمکې او شنې ورشوګانې غوره کړې او د دې هیواد پخوانیو اوسیدونکو ته یوازې ځنګلونه. وچې دښتې. غرونه او شاړې سیمې پاتې شوې چې آریایي واکمنو هغه نشوای کنترولولی. بیا پر فتحه شویو قومونو د خپلې برلاسۍ د دوام او د هغوي د بیا راپورته کیدو د امکاناتو د مخنیوي لپاره د مذهب په نامه یو داسې ټولنیز نظام راپیدا شو چې مغلوب اولسونه یې د تل لپاره د غلامۍ په زنځیرونو وتړل. د دې ټولنیز نظام ساتونکي د هندو مذهب هغه سپیځلي دیوتاګان وو چې د هغوی له نظره برهمن له هره لحاظه د درناوي او عزت وړ وو او یو ټیټ ذاتي له هره حیثه د کرکې وړ. د لوړ ذاتو هندوانو ډیرو بدو عملونو هم له دوی نه د دوی د میراثي برلاسي او عزت حق نشواي اخیستلای. او د ټیټ ذاتو مزدورانو ډیرو ښو صفتونو او کمالونو د دوی د برخلیک لیک نشو مینځلي.

د هندو ټولنې د قانون په نظر د لوړ ذاتو کومه ګناه چې د بخښلو نه وه؛ نو هغه دا وه چې د ټیټ ذاتو کوم چاته د انسان په سترګه وګورې او د کرکې او نفرت د هغه دیوال نه د اوښتو هڅه وکړي چې د لوړ ذاتو او ټیټ ذاتو تر منځ درول شویدی. د منو جي پیروانو چې کوم مسلك د مذهب په نامه منلی دی د هغو هدف د انسانانو په منځ کې د عدالت او برابرۍ د تصور له منځه وړل وو. د دوی هدف د اخلاقو د ښه اصولو تبلیغ نه و؛ بلکې د لوړ ذاتو انسانانو د کټو ترجماني وه

په هندي ټولنه کې چې ټيټ ذاتي د کرکې وړ برخه شول ددې هيواد د حاصلخيزو ځمکو څخه يې هغوی لاس پر سر کيدو ته اړ کړل، دوي ته تل دا اړتيا نه وه چې له کوم کلي څخه د ټيټ ذاتو دايستلو لپاره توري ته لاس کړي، د ټيټ ذاتو پر اعصابو ددوی تر تورو ددوي د ديوتاګانو د بتانو ويره او رعب ډير زوروز خپور ؤ.

دغه بوتان به چې چيرته درول شوي وو هلته د ټيټ ذاتو د اوسيدلو امکان نه درلود.

د کومو ځاګانو نه چې ددې بوتانو پالونکيو اوبه څښلې هغه به سپيځلي وګرځيدل او د يوه ټيټ ذاتي هغه ته ورنژدې کيدل د مرګ په بيه وو.

په کومو مندرونو (درمسالونو) کې دې بوتانو ته سرودونه ويل کيدلو د هغو شاوخوا لارې پر ټيټ ذاتو بندې وې، بوت پالونکي له خپلو ديوتاګانو سره د سانسکرت په سپيڅلي ژبه خبرې کولې، که به ددغې سپيڅلي ژبي يو لغت هم د ټيټ ذاتو تر غوږو ورسيدو، نو په غوږو کې به يې ويلې شوي سرپ ورځځول. د لوړ ذاتو هندوانو مذهب د ټيټ ذاتو سره په لګيدو او خبرو ناولی کيده. په داسې وضعه کې ټيټ ذاتوله کوم حکم پرته خپلې جونګړې د لوړ ذاتو تر ماڼيو قربانولې.

د پيړيو پيړيو راسې د ظلم په ژرنده کې دل دغه انسانان چې په تاريخ کې بل ساری نه لري يو ټيټ ذاتي يوازې د يوه لوړ ذاتي او برهمن تر نظره سپک نه ؤ، بلکې دوی پخپله هم ځانونه سپک ګڼل، ذوی د ټولنې او کلتور سره د دښمنۍ پر ځاي پردې قناعت کړي ؤ چې د ټولنې د کرکې وړ يوه برخه دي.

د ظالمو او جابرو برهمنانو څخه ددوی کرکه په ويره او ويره ورو ورو د اړتيا په احساساتو بدله شوې وه، دوی له لرې لرې هغو ماڼيو ته سلام کاوه چې ددوی د نيکونو پر جونګړو دريدلې وې او د هغو مندرونو پر سپيڅلتيا او عظمت يې اعتراف کاوه چې د هغو د بوتانو په مخکې برهمنانو د خپلو ګناهونو د اعتراف په کفاره کې د ټيټ ذاتو قرباني وړاندې کوله.

هغه هدف چې د آريايي قوم فاتحانو د هغو لپاره د "منوجی" د ژوند فلسفه ومنله پوره شوی وُ ، د هند ماتو شويو قومونو د بيا راپورته کيدو او يا د خپلو حقوقو د ترلاسه کولو لپاره د مبارزې توان له لاسه ورکړی وُ.

خو د انسانانو ويش تر دې ځايه پورې محدود نه وُ، بلکې پخپله د لوړ ذاتو هندوانو په منځ کې هم د لوړو او ټيټو ويش شوی وُ، برهمن تر ټولو لوړ وو، ځکه خو دهغوی درناوي پر ټولو فرض وُ، هغوی د مذهب اجاره داران وو او په مذهب کې د ديوتاو د عبادت سره دبرهمنانو اطاعت هم فرض وُ، پوځيان دهندو ټولنې ساتونکي وو او برهمنانو د خپلو اسانتياو لپاره دوي ته دا واك ورکړی وُ چې پوځيان د تورې په زور حکومت ګټلی شي.

او برهمنانو به ددوی د مشاورينو په توګه حکومت د خپلې خوښې سره هم چلاوه. د حکومت لومړنی هدف د بريدونو ساتنه وه چې د هغو له مخې لومړی برهمنان او ورپسې د پوځ د برلاسي منل ضروري وو.

د هيواد زيارکښان "ويش" بلل کيدل . دوي د برهمن او کهشتري "پوځيانو" نه وروسته دريمه درجه ګڼل کيدل، ددوي د وينو او خوله په حاصل د کهشتري واکمنو محلونه او د برهمني پيشوايانو مندرونه جوړيدل، خو برهمنو چې کومه نذرانه ترلاسه کوله . هغه د واکمنو له باج نه په څو چنده زياته وه.

حکومتي واکمن د برهمنانو د مندر د خزانو د کولو لپاره مجبور وو چې د خپلو شتمنيو يوه برخه مندرونو ته وقف کړي.

د برهمنانو او حکومت واکمنو غبرګې واکمنۍ زيارکښان سخت ځپلي وو، خو هيچا د ګيلې او آن د زګيروي او فرياد حق نه درلود.

بودايي مذهب ددغه ټولنيز نظام پر خلاف يو بغاوت وُ ، دا يو سيلاب وُ چې څپې يې د هندوستان له يوې څنډې نه تر بلې پورې ورسيدې او تر څه مودې پورې يې هغه لوړ ګړنګونه هم په خپله غيږه کې راونيول چې پرهغو د برهمنو د اقتدار مانۍ دريدلې وې. خو د هغو د مستۍ او جوش له کميدو سره دغه مانۍ بيا راښکاره شوې او

دهندوستان ځمکه یوځل بیا د "منوجی" د پیروانو د ښکار ځاي شو، بودایي مذهب د ښو او بدو کړو وړو په هنداره کې د انسان د توپیر کولو هڅه وکړه چې دا د برهمنو د نژادي برلاسي پر خلاف د جګړې اعلان و، ځکه خو د خپل له لاسه ورکړي مقام د بیرته ترلاسه کولو نه وروسته د بودایي پیروانو لپاره د برهمنانو په لاس کې خنجر تر هغه خنجر څو چنده تیره و چې یو وخت یې د ټیټ ذاتو پرخلاف راپورته کړی و. د دیوتاګانو په ځمکه کې د دیوتاګانو سپیڅلو زامنو ته د عامو انسانانو په څیر د کړو وړو په معیار پر توپیر قایل مذهب ته هیڅ ځای نه و. د بودایي مذهب مسخه شوي صورت ته یې یوازې تر هغه بریده په هندو مذهب کې د جذبیدو اجازه ورکړه چې د لوړ ذاتو د اقتدار لپاره خطرناکه نه وه.

د لومړۍ هجري پیړۍ په وروستیو کې له لسبیلا څخه تر ملتان پورې د محمد بن قاسم بریاوو په دې هیواد کې د رڼا یوه نوې دروازه پرانیستله.

دغه دوره که څه هم د اسلام مثالي دوره نه وه، خو د لومړنۍ دورې ډیرې ځانګړتیاوې یې تراوسه لا درلودې. هغه خلك چې مسلمانان یې خپل دښمنان بلل او د هغوی پر خلاف یې توري اوچتې کړې وې، د هغوی زیاترو اسلام د خپل نجات او خلاصون یوازینۍ لاره وبلله او د اسلام د علمبردارانو له لیکو سره ملګري شول.

د مسلمانانو د اوولس کلن سالار بریاوو د هندوستان په ساره او اوږدو کې پر هغو ماڼیو کې لړزه ګډه کړه چې بنسټونه یې د ټیټ ذاتو او لوړ ذاتو تر منځ پر توپیر ایښودل شوي وو. خو د محمد بن قاسم د بې وخته مرګ له امله دغه وړیځې چې د هندوستان ته د نویو پسرلیو پیغام راوړی و له ملتان څخه وړاندې تیرې نه شوې.

د اموي کورنۍ تر واکمنۍ پورې له مرکز سره د سند لږ او ډیر اړیکې وې، خو دعباسیانو په زمانه کې دغه اړیکې عملاً غوڅې شوې وې، د عباسي خلافت د واکمنۍ له حدودو څخه د وتلو له امله سند د اسلامي نړۍ د تخریبکارانو لپاره د پناه ښه ځای شوی و. هر هغه

خطرناك حركت چې په اسلامي نړۍ كې يې د ودې او پراختيا امكان نه وُ په سند كې به يې پناه اخيسته.

د فتنه پالو او ګډوډي جوړوونكيو هغه ډلې چې عباسي واكمنو يې د ځپلو هڅه كوله ،له څلورو لوريو څخه راوتښتيدل او سند يې دځپلو هڅو مركز كړ.

په سند كې د هندي خيالونو او عجمي انګيرنو له پخوا نه د اسلام نظريات تر ډيره حده مسخه كړي وو. اوس نويو بدعتونو نوره هم دهغه بنه واړوله.

د څلورمې هجري پيړۍ په پاى كې د غزني پر اُفق چې كوم توپان رابښكاريدونكي وُ هغه د تقدير له لوري د هند د نيمې وچې د بې شميره انسانانو د فرياد ځواب وُ.

*****

د ويهند د پاچهي له هندو پاچا سره د مسلمانانو جګړې د سلطان محمود د پلار سبكتګين په وخت كې پيل شوې. د راجه جيپال د واكمنۍ پر وخت دهغه د حكومت سرحدونه له لغمان څخه د چناب تر سينده پورې غځيدلي وو. جيپال پر خپل پوځي ځواك دومره اعتماد درلود چې دشمال پر سرحد د سبكتګين حملو دومره په غوسه كړ چې د غزني د حكومت د تل پايته رسولو اراده يې وكړه اوله يوه لوى لښكر سره يې پر غزني حمله وكړه ، سبكتګين د لغمان او غزني تر منځ د دښمن د پوځ مقابله وكړه، هندوانو پر زړورتيا جګړه وكړه، خو د مسلمانانو د پرلپسې حملو سره د واورو او توپان له امله د دوى حوصلې ماتې شوې.

جيپال دخپل سرحد د څو كليو او كلاګانو او خراج د وركولو په شرطونو سوله وكړه، خو چې بيرته ستون شو او د خپلې واكمنۍ حدودو ته ورننوت له خپلې ژمنې او تعهد نه واوښت او د سبكتګين هغه پوځي سالاران يې ونيول چې د ماليې دترلاسه كولو لپاره دده سره راغلي وو.

سبکتګین ددغې ترون ماتولو په سزا کې پوځ راویوست او د سرحد څو سیمې یې ونیوې.

جې پال د هند د شمال له ډېرو راجه ګانو څخه مرسته وغوښته او له یو لك تنو پوځونو سره یې بیا پر غزني حمله وکړه، خو سبکتګین د لږ پوځ سره د پېښور او لغمان په منځ کې جې پال او د هغه ملاتړ کوونکيو لښکر تیت او پرك کړ.

محمود په دې جګړو کې له خپل پلار سره ګډون کاوه او ده دا اټکل کړې وه چې د غزني اوهندوستان ترمنځ پریکنده جګړې لا پاتې دي.

ده دا لیدلي وو چې په هره نوې جګړه کې د جېپال د پوځ شمیر تر پخوا زیات وي، که همدغسې دهند راجه ګان د جې پال په ملاتړ ډګر ته راووزي، نو یوه ورځ به د غزني پاچاهي دنیمې وچې د بې شمیره پوځ سره مقابله کوي، ځکه خو ترڅو په هند کې دغه بې درکه ډېر ځواکونه وي، نو کوم غر او یا سیند دغزني ددفاع مورچل نشي کیدای.

ځکه خو محمود د خپلې دفاع په خاطر دا ضروري بلله چې هغه خطرناك ځواکونه سره تیت اومات کړي، چې یووالي یې هر وخت نه یوازې غزني، بلکې د شمال اوختیځ ډېرو هیوادونو ته دګواښ سبب وو.

په هندوستان کې د ویهند سیال ډېر نور ریاستونه هم وو او محمود د ویهند له پاچهۍ څخه تر اغیزې لاندې راغلی ؤ او دا ژمنه یې کړې وه چې دی به په کال کې لږ تر لږه یو ځل د دغو پاچهیو د دځواکمنۍ د ړچولو لپاره له کومې یوې سره خامخا ټکر کوي.

د سبکتګین له وفات وروسته چې محمود پر تخت کیناست پر هندوستان یې حملې پیل کړې، په ۳۹۰ هجري کې محمود د لغمان په شاوخوا کې د جې پال د حکومت څو سیمې ونیوې. په راتلونکي کال یې بیا حمله وکړه، جې پال دمحمود د پنځلس زره سپرو په مقابل کې له دیرش زره پلیو، دوولس زره سپرو پوځونو او درې سوه پیلانو سره مخې ته ورغی.

پېښور ته نژدې د محرم په پېنځمه ۳۹۲ هجري کال یوه درنده جګړه پیل شوه.

غرمې ته نژدې د غزني د ترکمنو نیزه وهونکیو د توندو او پرلپسې حملوله امله د جې پال په پوځونو کې ګډوډي راغله او هغوی پنځه زره مړي په ډګر پريښودل او وتښتيدل.

جې پال له خپلو پنځلسو تنو زامنو او لمسيانو سره ژوندي ونيول شو، چې دوه نيم لکه ديناره او پنځوس پيلان يې خپله فديه ادا کړه او ځانونه يې خوشې کړل، خو چې بيرته ويهند ته ورسيدل د پرلپسې ماتونه په تنګ راغی اوځان يې وواژه. دده پرځای يې زوی انند پال پر تخت کيناست، هغه څه موده له سلطان محمود سره سوله ييزې اړيکې وساتلې.

د محمود غزنوي د دغو بريا له امله د هندوستان له يوه سره تر بله پورې د انديښنې څپې خورې شوې، ددغو بريا سره دهغه دين د تبليغ لپاره لارې پرانيستل کيدې چې په هر حيث د هندوييزم ضد و.

د نسل او قوم پالنې د جرړو غوڅونکي دين چې ټول انسانان يې د ورورولۍ او برابرۍ په رشتو تړل چې دا د هندو ټولنې د هغو سپيڅلو ! زامنو په نظر يو ستر خطر و چې د ذات او نسل په توپير کې يې خپلې ګټې ليدې، برهمنان راويښ شوي وو. او دوی ددې خطر د مقابلې لپاره د هندوستان په ساره او اوږدو کې د شهزادګان او نوابان سره متحد کړل. د هندوانو د ځواك اصلي مرکزونه هغه رياستونه وو چې د ستلج، ګنګا او نربدا ترمنځ غځيدلي وو. د راجپال ماتو په دې رياستونو کې يو خوځښت راپيدا کړی و چې دا د محمود غزنوي له شاهيني نظره پټ نه و. له دغو رياستونو سره د زور ازمويلو له پريکړې وروسته دده په مخکې لومړنۍ خبره دا وه چې له خپلې مخې نه بټهنډه رياست پورته کړي

په ۳۵۹ هجري کال محمود ملتان ته نژدې د سند له سينده پورې ووت او د بټهنډه په لور يې مخه وکړه، د بټهنډه واکمن راجه باجي رای دومره پر خپل ځواك باوري و چې په ښار کې د ننه د دفاع پر ځای . بهر ته راووت او مقابله يې وکړه، تر درې ورځو پورې د جګړې

پریکړه ونه شوه. له باجي راى سره دنژدې شاوخوا نه مرستې رارسیدلې او دهندوانو دومره زړه ورتیا محمود پخوا هیڅ نه وه لیدلې.

په څلورمه ورځ د باجي راى د پوځ حملو مسلمانان په هر محاذ شاتګ ته مجبور کړل، خو محمود دوی په غیرت راوستل او پخپله یې آس چارګام وزغلاوه او د دښمن پر لومړیو لیکو یې برید وکړ.

د سرښندویانو ډله د سترګو په رپ کې د خپل امیر پر شاو خوا راټوله شوه، چې له دې سره یې د دښمن لیکې خیرې کړې او دپوځ تر زړه پورې یې ورسیدل.

د محمود دې زړورتیا په ټول پوځ کې نوې ساه پو کړه، د ښي او کیڼ لوري نیزه وهونکیو د دښمن پر ښي او کیڼ اړخ حملې وکړې او. دښمن چې خپل بري ته هیله من شوي و، اوس ډیر ګړندی پر شا روان شو. له لمر لویدو مخکې باجي راى میدان پریښود او په کلا کې را ایسار شوی و.

د بټهنډه کلا خندق دومره سور ور او ژور و، چې کوم حمله راوړونکي ته نیغ پر برجونو حمله کول ګران وو. محمود غزنوي حُکم وکړ چې د خندق یوه برخه په ونو او ډبرو ډکه کړاى شي.

د باجي راي پردې باور شو چې مسلمانان به له خندق نه په راپورې وتلو او پر برج حمله کولو کې ډیر ځنډ ونکړي. ځکه یوه شپه د مایوسي په حالت کې له کلا څخه وتښتید او هڅه یې وکړه چې په یوه ځنګل کې پټ شي، خو د سلطان محمود پوځونو ځنګل کلابند کړ، باجي راى د وسلې غورځولو پر ځاى خپل خنجر پر خپل ټټر ښخ کړ اوځان یې ووژه، د بټهنډه د کلا له نیولو وروسته محمود ددې ریاست لرې لرې سیمې هم ونیوې.

ددې جګړې نه چې وزګار شو. محمود د ملتان په لاره غزني ته راستون شو. د ملتان قرمطي واکمن ابوالفتح داود په هندوستان کې د محمود غزنوي بریاوې ځان ته ډیرې خطرناکې بللې.

د سند سیند د بې وخته بارانونو له امله ډیر مست شوی و. چې له هغو نه په تیریدو د غزنوي پوځ زیات سرتیري اوبو یوړل. پردې

سربیره د ملتان د قرمطي حاکم ابوالفتح داود غیر دوستانه چلن هم د محمود ستونزې نورې هم زیاتې کړې.

په ۳۹۶ هجري کال محمود غزنوي د قرمطیانو[1] سره د حساب کتاب لپاره پر ملتان د یرغل اراده وکړه، خو له انند پال سره چې دده اړیکې دوستانه وې د ملتان د قرمطي حاکم ابوالفتح داود ملاتړ وکړ او هغه محمود ته پېښور ته نژدې اجازه ورنکړه چې له سنده پورې وزي او دده د پرمختګ دمخنیوي لپاره وړاندې ورغی، محمود هغه ته له عبرته ډکه ماته ورکړه او د چناب تر سینده پورې ورپسې ورغی. انند پال له خپل پاتې پوځ سره د کشمیر غرونو ته وتښتید او هلته پټ شو، محمود غزنوي په هغه پسې د ورتلو پرځای ملتان ته مخه وکړه، خو هغه لا د ملتان ځو سرحدي سیمې نیولې وې چې په خراسان کې د الك خان د یرغلونو له امله بیرته راوګرځید. محمود ملتان پېنځه کاله وروسته بشپړ فتحه کړ.

* * *

دا هغه زمانه وه چې دمنځنۍ آسیا په هیوادونو کې لا د محمود واکمني بشپړه نه وه ټینګه شوې او هغه هر کال د یوه نه یوه سالار د ځپلو لپاره نوي محاذ ته تلو. همدغه لامل و، چې هغه په منظم ډول د هندوستان دنیولو کار ته دوام ورنکړای شو. هر کال د شمال د ریاستونو او دهندوستان په لوري دده واکمني پراخوله. خو په همدې پرتله دده ستونزې هم ورسره زیاتیدلې. ددغو دواړو محاذونو ترمنځ ډیر غرونه، دښتې او میدانونه پراته وو او د محمود د پوځي ځواك زیاته برخه په همدغو پراخو سیمو کې تیت او پرك وه، دې به چې د سند له سینده پورې ووت هلته به د جیحون (آمو) پرغاړه کومې فتنې سر را اوچت کړ، ده به چې د پنجاب په میدانونو کې واړول او د ګنګا او جمنا په لور به یې اراده کوله، نوله مکران څخه تر خوارزم پورې به په کوم

---

[1] - قرمطیان یوه انحرافي فرقه وه چې په اسلامي نړۍ کې یې ډېرې فتنې راپیدا کړې دي

ځای کې داسې څه جنجال پېښ شو چې ده به خپل کار نيمګړي پرېښود او بېرته به ستون شو.
د تاريخ يو باب هم د پخو ارادو خاوندانو فاتحانو له يادونو څخه تش نه دی، خو دده په څېر توريالي به ډېر لږ وي چې د ژوند ډېرې ورځې يې داس پر شا په مزلونو کې تېرې شوي وي، د هغه تر مرمرينو ماڼيو د جګړې ميدان ډېر خوښ و.
دده د ګلانو پر تخت له ويدو کېدو نه دا ښه ايسېدل چې پر ګړنګونو تير شي، د غزني دشاهين له دې سره مينه وه چې له هرې ځالې نه لرې وي، تقدير د يوه انسان په بدن کې هغه توکي راټول کړي وو چې تل يې خوځښت خوښاوه.

***

له ملتان څخه تر بيرته راستنيدو وروسته په خراسان کې د محمود غزنوي مصروفيتونو انند پال ته د بيا منظم کيدو وخت ورکړ.
هغه هڅه وکړه چې د مسلمانانو حملې ټولنيز خطر ثابت کړي او دګاونډيو راجه ګانو نه يې مرستې وغوښتې. دا ځل د شمالي هندوستان واکمن د محمود پر خلاف دمتحدې جبهې په جوړولو کې تر پخوا زيات تاؤده شول. ځکه خو يو لوی پوځ د انند پال د زوی برهمن پال تر قومانده لاندې د پيښور په لور خوځيدو ته چمتو شو.
سلطان محمود چې له دې وضعې خبر شو، په ٣٩٩ هجري کال يې له غزني نه حرکت وکړ، او په يوه تراټ ويهند ته نژدې شول. د يوې تونده جګړې نه وروسته هندي پوځونو ميدان پرېښود او وتښتيدل.
سلطان محمود تر کانګړه پورې د انند پال پر ملاتړ کوونکيو پوځونو پسې ورغی او د کانګړې سره يې د نګرکوټ کلا کلابنده کړه.
د دريو ورځو سختې دفاع نه وروسته د کلا اوسيدونکيو همت بايلود او د سلطان پوځ کلا ونيوله. ددې کلا د ننه هغه مشهور درمسال و چې پالونکيو يې نه يوازې له عام اولس. بلکې دشمالي هند له راجه ګانو څخه هم خراج اخيست. د مندر دروازې يې چې

پرانیستي، نو هلته د سرو او سپینو زرو انبارونه پراته وو. د برهمنانو دغه د عیشونو ځای د بې شمیره انسانانو د پیړیو پیړیو ثمر و.
دا د هغو خلکو د زیار او هڅو اجوره وه چې د ټولنې د دیوتاګانو د بوج اوچتولو لپاره پیدا شوي وو. له دې درمسال څخه د اوه سوه ملیونه درهمو په ارځښت سکې او نژدې اوه زره منه سره او سپین زر راووتل. د نګر وټ د مندر د دولت اندازه یوازې له دې خبرې نه کیدای شي چې یوازې دګرانبیه غمیو وزن شل منه و (یو من ۵۰ کیلو ګرامه).
د سلطان محمود د بیرته ستنیدو نه وروسته انند پال خپله پلازمینه نندنه وټاکه، د نمک غرونو په شاوخوا کې یې خپله واکمني ټینګه کړه، خو هغه زر مړ شو او پر ځای یې ترلوچن پال پر تخت کیناست.
سلطان محمود ددې کورنۍ دپاتې واکمنۍ د ختمولو لپاره پر نندنه حمله وکړه، ترلوچن پال چې دسلطان د پرمختګ نه خبر شو، د کلا ساتنه یې خپل زوی بهیم پال ته پرېښوده او پخپله د کشمیرد راجه د مرستې ترلاسه کولو لپاره هغه لوري ته روان شو.
بهیم پال د ننه د کلا لوري ته د غرونو په منځ کې د تنګو لارو د بندولو لپاره دپیلانو کتارونه ودرول. او د سلطان پوځ پر ډیرو ورځو پرلپسې جګړو برسیره کلا ته ورونه رسیدلای شو. په دې موده کې پر کشمیر برسیره په جنوبي هند کې د ډیرو ریاستونو څخه بهیم پال ته پرلپسې مرستې رارسیدلې.
بالآخره بهیم پال له خپلو مورچلو څخه راپورته شو او په پراخ ډګر کې یې د سلطان محمود پر پوځونو برید وکړ. د هغه د پوځونو په مخکې د پیلانو کتارونه وو، خو د محمود په لومړۍ لیکه کې د ترکمنو کروپونه وو چې د هغوي د غیشو په باران کې پیلانو مخونه واړول.
له دې سره د دښمن پر پوځ له هر لوري درنې حملې وشوې او بهیم پال ډیر مړي په میدان پرېښودل او وتښتیدل. [illegible] وروسته محمود د نندنه کلا کلابنده کړه، د جګړې پر ډګر د بهیم [illegible] د ماتې په سبب د کلا د ساتونکو حوصلې ماتې شوې وې، خکه غوی بیله شرطه وسلې وغورځولې.

د ننندنه له فتحې وروسته سلطان محمود د ترلوچن پال لوري ته پام واړاوه چې د هغه په مرسته د کشمير نه نور پوځونه راتلل او د جهلم په شمال درو کې راټوليدل. د کشمير د پوځ سالار د محمود ګزمې يوه ګروپ ته له ماتې ورکولو پر خپل ځواك ډير مغرور کړ، خو د جګړې پر لومړۍ غوټه کې هغه وارخطا شو. هغه بيا خپل پوځ منظم کړ او هڅه يې وکړه چې د حملې راوړونکيو مخې ته يې ودروي، خو هغه خپله ماته پر بري بدله نکړای شوه.

له دې ماتو وروسته د ترلوچن پال وروستۍ د ټيکې ځای په ختيځ پنجاب کې د شوالك غونډۍ وې او ويهند عملاً له منځه تللي و.

***

# دنندنه بندي

دنندنه په کلا کې رنبیر ته دیوه پوځی بندی په حیث سهار او ماښام دیوه بې خونده تسلسل څخه پرته بل هیڅ نه وُ، دبند لومړی شپې ورځې پر هغه ډیرې ترخې او له زغم وتلی وې، تل به یې دتیښتې په اړه فکر کاوه، کله به یې په خیال کې دجنوبی هند د راجه ګانو بې شماره لښکرې دیرغل په حال کې لیدلې، کله به دخوب په حالت کې ده ته دروازې خلاصیدلې اودې به پر آس سپورله جیل څخه په سلګونو میله لرې د ګنګا په غاړه خپل کلي ته ورسید او کله به یې دا په خیال کې ورګرځیدل چې دې په کور وی او همّاغه وختونه وی چې څلور کاله پخوا وو. دهغه دوستان پرې ورټول شوې وې او رنبیرله هغوی سره دغشو ویشتلو او تورې وهلو تمرین کوي. دده پلار د محل په یوه ګوښه کې غلی ولاړ وي او په موسکا ده ته دده د کمالونو او مهارتونو شاباسی وایي.

شکنتلا دده کشری خور په بڼ کې له خپلو نورو همځولیو سره په ښاخونو کې زانګو اچولې وې، خو دحال ترخه حقایق دده د ښایسته خیالونو او رنګینو چورتونو نړی تالا ترغه کړې.

څومره چې وخت تېرېده د رنبیر خفګان او درد په مایوسی او بې پروایی بدلیده ، دیوه بې پایه جېل تصور د ماضی یادونه او د راتلونکی ټول امیدونه لاتدې کړې وو.

رنبیر دقنوج دیوې مخورې کورنی څخه د سردار موهن چند زوی وُ. دقنوج دواکمن راجیه پال په دربار کې دهغه زیات عزت او درناوی وُ. دځوانی په وخت کې دموهن چند دراجیه پال په دربار کې دقدر وړ خدمتونه ترسره کړې وو. کله چې دشمالی برید یوه دنفوذ خاوند خان جی کرشن دګاوند یو راجه ګانو په لمسون دقنوج دواکمن پر خلاف بغاوت وکړ، نو هغه د جی

کرشن دمانولو لپاره موهن چند واستاوه. دموهن چند حمله دومره ناڅاپي وه
چې جې کرشن له ګاونډيو راجه ګانو څخه مرسته ترلاسه نکړای شوه او هغه
دمعمولي مقاومت څخه وروسته دتېښتې لاره ونیوه او دمهابن له راجه سره
يې پناه واخيسته، راجيه پال دهغه ځمکې او شتمنۍ ضبطې کړې او پر خپلو
څو تنو سردارانو يې وويشلې، دهغه دځمکو يوه لويه برخه اود جې کرشن
ماڼۍ د موهن چند برخه شول، په دغه ستره او شانداره ماڼۍ کې د موهن
چند دخوښۍ ورځې لنډې وې، نژدې درې کاله وروسته دهغه میرمن مړه شوه
او څلور کلن زوی رنبیر او شپږ میاشتنۍ لور شکنتلا ترې پاتې شول.
دا دوه اولادونه دموهن چند د آرزوګانو مرکزوو، هغه هیله درلوده چې
رنبیر له راجه څخه وروسته تر ټولو لوی سړی شي او غوښتل يې شکنتلا
دکومې پاچاهۍ ملکه وي.
په اتلس کلنۍ کې رنبیر یو ښکلی زلمی و، دیوه سپاهي عادتونه يې له
پلاره څخه په میراث وړي وو. په زده کړه او تربیه کې ډیرو لږو ځوانانوله ده
سره سيالي کولې شوه، چې کله درنبیر دجنګي کمالاتو اوازې دراجه تر غوږو
ورسیدې نو راوېې وغوښت او دماڼۍ دساتونکي ډلې افسر يې وټاکه.
دخپلو بچیانو په باب دموهن چند دخوبونو دتعبیر ورځې نژدې شوې وې،
خو په پنجاب کې د سلطان محمود غزنوي دبریاو په سبب چې دهندي راجه
ګانو په زړونو کې کومې اندیښنې او تشویشونه را پیدا شوي وو . ورځ په
ورځ زیاتیدل.
دهیواد د ساتنې لپاره چې دقنوج کومو با نفوذه سردارانو، ترلوچن پال د
ملاتړ غږ اوچت کړی و، په هغوی کې موهن چند هم و، دقنوج حاکم چې خپل
ګاونډی راجه ګان ولیدل ډیر زر يې زر تنه پوځ د ترلوچن پال دملاتړ لپاره تیار
کړ. کله چې دهغو پوځونو دمشرتابه خبره رامخې ته شوه، نو دراجه نظر په
رنبیر ونښت، موهن چند پخپله غوښتل چې په دې عملیاتو کې شریك شي،
خو دهډوکو ددرد په سبب پاتې شو.
له قنوج څخه د روانېدو پر وخت درنبیر عمر شل کاله و او هغه دومره پر
ځان اعتماد درلود چې د راجه د دربار نجومي يې لاس ولید، زیرې يې پرې
وکړ چې ته به دننه نه له فتحې څخه وروسته سر لوړی راستنیږې. رنبیر په

موسکا ځواب ورکړ چې: مونږ ننندنه ته نه غزني ته روان یو. او چې یوه بوډا سپاهي وویل چې غزني خو ډېر لرې دی. نو د رنبیر دپلار ځېره له غوسې تکه سره شوه، ویې ویل: غزني لرې نه دی، ته بې غیرته شوی یې!

دقنوج له سرحده دتیریدو څخه وړاندې رنبیر له خپل کلی څخه تیریده، کله چې هغه دخپل کور مخې ته ورسید، شکنتلا په منډه بهر راووته ورغله درنبیر له ملا څخه یې خنجر راوکېښ او زر یې دخپل لاس ګوته غوڅه کړه او بیا یې د رنبیر پر تندی د وینو خال "تلك" کېښود، د اوښکو دتم کیدو هڅه یې وکړه ویې ویل: وروره! دیوتا (خداي) دې وساته، زر دېېرته راتلوهڅه وکړه.

رنبیر وویل: زه به ډیر زر بېرته راشم، خو زما وړوکی خورکی راته ونه ویل چې راځم څه شی ورته راوړم؟

- هیڅ نه، یوه خورله خپل ورور پرته بل هیڅ نه غواړي، له دې الفاظو سره د شکنتلاله غټو غټو سترګو څخه داوښکو ځاځکې وڅڅیدل، رنبیر یوه شېبه چوپ ودرید او بیا یې د آس جلب راوګرځاوه.

* * *

دننندنه جګړې ته د بهیم پال د ملاتړ لپاره له قنوچ څخه پرته دجنوبي هند ډیرو نورو ریاستونو هم مرستندوی پوځي ټولګی استولې وو، دخپلو خپلو پوځي ډلګیو او سپاهیانو د جرئت او حوصلې دزیاتولو لپاره مذهبي مشران هم ملګری وو، او زیاتو مذهبي مشرانو دخپلو پوځیانو د وینې په ځوښ راوستلو لپاره بوتان له ځان سره راوړې وو. ځکه خو دننندنه په کلاکې چې نه فتحه کیدونکی شیان ګڼل کیدل، هغه هماغه بوتان وو. چې دهغوی دکرامتونو افسانې به هندي برهمنانو بیانولې دهندي ټولنې ځوانان یې باوري کړي وُ چې که مسلمان پوځیان دننندنه کلا ته دننه ننوتې کیږدي، نو خوړین او لولپه به شي.

ځکه خو چې کله به دبهیم پال او دغزنوي محمود پوځونو له کلا څخه بهر په یوه ډګر غیرت او زړورتوب ښکارولو، نو مذهبي مشرانو به په کلاکې دننه سرني او زنګونه کړنګول او دغفلت له خوبه یې دخپلو دیوتاګانو او خدایانو دراپاڅولو هڅه کوله، خو ددفاع هغه پټ قوت چې په هغو دطلا، سپینو زرو او کاڼو په بوتانو کې وُ رابرالا نه شو.

په ډګر کې له ماتې وروسته دبهیم پال ځینو ځواکونو په کلاکې دپناه اخستلو هڅه وکړه او پاتې پوځ په یوه او بله خوا تیت او پرک شو. ځینو راجه ګانو او سردارانو خپل خپل پوځونه له سره تنظیم کړل او ځوابي یرغل یې وکړ، خو د بهیم پال د تېښتې په سبب دهندي پوځونو مورال ولوید او هغوی په کوم ځای دپښې ټینګولو او مقابلې حوصله نه درلوده، دغزني دشاځلمو دسپرو په یرغلونو هغوی له ډګرونو څخه شاوخوا غرونو ته په ختلو اړ شول، سلطان دخپل پوځ یوه برخه په هغو تښتیدلیو پوځیانو پسې واستول او بل لورې ته کلا تر کلابندی لاندې ونیول شوه.

رنبیر پردې سربیره چې تپی شوې و، تر وروستې وخته یې مقاومت وکړ، کله چې میدان تش شو،نو ده له خپلو سپاهیانو سره په یوه خاورینه غونډۍ دمقاومت هڅه وکړه، خو لږ ځنډ وروسته دنورو په څیر دقنوج پوځیان هم وتښتیدل، له رنبیر سره یوازې پنځلس تنه سربښندویان پاتې شول. فاتح لښکر چې تښتیدونکی لوی لوی ګروپونه تر لرې لرې پورې وزغلول، دغو دګوتو په شمار پوځیانو ته یې هیڅ ارزښت ورنه کړ، دترکانو او افغانانو زیاتې پوځی ډلې راغلې او له دوی څخه په څنګ کې تیرې شوې. بالآخره دسلطان دپوځ یوې ډلې دوی راایسار کړل، د رنبیر ملګرو خپلې لیندی او غشې تیار کړل او دډېرو شاته کیناستل، خو دغونډۍ کلابند کوونکی پوځیان په غونډۍ دحملې پرځای شاوخوا کرار ودریدل.

رنبیر خپلو ملګریو ته وویل: ورونو! موږ ته له دې ځایه په تېښته وتل آسانه ندي، خولمر ډوبیدونکی دی، که موږ لږ نور وخت هم مقابله وکړای شو، نو امکان لری د شپې په تیاره کې دځینو لپاره دتیښتې او ځان ژغورلو فرصت په لاس ورشي، له دې غونډۍ څخه به پر دښمن زموږ یو غشی هم خطا ولاړ نشی او دښمن دومره ساده او بې عقل نه دی چې دخپلې فتحې څخه وروسته یوازې دځو تنو سپاهیانو دوژلو اویا نیولو په مینه دخپلو پوځیانو خطر ته غورځولو لپاره چمتو شي. او که دوی دې کار ته چمتو شی هم نو یوه نوابزاده ته ددښمن په لاس دبندی کیدو څخه، وژل کیدل غوره دي.

زه خپلو هغو ملګرو ته د بې همتۍ پیغور نه ورکوم چې موږ یې پرېښودو او وتښتیدل، خو هغوی احمقان دي. دښمن چې زموږ په لښکر کې د ماتې

نخښې وليدې خپل تازه نفسه سپاره يې په هر لوري خپاره کړل، تراوسه پورې که دهغوی زياتره وژل شوی نه وې، نو نيول شوی به خامخا وي. دښمن ددوی له تښتيدو څخه ډير دمخه دکلا دروازو ته رسيدلې و، کاشکې هغوی تر لمر لويدو پورې له موږ سره ملګرتيا کړې واي. لږ ځنډ وروسته کلابند کوونکي پوځيان له آسونو پلي شول او دډبرو تر شاپر غونډۍ راوختل. درنبير ملګريو په انديښنه هغه ته وکتل او هغه په غمجنه لهجه وويل: داسې ښکاري چې ديوتاګانو ته زموږ ژوندي پاتې کيدل منظور نه دي. خو هغوی موږ دميړانې له مرګه نشي محرومولی، په خپلو مورچو کې ټينګ اوسئ او تر هغو پورې انتظار وکړئ چې دوی زموږ دغشو تردم لاندې راشي.

کوم چاله يوې ډبرې نه سر اوچت کړ او په هندۍ ژبه يې په لوړ غږ وويل: تاسو که غواړې ژوندي پاتې شی، نو خپلې وسلې وغورځوئ او لاندې را کوز شئ!

دهغه په ځواب کې د رنبير يو غشي په يو شغ تير شو، خو هغه زر خپل سر دډبرې شاته کړ. کلابندی کوونکو له څلورو لوريو پر غونډۍ دغشو باران پيل کړ. په دې کې هغه سړی چې دوی ته يې دتسليمی لپاره غږ کړې و دډبرو تر شا شل ګزه نور وړاندې وروخوت او په لوړ غږ يې وويل:

تاسو زما له اټکل څخه زيات بې عقل ياست. خو زه يوځل بيا دفکر کولو وخت درکوم، دا ځل هغه دسر را اوچتولو هڅه ونه کړه. په هندی ژبه دهغه خبرې او لهجه پردې ګواه وه چې يا خو هغه دهمدې هيواد اوسيدونکی دی اويا يې دژوند زياته برخه دلته تيره کړې ده. درنبير او دهغه دملګرو له خوا يې چې څه ځواب وانه وريد، نو ويې ويل: ما دا وعده کړې ده چې دلمر لويدو څخه دمخه بايد ددې غونډۍ سرته ځان ورسوم، که تاسو ځان وژنې ته تيار نه ياست، نو وسلې وغورځوئ. زه ستاسو دسر د امن ژمنه کوم امکان لري کومه ورځ تاسو خپلو کورونو ته هم ستانه شي. رنبير او دهغه ملګرو ته ظاهراً دغه خبرې ډيرې بې معنی وې، خو په لږ ځنډ کې دغه سراب ددوی پر خيالونو غلبه وکړه، کومه ورځ کورونو ته دستنيدو ورك اميد د مايوسۍ په تيارو کې هغه ډيوې بلولې چې په رڼا کې يې دوی ته د مرګ څيره تر پخوا زياته وهمناکه ښوده.

ددغه غبرګون له سلګونو میلو لرې دوی احساساوه، ددوی میندې پلرونه، اولادونه او بال بچ، دوستان او خپلوان یې ټول په یوه خوله وایی چې دوی اوریدل:
امکان لری یوه ورځ مونږ ووینې.
دغږ خاوند ترځنده چوپ و، ناڅاپه د رنبیر یو ملګری اوچت شو او وسله یې وغورځوله، ښکته کوز شو. دیوې شیبې نه وروسته درې نورو هم دهغه په ګام ګامونه اوچت کړل، نورو رنبیر ته وکتل، هغه په خپ غږ وویل:
ماته داسې مه ګورئ، په تاسو کې چې څوك غواړې، ولاړ شی ورځي دې! زه په خوښی اجازه ورکوم.
څلور کسان نور اوچت شول په هغوی کې یو تن له یوه ګام اخستلو وروسته بیرته رنبیر ته وکتل او وې ویل: امکان لری هغوی دروغ ونه وایي، هغه زمونږ په ژبه خبرې کوي، امکان لری دی له هغه نوابزاده ګانو څخه وی چې له دښمن سره ملګری شوی دی او هدف یې زمونږ له وژل کیدو څخه ژغورل وي.
رنبیر په دردناکه لهجه ورته وویل: دبګوان ( خدای ) لپاره ولاړ شه، زه ستا مشورو ته اړتیا نه لرم.
او هغه په منډه له خپلو نورو ملګرو سره یوځای شو. په غونډۍ څو شیبې چوپتیا خپره شوه، بیا دډبرې له شا څخه غږ راغي!
لمر د لویدو په حال کې دی، زه لږ ځنډ نور هم تاسو ته وخت درکوم په زړه ورتوب او احمق توب کې ډیر توپیر دی.
لږ ځنډ وروسته چې د رنبیر نور ملګری ونه خوځیدل.
وینا کوونکی وویل: زه یوازې پاس درځم او تاسو ته ډاډ درکوم چې تاسو به زما لاره نه ډب کوي، یو د اوږدې ونې خاوند زلمی دډبرې له شا څخه راپورته شو او په ډاډه زړه پاس دغونډۍ سر ته ور روان شو. رنبیر خپله لینده برابره کړه او خپلو ملګرو ته یې وویل:
دا دوکه ده هغه یوازې نه راځی تاسو څلورو واړو لوریو ته ګورئ. خو هغوی له یوه لوری هم دیرغل علامې ونه لیدې. کلابندی کوونکی دډبروله شا څخه راپورته شول اوټولو په ډاډه زړه د غونډۍ سرته کتل، درنبیر دوو

ملګريو هم چې وسلې يې غورځولې وې او ښکته تللې وو هغوی ته نژدې ور ورسيدل او دغونډۍ سر ته يې راکتل . دلوړ قد خاوند پنځلس ګامه وړاندې تللې و چې رنبير له خپلې مورچې څخه اوچت شو او هغه ته يې لينده برابره کړه ودريد.

دهغه په ځواب کې لاندې ډيرو کسانو دخپلو ليندو مخه رنبير ته ور واړوله، خو د لويې ونې ځوان په بيړه شاته وکتل، خپلو ملګرو ته يې اشاره وکړه او هغوی يې دغشو له چلولو څخه ايسار کړل. بيا هغه رنبير ته وکتل او د څوکی په لور يې پښې په هماغه وقار او پرتم پرمخ تلې، دهغه د ونې او اندام په څير دهغه مخ هم زړه وړونکې و. ښکلې ښه توری او ځليدونکی سترګې، پراخ تندی دجرئت، عزم او ارادې ګواهي ورکوله. دهغه انداز ډير فاتحانه و، خوموسکايې دا ښودله چې هغه دخپل فتحه شوی وژلو ته نه، بلکې په غېږ کې دنيولو لپاره روان دې. د رنبير ملګرې حيران دريان ولاړ وو او هغه ته يې کتل، رنبير دغشی دکش کولو هڅه وکړه، خو همت يې ځواب ورکړ څو ګامه شاته ولاړ او بيا يې دغشې د کش کولو هڅه وکړه. خو بيا دهغه يو ملګری په منډه ورغې د هغه په مخه کې ودريد او چيغې يې کړې نه، رنبيره نه!

ناپيژندوی وويل: ستا په څيره او ښه ځوان بايد داسې له ژونده بيزاره نه وي. آيا دا امکان لری چې تراوسه پورې دې داسې چا غږ نه وی اوريدلې چې په زړه کې دې له هغه سره د بياليدو په اميد دژوندی پاتې کيدو هيله نه وی راپيدا شوې؟ رنبير څه ځواب ورنکړ، دهغه لهلاسه لينده لويدلې وه، او هغه په سلګونو ميله لرې دچا دا خبرې اوريدلې: وروره! خدای جل جلاله دې وساته زر د بيرته راتلو هڅه وکړه، يوه خور له خپل ورور پرته هيڅ نه غواړي.

د لوړ قد خاوند چې د رنبير په وينو ککړ لستونی وليد ويې ويل: ته زخمی يې! رنبير يې چې چوپ وليد هغه ور وړاندې شو د رنبير لاس يې ونيو او په ډاډه زړه يې دهغه دمټ زخم وليد، بيايې دسمال پرې وتاړه او ويې ويل:

په ځوانۍ کې داسې زخمونه ډير زر بيرته رغيږي. خو ته بايد لږ پام ضرور وکړې. په دې ځنډ کې څو نور سپاهيان هم ور ورسيدل او هغوی دخپل سالار په اشاره د رنبير دنورو ملګريو د تېښتو په تړلو بوخت شول.

دهغوی دا سلوك د رنبیر او دهغه دملګریو لپاره له اټکل څخه وتلې او لوړ و، د دوی اندیښمنو کتوله دښمن څخه ددې پوښتنې ځواب غوښت چې اوس به څه کیږي؟

دغونډۍ ځلورو خواو ته په هواره دښته تر لرې لرې پورې ګردونو په دې ګواهي ویله چې تراوسه ددښمن د تښتیدلیو پوځیانو لټون او تعقیب دوام لري، لږ ځنډ وروسته دغه اوه کسان دبندیانو په څیر لاندې راکوز شول اوله خپلوهغوملګریوسره یوځای شول چې تردوی وړاندې یې وسلې غورځولې وې.

سالار خپلو پوځیانو ته امر وکړ چې بندیان په امن کې پړاوته ورسوی او پخپله بیا پر آس سپور شو له نورو پوځیانو سره یوې خواته وخوځید، رنبیر په زړه کې له ځانه پوښتل:

دا څوك دي؟دپړاو دقرارګاه، په لوری چې تلل بندیانو خپل ځینې ساتونکی لیدل چې په هندی خبرې کوي، یوه سپاهی وویل:

ددې ماتې نه وروسته باید دهند ټولو راجه ګانو ته دا معلومه شوی وی چې د هند له واکمنو سره مرسته هیڅ ګټه نه لري، نور په پنجاب کې د ترلوچن پال او دهغه دزوی لپاره هیڅ ځای نشته.

دوهم وویل: خو زما باور دی چې برهمنان (مذهبی مشران) به ددې هیواد اوسیدونکی تر وروستیو وختونو پورې وجنګوي، که ترلوچن پال مړ شي، هم نو ډیر نور راجه ګان به رامیدان ته شي.

دریم وویل: مګر زما باور دی چې په دې جګړو کې به دیوه برهمن بدن هم نه وی ګریدلی. هغوی په کلا کې ډیر بوتان راټول کړې وو او دهغوی د راوینولو لپاره یې له څو شپو راسې سرنې وهل او زنګونه یې ورته ږغول. خوتاسو به ګوری، چې دنګر کوټ په څیر به دوی تښتې او ددغه بوتانو پروا به هم نه کوي.

- ستا څه خیال دی چې تراوسه به یې کلا نه وی پریښی او نه به وی تښتیدلی؟

لومړي سپاهی دا وویل او رنبیر ته یې وکتل ویې ویل:

ته د کوم ځای یې؟

د رنبیر دچوب پاتې کیدو نه وروسته دهغه یوه بوډا ملګری ورته وویل: موږ د قنوج یو.

سپاهي وویل:

نو ددې مطلب دادی چې موږ باید قنوج ته هم ولاړ شو.

یو ترکي چې د نورو پوځیانو مشر ښکاریدو په ماته ګوډه هندي وویل: تاسو ته له بندیانو سره دټوکو اجازه نشته.

سپاهي ځواب ورکړ:

دا ټوکې نه دي، زه په پوره جرئت وایم چې کومې جګړې چې زموږ دهیواد برخلیك ټاکي، دګنګا او جمنا په درو کې به کیږي، دهغه ځای خلك زموږ دخلکو څخه زیات مظلوم دي، که سلطان محمود دالله له لوری دمظلومانو د فریاد ځواب وي، نو هلته به خامخا ځي.

که دغه خبرې کوم ایراني، افغاني او یا ترکي کړې وای، نو په رنبیر به یې اغیزه نه وای کړې، خو د یوه هندوستاني له خولې داسې خبره ده ته له زغم څخه بهر وه، خوبیا هم د بې دریغه بې وسۍ په وجه یې څه ونه ویل. ده په زړه کې ویل: بګوان (خدای) دی وکړی چې ددغسې نادانودوستانو په مشوره سلطان محمود په سپیځلې خاوره پښه کیږدی دا احساس کړی چې دلیوانو دښکار میني دی دزمریانو ځالې ته ورکش کړی دي.

تر لږ ځنډه دی له خپل شاوخوا څخه بې خبره شو اودهغو ورځو تصور یی کاوه چې د ګنګا او یا جمنا په څنډو دمنځني هندوستان دنوابزاده ګانو او راجه ګانو بې شمیره پوځونه دمحمود مقابلې ته دریدلې وي او دهغوی د مخې لیکو دپیلانو شمیر دومره وي چې دښمن وویریږی او وتښتي او دغه خلك چې نن ددښمن دپوځ تر رعب لاندې راغلي او له دوی سره یوځای شوی دی دخپلو دیوتاګانو پر سپکاوي دریغه نه کوی چې د محمود د لښکر پر ماته یې باور شی له جګړې څخه دمخه به بیرته زموږ سره یو ځای شي. دهندي سپاهیانو په خلاف د رنبیر غوسه ورو ورو په کرکه او نفرت بدلیده.

دننده دکلا له فتحې وروسته ټول بندیان له قرارګاه څخه هلته ور واستول شول او دمحمود پوځ کشمیر ته مخه کړه، رنبیر تر بندی کیدو وروسته ترځو ورځو پورې د محمود دپوځ دهغه افسر په باب پوښتنې کولې چې د ځیرې،

زړورتوب او همت په سبب يې دده په زړه کې نه ورکيدونکي ځاپونه ايښي وو، خو هغه ده بيا ونه ليده.

*****

رنبير د يوه بندي په حيث څلور کاله دننده په کلا کې تيرې کړې او په دې موده کې ده دهند په مختلفو برخو او دهند په شمال کې په لرې لرې سيمو کې دمحمود د برياو خبرونه اوريدل.

په کلا کې دبنديانو شمير ډير شوې وُ، ډير پکې داسې وو چې دعلماؤ د تبليغ په سبب مسلمان شول او له زندان څخه خلاص شول، ځينو نورو فديه ورکړه او آزاد شول.

کوم بنديان چې نادار او بوډاګان وو له کوم شرط او يا فديې پرته پريښودل شول. د اسلام له قبلولو څخه وروسته چې کوم بنديان آزاد شول دهغوی دا ګومان وُ چې ددوی راتلونکې يوازې داسلام دبرې په صورت کې تضمين کيدای شي، هغوی دمحمود په پوځ کې شامل شول.

په څلورم کال د ننده په کلا کې يوازې يو نيم سل کسه بنديان پاتې وو چې تراوسه پرخپل مذهب کلک پاتې وو او سره له دې چې هغوی شتمن وو، خو يوازې دفديې په بدل کې يې آزادول چاته منظور نه وو.

د رنبير په څير دغه کسان د هغې ورځې په انتظار وو چې د هندوستان له جنوب او ختيځ څخه د شلګونو راجه ګانو بې شميره لښکر دمسلمانانو پوځونه غوبل کړي او وړاندې راشي او هغوی د کلاګانو دروازې خلاصې کړې او دژوندي دي وی بت پال شعارونه پورته کړي له دوی سره يو ځای شي او بيا ترغزني څه چې آن تر مرکزي آسيا پورې دغه خلک پسې واخلي.

دغه کلا د يوه جيل پرځای دغزني دلښکرو لپاره ديوې قرار ګاه حيثيت درلود، اضافه آسونه او پيلان به دلته ساتل کيدل، کومو ټپيانو ته چې ډير آرام ضرورت و هغه به يې هم دې کلا ته راتېول کړل او که به کوم داسې راجه او يا دنفوذ خاوند سردار د جګړې په ډګر کې اسير شو چې په کوم زيات امن او خوندي ځای کې بايد ساتل شوی وای، هغه به يې هم دی کلا ته رااستول. د رنبير غوږونو ته چې دمحمود د برياليتوبونو کوم خبرونه دپرديو يا دهندوستان داوسيدونکو نويو مسلمانانوله خولې رسيدل ده پرې اعتماد

نشو کولای، خو چې کله به کوم نوي بندي دغه خبرونه تایید کړل، نو زړه به یې وپړسیده.

له بند څخه څو میاشتې وروسته چې په دې کلا کې دبندیانو شمیر ددوه زروو څخه زیات و، رنبیر دا خبر اوریدلی و چې محمود ددیره ګوپې پور راجه ته له ماتې ورکولو وروسته د "تهانیسر" په لور پرمختګ کړی دی، هغه ددې خبر په اوریدو داندیښنې پرځای خوشحاله شو ، په بندیانو کې یو هم داسې څوك نه و چې د "تهانیسر" په درمسال کې یې د چکرسوامی بوت د کرامتونو افسانې نه وې اوریدلې، هغوی به پخپلو منځونو کې دا تبصرې کولې چې محمود یې خپل مرګ" تهانیسر" لوری ته وربولي، دمسلمانانو پوځ چې د چکر سوامی بوت ته ورنژدې شي، نو ټول به برباد شي.

څکه خو ددې خبر په اوریدو ډیر بندیان پر هغه عالم ورټول شول چې هره ورځ به یې د اسلام په باب تبلیغ ورته کاوه.

یوه بندی وویل: تا ویل چې زموږ خدایان دمسلمانانو هیڅ نشی کولي. خو ستاسو پاچا تراوسه پورې زموږ دوړوکو وړوکو خدایانو بوتان مات کړی دي. اوس دوی داسې ځای ته روان دی چې له هغه ځایه زموږ یو دښمن هم سلامت ژوندی نه شی راوتلی که ستاسو خدای جل جلاله هغوی دچکر سوامی له غوسې وژغورل ، نو زه به مسلمان شم.

عالم ورته وخندل ځواب یې ورکړ: ته د چکر سوامی بوت له خدای جل جلاله سره شریك بولې! خو ترڅو ورځو پورې به په دې حقیقت وپوهیږی چې هغه یوازې دکاڼو یوه ټوټه ده او بس.

څو ورځې وروسته یې د تهانیسر دراجه یو خپلوان دجنګی بندی په حیث دې کلا ته راوست هغه وویل چې مسلمانانو د چکر سوامی بوت له درمسال څخه ورسره یووړ چې دغزنی په څلور لارې کې یې خلکو ته ننداری ته کیږدي، پر دې خبر ډیرو بندیانو دحق کلمه وویله او مسلمان شول، خو رنبیر په خدایانو دشك په ځای دهغوی پالونکیو ته د بې غیرتی او بې همتی پیغورونه ورکول.

بیا هغه ورځ راغله چې دمحمود غزنوی پو ځونو د ګنګا او جمنا په درو کې آسونه زغلول او رنبیر یې هره ورځ دنویو بریو خبرونه اوریدل او دده دا

باور يې کمزوري کاوه چې دخدايانو دسپېڅلې ځمکې دساتونکو همت او غيرت به د محمود دلښکر د برې سيلاب مخه وا ړوي.
هغه داهيله درلوده چې د سرسواراجه به تر وروستۍ شيبې وجنګيږي ، خو هغه ميدان پرېښود او وتښتيد. هغه د بارن ( اوسنی بلند شهر) له راجه هردت څخه دا تمه درلوده چې دديوتاګانو نوم به لوړ کړي، خو هغه له خپل يو لك تنو ملګريو سره دتوحيد کلمه وويل او مسلمانان شول.
بيا چې کله دمهابن واکمن کل چند دمحمود مقابلې ته راووت، نو رنبير خپلې ټولې هيلې په هغه پورې وتښلولې، خو څو ورځې وروسته دا خبر راغی چې کل چند له څلورو لوريو کلابند شو او بيا يې ځان وواژه.
سلطان دمهابن له فتحې وروسته دمتهرا په لور وړاندې ولاړ، څو ورځې وروسته رنبير واوريدل چې متهرا دخپلو ويدو خدايانو د ناکامې هڅې وروسته وسلې کيښودې او سلامی شول او له درمسالونو څخه پنځه سوه د سرو زرو اودوه سوه دانې د سپينو زرو بوتان چې له پيړيو پيړيو راهيسې يې ددغو خلکو څخه دخپلې سپېڅلتيا خراج تر لاسه کړې ؤ دهغو خلکو لاس ته ورغلل، چې دهغوی له وزن څخه دهغې دقيمت اندازه معلوميدای شي.
او بيا د ځمکې دهغې برخې وار راغی چې رنبير ته دهغې هره ذره تر ځان ګرانه وه.
څلور کاله وړاندې هغه خپلو ملګريو ته ووېل چې څوك قنوج ته ولاړ شي بېرته نشی راستنيدای. دقنوج نوابزاده ګان د پنجاب څخه توپير لري، دوی به ددښمن دلارې د بندولو لپاره دخپلو مړيو ديوالونه ودروي، او دوی به هيڅکله هم خپل خدايان پر ميدان پرېنږدی او وبه نه تښتي، بلکې دهغوی په پښو کې به خپل سرونه قربان کړي، خو اوس دده احساسات بدل شوي وو.
دتيرو څلورو کلونو پيښې داسې وې چې ده له ډېرې انديښنې او ناکرارۍ پرته د قنوج په اړه هيڅ فکر نشو کولی.
سهار او ماښام به يې دا دعا کوله چې:
زما د وطن سپېڅليو خدايانو ! زما قوم په امان کې وساتئ! او کله چې ده واوريدل قنوج فتحه شو او راجه ډګر پرېښود او وتښتيد، نو نرۍ يې تر سترګو تياره شوه. ماښام مهال چې کله دکلاپهره دارانو د قنوج د فتحې خبر

واوریدل او له خوښۍ یې چیغې وهلې. دی په یوه کونج کې ناست وُ او دهغه ماشوم په څېر یې ژړل چې تولې دلوبو وسیلې یې ماتې شوې وي او له دې وروسته هغه یو پر بل پسې د آسي د راجه چندر پال او دسروا د راجه چندر رای دماتې خبرونه واوریدل، خو اوس ده دداسې خبرونو سره هېڅ مینه نه درلوده، دقنوج دماتې څخه وروسته دچا ماته اوبرې ده ته بې معنې وو. اوس دده ټوله سودا دخپل بوډا پلار او کشرې خور په باب وه چې هغوی به چیرته وي، څه حال به یې وی . دقنوج له فتحې وروسته به څه پرې تېر شوي وي؟ ده یوازې دهمدې پوښتنو ځوابونه غوښتل.

***

د شاوخوا هندوان او نوی مسلمانان به کله کله د بندیانو د احوال لپاره کلا ته راتلل. بندیانو ته دا اجازه وه چې ددغو خلکو په لاس خپلو دوستانو او کورنیو ته پیغامونه واستوي. ډېرو بندیانو خپلوان چې له خپلو عزیزانو خبرېدل ورته راتلل ،ددوی فدیه به یې ادا کوله او آزاد به شول. شپږ میاشتې پخوا د رنبیر د شپږو تنو ملګریو خپلوان راغلې وو او هغوی یې آزاد کړل. درې تنه نور مسلمان شول او خوشې کړای شول. څلور کسه نور یې ددې لپاره خوشې کړل ،چې دهغوی دفدیې ورکولو څوک نه و.

رنبیر ته فدیه معمولي خبره وه. خو ده د یوه ماته خوړلی سپاهی په حیث کور ته ستنیدل د یوه نوابزاده "راجپوت" له غیرت سره منافي باله. هغه پر دې امید جیل ښه باله چې که کومه ورځ دده د وطن پوځیان دلته را ورسیږي او د جیل دروازې خلاصې کړي، دخپل پلار په نامه ده خپلو هغو ملګرو ته چې له زندان څخه خلاص شول، یوازې دا پیغام واستاوه چې زما د فدیې دادا کولو پرځای، په خپلو پیسو د قنوج په پوځ کې څو تنه پوځیان زیات کړي.

خو چې ددوی راجه د تیښتې لاره خپله کړه، دده دنیا هم بدله شوه، اوس ده داسې احساسوله چې دده دخیالونو غر دځو څخلو له انبار څخه پرته هېڅ نه وو. دده د پیغام په اوریدو به دده پلار خامخا خوښ شوی وی او هغه به په هماغه وخت کې راجه ته ورغلی وي او دا به یې ورته ویلی وی چې : ټولواکه!

ه

دخپل زوی په غوښتنه ستا پوځ ته دومره پیلان، دومره توری او دومره آسونه وړاندې کوم، زما زوی د فدیې په بدل کې دراخلاصیدو پرځای، د ننده نه دکلا په دروازه کې ستا هرکلی کول غواړي.

خو اوس ښایی زما په خیر دهغه دنیا هم بدله شوی وي، هغه به په زړه کې به وار وار دا ویلی وی چې:

زما له قنوج او یا دهغه د واکمن سره هیڅ کار نشته. زما پر دې هیڅ پروا نشته چې د قنوج دديوتاګانو د بوتانو ځای د قنوج درمسالونه دی او که د غزنی د بازارونو څلور لارې، زه یوازې خپل زوی غواړم. کله کله به ددیوتاګانو ځواك او دلویی په باب د رنبیر په زړه کی شکونه راپیدا شول، خو ضمیر به یې زر غبږ وکړ:

نه رنبیره! ته باید دخدایانو! په باب داسې فکر ونکړې. هغوی یوازې خپل پالونکی ازمويي.

هغوی به خامخا راویښیږی او د وطن ساتنه به کوی، محمود یوازې دهندوستان راجه ګانو او ټولواکانو ته ماته نه ده ورکړې، بلکې هغه ديوتاګان یې چلنج کړی دی چې په ځمکه کې دلوی خدای رضا او اراده پوره کوي، او دخدای جل جلاله رضا دا نه شی کیدای چې د دیوتاګانو دبوتانو سپکاوی کوونکی دی ترډیره ددې مذهب پر زامنو د خپلې خوښې حکم وچلوی له دې ځمکې څخه به یو ه ورځ هماغه ستر ځواك رابښکاره شی چې دهغو دیوتاګانو له بوتانو سره لوبیدونکیو ګستاخولاسونو څخه به توري واخلی او ته باید دهمغې ورځې انتظار وکړې.

په دغسې خیالونو سره به د رنبیر زړه لږ ډاډه شو او په ډیرې عاجزۍ او بې وسۍ به یې دعا وکړه:

زما لوی خدایه! او زما دخدای دیوتاګانو! ماته همت راکړئ چې دډیر مصیبت په وخت کې هم په خپل دین کلك پاتې شم. زما لړزیدلې عقیدې ته تکیه راکړه.

خو ددغسې دعاګانو څخه وروسته به دده دزړه دډاډ او سکون شیبې ډیرې لنډې وې. دګنګا او جمنا په درو کې دمحمود غزنوی له فتحو وروسته درنبیر حالت هغه چاته ورته و، چې په توپان کې دډیوې بلولو هڅه کوي.

هغه بندی چې څلور کاله يې په پوره صبر او زغم تير کړل د هغو فتحو نه وروسته له ديوتاګانو څخه خوابدی شوی و. څلورويشت تنه بنديانو دمتهرا دفتحې دخبر له اوريدو سره کلمه وويله، په پاتې بنديانو کې هم ډير داسې وو چې داسلام تبليغ به يې تر پخوا په زيات ځير اوريده.
دحال بې وسۍ او د راتلونکی په باب د پرلپسې زياتيدونکی مايوسۍ په سبب رنبير ناروغ شو ، له دې سره پرې موسمی تبه (ملاريا) هم راغله چې څو ورځې يې پر بستره څملاوه.

*****

يوه ورځ رنبير په خپله بستره غځيدلی و او د کلا ډاکټر چې ده يې د دوا له خوړلو څخه انکار کړې و دده دبستری ترڅنګ راغونډو شويو بنديانو ته ويل: تاسو دغه ځوان وپوهوی، له پرون راسې يې زما دوا نه ده خوړلې، پهره دارانو راته وويل چې ده ډوډۍ هم نه ده خوړلې، نن د جيل ناظم بنايی دده ليدو ته پخپله راشي. تاسو ټول پردې ګواه اوسۍ چې ما دده د ژغورنې هره ممکنه هڅه کړې ده.
يو بندی ور وړاندې شو دډاکټر له لاسه يې د دوا پياله واخستله ويې ويل: ته چورت مه وهه موږ به يې پوه کړو. بيا يې رنبير ته وکتل ويې ويل: وخوره شهزاده ! په دې کې ستا خير دی.
رنبير چيغې کړې: دخدای لپاره ما مه تنګوئ. زه دهيچا خواخوږی ته اړتيا نه لرم.
بل بندی يې لاس ونيو او دراپورته کولو هڅه يې کوله ويې ويل:
رنبيره! موږ ستا دښمنان نه يو، زموږ غوندې خلکو په وضعه کې انسان خپله ګټه او تاوان نشی سنجولی، د دوا له خوړلو انکار مه کوه.
رنبير په غوسه دهغه لاس وڅانډه، او له پخوا څخه يې په اوچت آواز چيغې کړې:
دلته ماته دهيچا ددوستۍ ضرورت نشته، ما پريږدئ چې ومرم. دخدای جل جلاله لپاره ما پريږدئ چې مړ شم، مرګ ماته له ژوند څخه زيات ستونزمن نه دی.
ناڅاپه دکوټې د دروازې له لوری د چا غږ اوچت شو:

دا خبرې ديوه پوځی نشی کیدای!

هغو خلکو چې رنبير ته يې سترګې ور اړولې وې ناڅاپه مخونه واړول او ددنګې ونې له رعبه ډك ځوان ته يې وکتل چې په دروازه کې د کلا له ناظم سره ولاړ و.

بندیان یوې خوا ته شول، ناپیژندوی د رنبير د بسترې څنګ ته راغې وې ویل: پوځی په موسکا دمرګ غیږې ته درومي، خو په مايوسی مرګ ته وسله نه پريږدي.

رنبير هغه ته وکتل او دخپګان په حالت کې راپورته شو کیناست. دهغه په زړه کې دکرکې او نفرت جذبې په حيرانی بدلې شوې دا هماغه ځوك و چې څو کاله وړاندې يې له لنډو خبرو وروسته دده په زړه کې دیادونو خاپونه پرېښی وو او ورك شوی و.

طبیب لومړی ځوان او بيا د کلا ناظم ته وکتل او وېې ويل:

دې دوا نه خوري، ما ډيره هڅه پرې کړې، نا آشنا ځوان بندی ته چې ددوا پیاله يې په لاس کې وه، وويل: دوا ماته راکړه!

بيا يې رنبير ته وکتل ويې ويل:

زما په ګومان چې دواړو یوځل پخوا هم چیرته سره لیدلې دی دا واخله.
رنبير دهغه له الفاظو زيات دهغه له کتلو څخه تر اغيزې لاندې راغی، بيا يې هم دوا ته څه پام ونه کړ.

ګوره ترڅو دوا ونه خورې. زه به همدلته ولاړ يم. دا يې وويل او هغه ددوا پیاله د رنبير پرشونډو ورکیښوده، رنبير دهغه له لاسه پیاله ونیوه، په زړه کې وړوکړ ځېدل چې پیاله پر دیوال وولي، خو همت يې ځواب ورکړ له یوې شيبې ځنډ وروسته يې ناڅاپه څو غوړپه دوا وخوړ.

ناآشنا ځوان په موسکا ډاکټر ته وکتل ويې ويل:

زما په ګومان ستا دوا ډیره ترخه وه، زه هم په خپله دترخې دواله خوړلو ويريږم.

دکلا ناظم وویل: راځه ته بايدنور هم ډیر څه وګورې!

نا آشنا له ناظم سره له کوټې ووت. طبيب رنبير ته وويل:

زه به ماښام بیا راشم. ته لږ ځند وروسته که ښیدنې وځنبې. ډیر به ښه وي.

رنبیر وویل: ودریږه! زه له تاځخه یوه پوښتنه کوم.

- وپوښته!

- دا څوك و؟

- دا د محترم ساطان د پوځ یو لوی سالار دی. دکلا ناظم دځه مودې لپاره کور ته په رخصت روانیږی دی به یې پر ځای کار کوی. ما اوریدلی دی چې دی د بندیانو په باب د ځینې ځانګړیو اختیاراتو سره راغلی دی.

- مګردده د ژبې څخه خو ښکاری چې دی دهمدې هیواد اوسیدونکی دی.

- هوکې! دی دنویو مسلمانو شویو کسانو څخه دی. اوریدلې مې دی چې ستاسو دهیواد دکوم راجه نژدې خپلوان دی.

*****

پنځلس ورځې وروسته رنبیر دتګ راتګ شو. په دې موده کې د کلا نوی ناظم څو ځلې دده دلیدو لپاره راغلې و. بندیانو دکلا د لویې ځانګړې برخې نه پرته چې هلته وسله تون او دځو پوځی افسرانو هستوګنې کوټې وې. په نورو ځایونو کې د ګرځیدو راګرځیدو آزادی درلوده. یو سهار وختی رنبیر له کوټې څخه بهر قدم واهه. د کلا ناظم چې هر سهار به پر آس سپور په چکر وهلو عادی و رنبیر ولیده چې هغه او څلور تنه نور سپاره دده په لور ور روان دي، رنبیر ته چې ورنژدې شول آس یې ودراوه او ویې ویل: دسهار په چکر به دې روغتیا ډیره ښه شي.

رنبیر لږ په بې پروایی ورته وویل: زه دخپلې روغتیا هیڅ پروا نه لرم. په کوټه کې مې ساه تنګه وه ځکه بهر ته راووتم.

-: نو زما په ګومان به ستا لپاره بهر فضا نوره هم غوره وي. ناظم دا وویل او بیا یې یوه سپاهی ته وویل: ته دې آس ده ته ورکړه دی به راسره ولاړ شي.

سپاهی د امرعملی کولو هڅه وکړه اودآس جلب یې رنبیرته ورنژدې کړ خو هغه ناظم ته وکتل ویې ویل: ستا څخه مننه خواوس مې سپرلې زړه نه غواړي.

ستا خوښه! خو که دې کله سپارلی ته زړه شو نو خامخا مانه ووایه. ناظم دا وویل او بیا یې اس نه پونده وکړه دده ملګري ورپسې شول. بله ورځ یوه

پهره دار رنبیر ته خبر ورکړ چې د کلا ناظم غوښتی یې، رنبیر ځک شو او له هغه سره روان شو. ناظم د خپل دفتر په مخکې په ورو کې بڼ کې قدم واهه. رنبیر نژدې ورغی او ودرید، ناظم د یوې ونې لاندې کرسیو ته اشاره وکړه وېې ویل:

دلته کښېنه، زه له تاسره څه خبرې لرم. نن په کونه کې هوا دوپ ده.

رنبیر زړه نازړه په یوه کرسۍ کیناست، ناظم هغه ته مخامخ په بله کرسۍ کیناست ویې ویل:

ته د ننده په جګړه کې د قنوج د لښکر دسردار په حیث شریك وې؟

-: هوکې!

-: ستا زیات ملګری خوشې شوی او تللي دي؟

-: هوکې!

-: زه پوښتلی شم چې د خوشې کیدو لپاره کوم شرط تاته دمنلو وړ نه و؟

رنبیر ځواب ورکړ: ما دخپلو دښمنانو د شرطونو په باب هیڅکله هم دفکر کولو اړتیا نه ده احساس کړې.

ناظم وموسکل او له لږ ځنډ وروسته یې وویل:

زه پوهیږم چې څلور کاله تا دلته په دې تمه تیر کړی دی چې کومه ورځ که دهندوستان راجه ګان په خپل ځواك تا له دې ځایه وژغوري.

رنبیر وویل: او ته ماته دا ویل غواړې چې اوس زه باید دتل لپاره مایوس شم او له تا څخه د آزادی سوال وکړم؟

ناظم په ډاډ ځواب ورکړ: زه اوس تاته یوازې دا ویل غواړم چې ستا دجګړې په څیر ستا بندی توب هم بې هدفه دی. او په جرئت چې ته نازیږې زه یې سرتمبه توب ګڼم، ته دخیالونو په کلاګانو کې ناست یې دهغه ځواك مقابله کول غواړې چې خدای جل جلاله د یوه لوی هدف لپاره غوره کړی دي.

رنبیر وویل: که په درمسالونو یرغل کول او د دیوتاګانو مجسمې ورانول، لوی هدف وي، نو تاسو واقعاً ویاړ پرې کولی شی.

ناظم ځواب ورکړ: کوم بوتان چې دانسانانو په لاسونو جوړ شوی دي، هغه به د انسانانو په لاس ټوټې کیږي. کاشکې تاته دا علم وای چې دبرهمن په لاس یوه تراشلی ډبره انسان ته څومره خطرناك دښمن کیدای شي.

ته نوابزاده یې، له دې بوتانو سره ستا د مینې په سبب پوهیږم ، دوی تاسو ته پر زیاتو انسانانو غوره والی دربخښلی دی، تاسو ددوی په واسطه دډیرو انسانانو ازلی حقونه ترورلی دي.

یو بوت انسان ته دعالی نسبه او لوړ ذاتی ویاړ وربخښلی شی او بل انسان دټیټ ذاتې او پلید په ذلت مجبورولی شي. په دی هیواد کې د بوتانو ماتیدل د انسانیت برید دی، کاشکی تاسو ددې بوتانو د درمسالونو د ساتنې لپاره له تورو اوچتوونکو ټیټ ذاتو څخه دا پوښتنه کولی چې ستاسو په ورستو هډوکو کې د واك د مانیو بار دروند دی که ددې درمسالونو؟ یا مو له یوه مزدور څخه پوښتنه کړې وای چې ستا د مزدورۍ زیاته برخه د چا برخه کیږي؟ دتورې په څوکه له خلکو څخه د باج اخستونکی لوړ ذات نوابزاده او که دخپلو بوتانو په نامه دخراج ټولوونکی برهمن؟

رنبیر له ډیر زغم څخه کار واخست ویې ویل:

که غلط نشم نو یو وخت ته هم نوابزاده "راجپوت" وې! که ددښمن په مقابل کې تا همت نه وای بایللی . نو ښایی ددیوتاګانو په وړاندې ستا په خیالونو کې بدلون نه وای راغلی.

-: هو! زه راجپوت" نوابزاده" وم . خو حالاتو زما سر د انسانیت د درناوی لپاره خم کړ.

-: ستا مطلب دادی چې ته مسلمانانو ته له وسلې ایښودلو وروسته دټیټ ذاتو ملګری شوې؟

-: نه زه د انسانانو د ښکار کوونکوله ډلې څخه بېل شوم ، دانسانیت دعلمبردارانو په ډله کې شامل شوم.

- نو ته محمود غزنوی او دهغه لښکر دانسانیت علمبرداران ګڼې؟

- هوکې! زما باور دی چې ددې خلکوله فتحې وروسته به دداسې دین د تبلیغ او خپراوي لپاره لاره هواره شی چې دانسانانو په منځ کې د لوړ او ټیټ توپیر لرې کوی چې ظالمان دی دهغوی‌له لاسو توره اخلی او چې مظلوم دي هغوی ته لاس ورکوي. د داسې دین مخالفین له هغو خلکو پرته نور څوك نشی کیدای چې دخپل تمدن بنسټ یې د لوړ ذاتي او ټیټ ذاتي پرتوپیر ایښی دی او په کلاګانو اودرمسالونو کې یې ناست دی ، پر خلکو دخدایی

دعوې کوي. ددغو درمسالونو د طلسم له ماتولو پرته د دې دين دتبليغ لپاره لاره نه صفا کيږي چې برهمن او ټيټ ذاتې په يوه ليکه درول غواړي. زه پوهيږم چې اوس زما خبرې ستا پر غوږو ښې نه لګيږي، خو چې په کومه ورځ ته ديوه لوړ ذاتې انسان پر ځای ديوه عادي انسان په توګه فکر وکړې، نو دا به احساس کړی چې دمحمود راتګ دهغو بې شميره انسانانو دفرياد ځواب دی.

رنبير وويل: ديوه انسان په حيث زه يوازې دا فکر کولی شم چې زه دهغو خلکو بندی يم چې ستا په ګومان دانسانيت غوره نمونې دي.

- زه دا دعوه نه کوم چې د محمود غزنوی هر سپاهی دانسانيت غوره نمونه دی، خو زه دا خامخا وايم چې په کومو اخلاقی ضوابطو دغه خلك ايمان لري، پر هغو په پوره ايمانداری دعمل کولو سړی دانسانيت ډيره غوره نمونه ګرځيدای شي. کيدای شی د يوه بندی په حيث تاته ددې کلا د کوم پهره دار څخه څه شکايت پيدا شوی وي، خو ته بايد پردې هم فکر وکړې چې ددې هيواد په مليونونو انسانان ډيرې پيړۍ وړاندې د هندو ټولنې په توره له مغلوب کيدو وروسته د تل لپاره ټيټ ذاتی شوی دی او برهمنان اوس هم پر هغو ديوتاګانو ايمان لری چې د ټيټ ذاتو په وينو په سره کيدلو خوښيږي.

زما باور دی چې يوه بداخلاقه مسلمان به هم له کوم جنګی بندی سره هغه سلوك نه وی کړی چې تاسو يې له ټيټ ذاتو سره روا بولی.

ستا لپاره دبند ورځې خامخا ترخې دي، خو زه دا باور درکوم چې ته به ډير زر خوشې شې، ستا ترسترګو لاندې په زرګونو بنديان خوشې شوی دي، خو دهغو "ټيټ ذاتو" د ژوند ترخه په خيال کې راوله چې د ذلت په غيږ کې سترګې غړوی او د ذلت په غيږ کې مري.

زه له تانه يوازې يوه پوښتنه کوم، فرض کړه چې د جيپال يا انند پال لښکرې غزنی ته رسيدلې وای او مسلمانان مات شوی وای، نو تاسو به د بنديانو څخه پرته له عامو مسلمانانو سره څه ډول سلوك کاوه؟

آيا هغه سلوك به د کول، دراوړ او بهيل له قومونو سره دهندو ټولنې له سلوك څخه توپير درلود؟ آيا هغه بوتان به چې په مخکې يې د ټيټ ذاتو وينه توييږی په غزنی کې نه وو درول شوي؟

آیا پر غزني به د جیپال د یرغل پر وخت ددې هیواد برهمنانو ( مذهبي مشرانو) دا اعلان نه وٸ کړې چې مسلمانان پست او ذلیل دی او د ټیټ ذاتو په څیر یې ماتیدل د مذهب غوښتنه ده؟

رنبیر بې ځوابه شو ویې ویل: آخر ته له مانه څه غواړې؟

ناظم لږ بې تکلفه ورته وویل:

ته باید اندیښنه ونه کړې، زه هیڅ داسې خبره نه غواړم دربانديٍ ومنم چې ستا خپل ضمیر یې پر ریښتینولی ګواهي ورنکړي.

ستا سره زما لومړی لیدنه ډیره لنډه وه، هماغه شپه له هغه لښکر سره یو ځای شوم چې په کشمیر کې یې غوښتل دبهیم پال لښکر د ترلوچن پال له لښکر سره یوځای نه شي. له هغې وروسته ما ته دې لوری ته د راتګ فرصت برابر نه شو، خو ته مې تل یادولې. زه ستا په جرئت او میړانه اعتراف کوم، ما تل دا فکر کاوه چې که فرصت را سره وای، نو ته به مې خامخا دیوه لوړ او سپیڅلې هدف لپاره هڅو او زیار ته چمتو کړې وای. اوس هم زما پوره باور دی چې یوه ورځ به زما او ستا لاره یوه وي، خو زما اندیښنه ده چې ماته ښایې له تاسره په ډاډه زړه دخبرو اترو موقع لږ په لاس راشي، پرون زه خبر شوم چې د کالنجر راجه ترلوچن پال ته دا وعده ورکړې چې دده له لاسه وتلی سلطنت به بیرته ورته نیسي او د ګوالیار او نورو ګاونډیو واکمنو په مرسته زمونږ پر خلاف د یوه واحد سنګر په جوړولو بوخت دي.

ماته دا خبر هم رارسیدلی دی چې دقنوج راجه یې زمونږ د پخواني پرمختګ پر وخت په تیښته تورن کړی او د بې غیرتی پیغور یې ورکړی دی او دهغه امیران یې دهغه پر خلاف راپارولی دی، په دغسې حالاتو کې سلطان ښایي پرمختګ ونه ځنډوي او زه هم ښایی ناڅاپی روان شم، خو زه له تلو څخه دمخه ستا په باب یوه پریکړه ضروری بولم.

که زه ستا په باب دا ضمانت ورکړای شم چې ته له خوشې کیدو وروسته بیا د سلطان پر خلاف په کومه جګړه کې برخه وانخلې، زما باور دې چې ستا په باب به زما غوښتنه ومنل شي.

-زما پر وعده به ستا باور شي؟

_هو کې!

- که زه داسې وعده ونه کړم، نو بیا؟
- په هغه صورت کې ته باید د کالنجر د راجه او دهغه د ملاتړ کوونکو پر خلاف زموږ دعملیاتو تر پایه همدلته انتظار وکړې.
ددې جګړې نه وروسته به دګنګا او جمنا د دښتو او درو په منځ کې کوم واکمن زموږ پر خلاف د سراوچتولو توان نه لري. او بیا زما باور دی چې ټول جنګی اسیران به بې ضرره وګڼل شی او خوشې به شي.
ستا په باب به زه له ټلو وړاندې دا فرمان لیکلی پرېږدم چې تا ددې عملیاتو له برې وروسته سمدستی خوشې کړي، خو چې ترڅو دلته یم دا زما هیله ده چې ته راسره وینه، امکان لری کوم صداقت چې زه یې قانع کړم هغه ستا دننه هم یو انقلاب راولی او ته د یوه ماته خوړلي سپاهي په څیر نه، بلکې د یوه نوي ژوند دمشال وړونکې په حیث بیرته خپل وطن ته ولاړ شې.
ته چې هرکله وغواړې ماته راتلای شې، زما دهستوګنځی دروازې تل ستا پرمخ خلاصې دي.
رنبیر دننده په جګړه کې له شریکیدو څخه وړاندې داسې خبرې اوریدلې وې چې د محمود په لښکر کې داسې کوډګر شته چې خبرې یې په فتحه شویو سیمو کې هندوان دخپل مذهب په باب بدګومانه کوي، ځکه خو یې د بندی کیدو څخه وروسته دا ژمنه کړې وه چې داسلام د بلونکو د وعظ تر اغیزې لاندې به نه راځي، ځکه خو به چې کله د اسلام کوم مُبلغ دوی ته راتلو ده به په زړه کې د بوتانو د توصیف سرودونه زمزمه کول، خو نن د ناظم دخبرو په وخت کې دهغو دیوتاګانو یاد او تصور هم تکیه ورنکړه، د روغبړ نه وروسته چې کله دی دخپلې کوټې په لور روان شو، د ناظم دخبرو ډیرې جملې یې په غوږو کې کړنګیدلې اوده دخپلې ړچیدلې عقیدې دکلکولوهڅې کولې.
پاتې ټوله ورځ دې په ذهنی کشمکش کې وُ او د شپې هم ډیره برخه همدغسې پر خپله بستره ویښ پروت وُ او چورتونه یې وهل. دناظم دغه الفاظ چې ستا د جګړې په څیر ستا بندی توب هم بې هدفه دی، دیوه تیغ په څیر ده په زړه ښخیدل، ده دا خطر احساس کړ چې که یې غیر معمولی اراده او ثبات ونه ښودل، نو په دغسې څو نورو لیدنو کتنو کې به دده دعقیدې او باور برجونه رانسکور شي. ترډیره په ناکارۍ او اندیښنه کې له لټ په لټ

اوښتو وروسته يې وروستۍ پريکړه داوه چې بيا به هغه ته نه ورځم. او که هغه زما د وربللو هڅه وکړه، صفا به ورته وايم چې ته هسې زما وخت تيروې، دنړۍ هيڅ قوت هم ما دخپلو پلرونو او نيکونو له دين څخه نشي اړولی.

خو سبا ته د رنبير خيالونه بدل وو، هغه تر لږ ځنډه له بنديانو سره د وخت تيرولو هڅه وکړه، خو ډاډ يې حاصل نه شو، دهغه ضمير په وار وار ويل چې دا خو بې همتی ده ته بايد هغه ته دا ثابته کړې چې زړه مې د يوه کمره په څير مزبوت دي، او دچا د الفاظو جادو زما پر عقيده هيڅ اغيزه نشي کولی.

که يې نن وغوښتې، نو خامخا ورشه، هغه بيا هم يو نوابزاده دی دهغه څيره دهغه د لويې حوصلې ښکارندويه ده، امکان لري ته کومه داسې خبره وکړای شې چې دهغه غيرت په جوش راشی او تا د سپکاوی له ډکو شرطونو څخه پرته پريږدی ، کله چې تر ماسپښين پورې څوك دهغه د راغوښتلو لپاره را نه غلل، نو دی دزيات انتظار په ځای دهغه د استوګنې ځای ته روان شو، د رنبير د زړه له تل څخه يو بل غږ اوچتيده:

رنبيره! ته ځان ته دوکه مه ورکوه، ته دخپل جرئت د ثبوت په خاطر نه، بلکې دخپلې بې وسۍ د ښودلو لپاره روان يې، ته هغه يو جادوګر نه، بلکې خپل يو خواخوږی ګڼې.

کله چې دی دناظم کوټې ته ورننوت. هغه په کاتب څه ليکل. رنبير ته يې وکتل او بيا يې يوې کرسۍ ته اشاره وکړه ويې ويل:

کينه زه اوس وزګاريږم.

څو جملې يې چې پرې وليکلې، کاتب يې رخصت کړ او رنبير ته يې وکتل، ويې ويل:

ښه شوه چې ته راغلې که نه لږ وروسته نه ما پخپله راغوښتې.

رنبير يې په مخکې ناست وُ په زړه کې يې ځان ته کنځلې کولې چې ولې يې لږ ځنډ نور هم انتظار ونه کړ.

ناظم له لږ چوپتيا وروسته وويل: پرون ستاله تلو وروسته زما په خيال کې راوګرځيدل چې که د ځينو پيښو په سبب زما په خيالونو کې بدلون نه وای راغلې، نو زه به هم اوس ستا په څير د خپلو راجه ګانو او يا ديوتاګانو د سرلوړی لپاره دننده په جګړه کې شريك وای او بيا به په همدې کلا کې ستا سره ديوه بندی په نامه معرفي کيدم. په هغه صورت کې که دواړو له يو بل سره خبرې کولې، نو خامخا به يې له پرونيو خبرو سره توپير درلود. موږ به يو

له بل ځخه خامخا پوښتل چې ته له کوم ځایه راغلی یې؟ څومره خویندې وروڼه دې دي، مور او پلار دې په څه وضعه کې دي؟ او تا د چایاد ډیر ځوروي؟ نن ما همدا فکر کاوه چې ته کله راشې، نو دغسې پوښتنې به درځخه کوم. خوددې کلا د ناظم په حیث نه، بلکې دیوه عام سړي په حیث او که ووایم چې دیوه انسان په حیث ما هم د بند دغه سختې او ترخې د بې وسۍ شپې ورځې تیرې کړې دي چې دچا د اوریدو او دخپلو د اورولو هیلې له دیوالونو سره ټکر او سړې شي، ته ښایی ماته له راز ویلو ځخه ډډه ونه کړې.

رنبیرلږ خند وروسته وویل: د یوه انسان په حیث تا ته دځوابونو په درکولو اعتراض نه لرم، زما کیسه ډیره لنډه ده. زما ورور نشته، مور مې وفات شوې ده او یوه خور او پلار لرم، خو ته ګوره غلط ګومان ونه کړې، زه تاته دکوم فریاد او هیلې لپاره نه یم راغلی. دا یوازې ستا د پوښتنې ځواب و. د رنبیر غږ خپ شو او ده په سترګو کې دراخوټیدونکو اوښکو د پټولو هڅه کوله، خو لږ ځند وروسته یې د زړه براس ووت او ناظم ته یې دخپل کور او کلي دحالاتو په ویلو، دزړه د بوج د سپکیدو احساس کاوه.

ورو ورو دومره بې تکلفه شو چې په خبرو خبرو کې به یې په کړس کړس وخندل، خو بیا هم دغه خنداګانې د اوښکو په نم نمنجنې وې. بالاخره رنبیر وویل: زه اوس له تا ځخه پوښتنه کوم چې هغه کومه پیښه وه چې ستا خیالونه یې بدل کړل او ته په کومه جګړه کې بندي وې؟ ناظم وویل: زما داستان ستا له کیسې ځخه توپیر هم لری او اوږد هم دی. که ته دشپې په زړ ویده کیدو عادی نه وې. نو د شپې له ډوډۍ خوړلو وروسته دلته راشه. دواړه به ترناوخته پورې خبرې کوو.

# آشا

دشپې نرۍ باران اورېده، رنبير چې ډوډۍ وخوړه د کلا د ناظم هستوګنځی ته روان شو د ناظم ملازم په يوه کوټه کې کيناوه او ورته ويې ويل چې هغه له لمانځه څخه وزګار شي، راځي. لږ ځنډ وروسته ناظم راغی، درنبير په مخکې کيناست او خپله کيسه يې پيل کړه:

"عبدالواحد مې اسلامی نوم دی، دمسلمانيدو څخه مخکې مې نوم واس ديو ؤ. کانګړه مې د زيږيدو ټاټوبې دی او زه دداسې مور او پلار يوازينی زوی يم چې زما دهوښياريدو څخه مخکې مړه شوې دي، د نګرکوټ څخه څو ميله وړاندې ديوې سمسورې درې څو کلی زموږ ځمکې او جايداد ؤ. زما دپلارله مرګ وروسته زما کاکا زما د پالنې ذمه داری اخستې وه. زما دکاکا هيڅ اولاد نه ؤ ځکه هغه له ما سره بې کچه مينه کوله دهغه دا هيله وه چې زه هم دخپل پلار په څير عزت او شهرت ترلاسه کړم. د نګر کوټ د راجه لخوا موږ ته ديو سل او پنځوس تنو سپرو او څلورسوه پليو سپاهيانو دساتنې حکم راکړل شوې ؤ، ځکه زما په زړه کې د يوه ښه سپاهی کيدو هيله طبيعی وه، ماته د مذهبی تعليم لپاره کاکا يو مذهبی پنډت په خدمت ګومارلې ؤ، خو زما له کتابونو څخه زيات له دې سره مينه وه چې پوځی کمالونه زده کړم، زما دآس له سپرلی او په سيندونو او ډنډونو کې له لامبو سره مينه وه، زموږ په ټولنه کې د يوه سردار زوی ته له عامو خلکو په ځانګړې ډول له ټيټ ذاتو سره لوبې د شرم او عيب خبره وه او بد ګڼل کيدل، خو زما کاکا داستاذ د مخالفت سربيره ماته په کلی او شاوخوا کې د آزاد ګرځيدو راګرځيدو اجازه راکړې وه. د ټيټ ذاتو بزګرو او شپنو اولادونه له ماسره ډير بلد وو. زموږ په جايداد کې يوازې يو کلی داسې ؤ چې زه مې تره له ورتلو څخه ترې منع کړې وم او دا د ټيټ ذاتو کلی ؤ.

کله چې زه دوولس کلن وم د نګرکوټ راجه زموږ کره راغی، هغه زموږ سپاهیان ولیدل، ماپه څو لوبو کې برخه واخیسته، راجه مې د نیزه بازی او غشي ویشتلو څخه زیات خوښ شو، زما کاکا ته یې وویل:

زما امید دی چې ستا وراره دخپل پلار نوم روښانه کړي. خو ته باید دده پر زده کړه زیات پام وکړې، غوره به داوی چې دخو کلونو لپاره یې ښار ته راواستوې، څکه خو مې کاکا د نګر کوټ هغه ښوونځی ته واستولم چې د لویو سردارانو زامنو زده کړې پکې کولې.

د ښوونځی له برهمنانو څخه زما لومړنۍ زده کړه کړکه وه، ماته یې وویل چې ته نوابزاده یې، له برهمنانو او لوړ ذاتو پرته له هر چا څخه کرکه ستا فرض او ذمه واری ده ، ټیټ ذاتو ته نژدې کیدل پخوا هم زما په زړه کې نه راتیریدل، خو د نګر کوټ چاپیریال داسې و چې څلور کاله وروسته چې زه له زده کړو څخه وزګار او کور ته ستون شوم. نو د بزرګرانو هغو تنکیو ځوانانو ته مې هم په سپك نظر کتل چې په وړوکتوب کې به یې له ماسره لوبې کولې.

کورته زما د راتلو څخه څو میاشتې وروسته کاکا ناروغ شو، هغه د جایداد او سپاهیانو اداره ماته وسپارله . بیا مې ذا احساس کړه چې زما ژوند دومره غوره نه دی لکه چې ما ګومان کاوه. زما په جایداد کې څو واکمنې وې. زه د راجه د امر تابع وم او راجه د ویهند لوی راجه ته باج ورکاوه، د ځمکو له حاصل څخه له یوه پلوه ما دپوځ لګښت پوره کاوه او بل لوری هرکال د راجه خزانې ته یو لوی مبلغ ما ورکاوه چې د ویهند لوی راجه ته یې د باج په توګه ورکړي، خو په نګر کوټ کې یو بل حکومت داسې و چې دهغې په وړاندې عام اولس، راجه او لوی راجه ټول بې وسه وو، دا د نګر کوټ ددرمسال دپالونکیو حکومت و.

هرکال به د مالیې د ترلاسه کولو په وخت کې د نګرکوټ دمذهبی مشر نمایندګان ټولو ځمکه والو ته ورتلل. دهغوی همدا هڅه وه چې د مالیې په راټولولو کې له چا سره هیڅ نرمی ونکړي، ترڅو ددوی برخه تر هر څه زیاته وي، دهغوی په مخکې د راجه او یا ځمکه وال د سوږ وهلو توان نه و.

کله به چې مذهبی مشر اعلان وکړ چې سږ کال به په درمسال کې د پلانکی دیوتا د طلا او یا سپینو زرو بوت دروو. نو په اولس به یې مالیه

زیاته حواله کړه او دې خلکو به دهغوی له خولې وچه ډوډۍ هم وشکوله او ورسره یو به یې وړه.

ما اوس داسې احساسوله چې د نګرکوټ په درمسال کې مې څومره انبارونه لیدلې وو، هغه د دیوتاګانو له برکته زیات د برهمنانو دسخت زړی توب نمونه وو، خو ماته یې داسې ښوونه کړې وه چې مذهبی ملایان ددین ساتونکی دی او راجه او اولس ټول د دوی د خدمت او ساتنې مسؤولیت لري.

دشمال او ختیځ په لوړو غرونو کې ډیرې داسې درې وې چې تراوسه یې اوسیدونکی د بودایی دین پیروان وو، دغه خلکو له ډیرې مودې راهیسې د نګر کوټ د راجه او مذهبی پیشوایانو دغبرګې غلامۍ څخه ځانونه خلاص کړې وو او د نګر کوټ د مذهبی مشرانو له نظره دغه خلك له ټیټ ذاتو څخه زیات دکرکې وړ وو. د نګر کوټ پوځ پر هغوی څو ځلې حملې وکړې، خو ددغو یرغلونو لوی هدف به زیاتره لوټ او تالان ؤ.

دغه خلك به چې کله د یرغل څخه خبر شول واورینو غرونو ته به وختل او د نګر کوټ پوځ به چې له لوټ او وژنو څخه بیرته ستون شو، د لوټ مال به زیاتره کورنې ځاروی وو. کوم خلك به چې اسیران شول، هغوی به زیاتره ځای پر ځای وژل کیدل او نګر کوټ ته به یې یوازی داسې کم عمره بندیان راوستل چې د "کالی دیوې" پر درشل به دقربانولو جوګه وو.

دنګر کوټ ظلمونو هغه خلك ورو ورو جګړه ماران کړل.

یو ځل د نګر کوټ پنځه زره تنه سپاهیان دشمال ختیځ د سیمو له لوټلو څخه وروسته بیرته راستنیدل چې په یوه تنګۍ کې پرې ماښام شو، د پوځ د سردار داسې خیال ؤ چې په شپه کې به له څو میله مزله وروسته کوم هوار میدان ته ووځي، په دې یرغل کې د نګر کرټ لښکر غرنی خلك سخت وویرول او چاپر دوی د حملې تصور نشو کولی، خو چې لمر ولوید، د پوځ د لارې په اوږدوو کې یوې او بلې خوا ته د ونو تر شا پټو وسله والو کسانو پر پوځ ناڅاپی دغشو او ډبرو باران پیل کړ، نژدې تر دوه میله پورې دپوځ په مخکې همدغسې تنګه لاره وه چې دښمن له کوم خطر پرته یوازې د ډبرو پر باران پوځ تباه کولی شوای، خو دا د نګرکوټ د پوځ نیکمرغی وه چی کومو خلکو چې ځوابی حمله وکړه، دهغوی شمیر ډیر لږ ؤ، بیا هم تر درې پورې چې

ورسيدل، دنګر کوټ دوه زره تنه پوځيان وژل شوي وو ، هغو خلکو د خپلو ځارويو نه پرته خپل بنديان او ددښمن وسلې هم ونيولې او ورسره يوېې وړې.
له دې پېښې وروسته د نګر کوټ راجه او يا مذهبی مشر پر هغو غرنيو خلکو د يرغل جرئت ونکړ.

زما پلار د پوځ د اعلی قوماندان په حيث د نګر کوټ تر راجه زيات د مذهبی پيشوا د خوښی په خاطر د ژوند پر وروستي کال پر هغو خلکو يرغل وکړ او زياته سيمه يې ترې ونيوله. خو په يخنۍ کې يې ددې سيمو د نيولو پلان ګران وګاڼه د مذهبی پيشوا او راجه په امر يې هغو خلکو ته دا شرط وړاندې کړ چې که د ماليې په ورکولو راضي وي، نو له دوی سره به څه کار نه لري، غرنيو خلکو دغه شرط ومانه او د نګر کوټ د راجه پوځ بيرته راستون شو. ترڅو کلونو پورې پرليسې دی خلکو دخپلو عايداتو ځلورمه برخه نګر کوټ ته استوله. خو د راجه چارواکو او ددرمسال پالونکيو د خپل عادت له مخې يو ځل بيا لوټ ماري پيل کړه. هغه خلك هم بيا په تنګ شول او د جزيې له ورکولو څخه يې ډډه وکړه.

ما دا پيښې ځکه په تفصيل سره يادې کړې چې زما له کيسې سره ژورې اړيکې لري. زما کاکا دناروغۍ په وخت کې تر تولو لويه هيله دا درلوده چې زما واده وشي. ځکه يې د نګر کوټ ديوه سر‌ . لور سره زما کوژده وکړه. دهغه سردار نوم جګت ناراين و او د راجه نردې خپلوان و. زما تره پردې خپښۍ ډير خوشحاله و خو زما د کوژدې څخه يوه نيمه اونۍ وروسته هغه مرګ ورسره واخيست.

* * * * *

دا هغه وخت و چې په پنجاب کې په شمال لويديځو سيمو کې موږ د سلطان محمود برياوې ناکراره کړي وو، يوه ورځ د راجه په امر د نګر کوټ ټول سرداران راټول شول. هلته يې د ويهند راجه ته دمرستې په باب غور وکړ. له دې سره دا خبره هم رامخې ته شوه چې غرنيو خلکو له څو کلونو راسې ماليه نه ده ورکړې. له هغوی سره څه سلوك وکړای شي.

دځينو سردارانو رايه داوه چې اوس بايد يوازې د سلطان محمود لوری ته پام ور واړوو. د مسلمانانو د خطر له لرې کيدو وروسته هغه خلك هر وخت

ځېل کېدای شي، خو ددرمسال مذهبي مشر او د راجه د پوځ سرلښکر او د ځينو سردارانو رايه داسې وه چې موږ بايد لومړی له همدې خلکو سره خبره سپينه کړو.

زه پرډې خبره حيران وم چې دې خلکو ته دځو کاله چوپتيا وروسته پر غرنيو خلکو د يرغل خيال ولې هغه مهال ورنه غی چې کراره کراری وه، اوس خو د ويهند راجه ته مرسته زياته ضروري وه. خو چې کله په حقيقت پوه شوم، زما حيرانی هم لرې شوه.

د پوځ سرلښکر د مسلمانانو دزړورتيا کيسې اورېدلې وې او هغه د يوه ځواکمن دښمن مخې ته له ورتلو څخه ويرېده، څرنګه چې د ويهند دناآرامو حالاتو په سبب کرار په کور کيناستل ورته ګران وو ځکه خو يې ځانته د يوې آسانه جبهې غوره کول غوښتل.

له مذهبی مشر سره د درمسال د شتمنی غم و. دهغه داګومان و چې په عادی حالت کې ښايی محمود دې لرې غرنی سيمې ته مخه ونه کړي. خو د نګرکوټ پوځ که په ويهند کې ماته وخوره. نو ددې اټکل کيدای شی چې تر د نګر کوټ پورې محمود ورپسې راشي. دسردارانو هم اکثريت له کور څخه لرې د يوه لوی خطر پرځای، کورته نژدې د يوه وړوکی خطر قبلول غوره وبلل.

راجه له مجبوری د پوځ د سرلښکر او مذهبی پيشوا پريکړې ته سر ټيټ کړ. خو دده ورو ستی هڅه دا وه چې د نګر کوټ هر سپاهی بايد په دې جګړه کې برخه واخلي. ترڅو پوځ له دې عملياتو څخه وزګار شی او ژر تر ژره د ويهند مرستې ته ولاړ شي.

خو مذهبی پيشوا بيا د راجه مخالفت وکړ او پردې خبره يې زور راوړ چې ددې کار لپاره يوازې دځمکه والو پوځ بس دی . د نګر کوټ منظم پوځ بايد ددرمسال د ساتنې لپاره پرځای پاتې وي، بالآخره دا پريکړه وشوه چې د منظم پوځ نيمايی برخه په دې عملياتو کې د ځمکه والو له پوځ سره يو ځای شی او نيمايی نور يې ددرمسال د ساتنې لپاره پاتې شي.

د پوځ سر لښکر اته زره تنه سپاهيان په درې برخو ووېشل. ده پخپله له څلور زره لښکرو سره د ختيځ په لور مخه وکړه. دوه زره تنه يې د سردار جګت نارايڼ په قومانده شمال لور ته واستاوه او هدايت يې ورته وکړ چې د

شمال له لوری ختیځ ته دغرنیو سیمو په لمن کې راتاو شي. او هلته دې د نور پوځ انتظار کوي، پاتې دوه زره تنه یې د یوه بل سردار په قومانده جنوب لوری ته واستول او لاربښوونه یې ورته وکړه چې دجنوب له لارې هماغه تاکلی ځای ته ځانونه ورسوي، په هوارو سیمو کې ددښمن د تیت پرك لښکر د تباه کولو لپاره دغه پلان کامیابیدای شواي.

خو دغرونو په یوه نه ختمیدونکی لړۍ کې دداسې پلان د برې هیله بې عقلی وه.

غرني خلك دخپلې سیمې لویشت په لویشت کې بلد وو او تقدیر پل پر پل سیمه د دوی لپاره دمورچل په څیر جوړه کړې وه.

خو د لوړ ذاتو دبدبه بیا داسې وه چې هغوی یو ځای هم مقابله ونه کړه، زموږ په پوځ کې یوازې څو تنو سردارانو آسونه ورسره راوستې وو خو چې غرنیو سختو لارو ته ننوتو آسونه یې په یوه خوندي دره کې پرېښودل، زه او سپاهیان مې د سردار جګت نارایـن په پوځ کې وو. دهغه دوه زامن هم په دې جګړه کې شامل وو. زموږ دمیرانې د لیدو لپاره د مذهبی مشر یو ورور هم زموږ له پوځ سره ملګری و . ترڅو ورځو پورې موږ له کوم خاص مقاومت سره مخ نه شوو، کوم کلی چې زموږ مخې ته راغلل. ټول له یوې مخې له خلکو څخه تش وو، خو که چیرته به کومه ښځه ،ماشوم او یا بوډا پاتې و زموږ سپاهیانو به دخپلو تورو تیره والی پرې آزمایه. خو دا لوبه زما هغه وخت هم نه خوښیده چې زړه مې دخپل دین دهغو دښمنانو له نفرت او کینې څخه ډك و، یوه ورځ موږ په یوه ډیره هواداره دره کې تم شوو، څو تنو سپاهیانو له یو ویجاړ کور څخه دوې تنې ښځې او درې ماشومان په کشولو راوستل، جګت نارایـن هغوی په ونو پورې وتړل او د پوځ وتلیو کسانو ته یې په هغوی دښيې ویشتلو بلنه ورکړه، مایې په خلاف احتجاج وکړ، هغه په غوسه شو ویې ویل:

له تانه ښځه جوړیږي، واسد یوه! ددښمن پرخلاف د یوه نوابزاده زړه ترکانې هم باید سخت وي.

ما ځواب ورکړ: تر اوسه ما دا پریکړه نه ده کړې چې دغه بې وسه ښځې او ماشومان زموږ دښمنان دي.

هغه وویل: ستا په ګومان موږ دلته له ډېرو سره جګړې ته راغلي یو؟ ماته وګوره او له دې سره یې له لیندۍ څخه پرهغوی غشي ورخوشې کړ، غشي د یوه ماشوم په ټټر ونښت، له دې سره له څو نورو لیندو څخه هم په یو شن غشي والوتل او د ښځو او ماشومانو کریږې په ډېرو کړسندو خنداګانو کې ورکې شوې. جګت نارایڼ او دهغه زامنو او څو نورو سردارانو په فاتحانه موسکا ماته راکتل.

له هغې وروسته چې ما څه ولیدل له دې پیښې زیات دردناك وو او زه یې په تفصیل کیسه کول نه غواړم.

یوه ورځ په یوه ګڼ ځنګل کې دښمن پر موږ یرغل وکړ، خو موږ ډېر زر هغوی په شا تګ ته مجبور کړل، راتلونکی ورځ موږ ته یو خوږ مخې ته راغی چې د دوو غرونو په منځ کې یې ژوره کنده جوړه کړې وه، له ټولې ورځې خوارۍ وروسته موږ یو داسې ځای ته ورسیدو چې د لرګیو پل جوړ کړو او له خوړ څخه پورې وزو، د لرګیو هلته کمی نه و، ځکه مو بله ورځ پل جوړ کړ او بلې غاړې ته پورې وتلو، ما داحتیاط لپاره جګت نارایڼ ته مشوره ورکړه چې ددې پله د ساتنې لپاره دڅو تنو پهره ضروری ده، امکان لری موږ ته دځه خطر په وخت ددې ضرورت شي. جګت نارایڼ له لږ او ډېر بحث وروسته پر پله شل تنه غشي ویشتونکی پهره ودرول، هغوی ته یې امر وکړ چې تر سبا پورې پُل وساتئ او بیا له نور پوځ سره بیرته یوځای شي.

د جګت نارایڼ د اټکل له مخې زموږ وروستي منزل ته باید د نور پوځ انتظار وکړو، پنځوس میله لاره وه، خو له پله نه لږ وړاندې موږ د تلو پرځای ښویدلو، زموږ شی لوری ته دنګ غر او کیڼ لوری ته ژور خوړ و. مخامخ د غره سرته ختل ممکن نه وو او دغره په لمن کې دخوړ په څنګ کې تلل هم ډېر ګران وو، تر ماسپښین پورې موږ په ډېر زحمت ایله دوه میله لاره ووهله، له هغې وروستا د غره پیچومی داسې و چې ډېرې مو باید ماتې کړې وای او لاره مو پکې جوړه کړې وای،

ما جګت نارایڼ ته مشوره ورکړه چې باید وګرځو او کومه بله لاره وګورو، هغه ځواب راکړ:

اوس به زموږ په لاره کې همدغسې غرونه راځي.

ما وویل: که ستا دا پریکړه وي. نو باید بیرته وګرځو او چیرته په کومه پخه برخه کې واړوواو د پوځ ځو ډلګۍ د لارې په جوړولو وګماروچې لاره جوړه شي پوځ ته به دکوچ امر ورکړې که نه په دې وضعه کې خوکه ددښمن ځوتنه هم چیرته غلي ناست وي یوازې دډبروپه اورولوبه زموږ پوځ ټول تباه کړي.

خو جګت ناراین له هغو خلکو څخه ؤ چې خپله هره غلطي سهی ثابتول غواړي، هغه ځواب راکړ:

ما دغه غرنۍ سخته دره دهمدې لپاره غوره کړې ده چې دښمن له دې لوری بې پروا وی او هغوی به په کومه بله لاره پهره کوي.

ماوویل: دا امکان لری چې د دښمن کوم سړی موږ پرخوړ دپله جوړولو په وخت کې لیدلې وو او دا هم امکان لری چې هغه نوروته هم دا خبر ورکړی وی اوهغوی د شاله کومې آسانې لارې ددې غره څوکې ته ځانونه رارسولې وي.

جګت ناراین په غوسه کې وویل: زه له تاسره بحث نه کوم، که ستا همت ځواب ورکړی وي، نو بیرته تلای شې، چې کله موږ کوم خوندی ځای ته ورسیدو، بیا به احوال درکړو چې اوس څه خطر نشته، تشریف راوړه!

د خپل خسرله خولې ماته دا خبرې له زغم نه وتلې وي،، په غوسه شوم ومې ویل:

چې کله دمیړانې د ښودلو مهال راغی، ته به بیا ماته د بې همتۍ پیغور رانکړې شې

جګت ناراین غوښتل څه ووایی چې خوله یې وازه پاتې شوه، د غره له سره یو ویرووونکی غږ اوچت شو او سپاهیانو چې ورو ورو ګامونه اخستل په حیرانی یو بل ته کتل، زما اندیښنې پر ځای وې. پر موږ د ډبرو باران پیل شوې و. لږ ځنډ وروسته د هیچا حواس پرځای نه وو، هر چاته ترېښنو لاندې ځمکه سره تبې شوه او غوښتل یې د بل پرځای خوندی شي، یو بل یې ټیل وهل، څوك چې شاته وو مخې ته یې ځانونه رسول او چې مخې ته وو، هغوی شاته زورونه وهل، څوك چې تر ډبرو لاندې راغلل، د خوړ تل ته پریوتل. خو څینې داسې هم وو چې یوازې له ویرې یې خوړ ته ټوپونه ووهل.

جګت ناراین په یوه ونه پورې نښتی و او په پوره زور یې چیغې وهلې، خو ښایی هغه پخپله هم نه پوهیده چې څه وایي، بالآخره سپاهیانو دا

احساس کړه چې له شاته ګرځېدو پرته بله هېڅ لاره نه شته، خو تردې وخته درې څلور سوه تنه خوږ ته لوېدلې وو.

په کومه خطرناکه لاره چې موږ په پوره پام یو یو ګام اخیست، اوس په بیرته تګ کې په منډه روان وو، زموږ نیکمرغي دا وه چې ځای ځای دغره لمن د ونو څخه ډکه وه، او دښمن ډیر ځایونه بیله دې چې موږ ووینی هسې یې په اټکل ډبرې غورځولې، خو پر هر ځای کې زموږ دسپاهیانو د وراخطایی دا حال و چې څومره سپاهیان د ډبرو په لګیدو وژل کیدل، تر هغې زیات له یو بل سره د ټکر په سبب کندې ته ولویدل او مړه شول.

څومره چې موږ پله ته نږدې کیدو د ډبرو باران کمیده، خو له پله نه نیم میل لرې زموږ پر سر لوخ ګړنګونه وو او څو تنه دهغو پر سر زموږ په انتظار وو، هغوی پر موږ پر ډبرو سربیره . غشي هم اورول. زما اټکل داو چې په دې څلور پنځه سوه ګزه کې زموږ دځانی زیانونو اندازه دتیرې ټولې لارې نه زیاته وه، یو غشي زما پر مټ ونښت. خو په داسې وخت کې دداسې زخم احساس هم راته ګران و.

له دې خطرناك ځای څخه تر پله پورې زموږ لاره ښه پخه وه، او پاس پیچومې هم ډیر خطرناك نه و. یوه یوه ډبره دلته اوس هم راغورځیده. خو دهغه توپان نه وروسته دا اوس زموږ لپاره داندیښنې وړ نه وه. خو تراوسه دهر سپاهی دا هیله وه چې پر پله تر نورو دمخه تیر شي. د جګت نارایڼ یو زوی زما په مخکې په ډبره وخېل شو او لاندې کندې ته پریوت د بل یې هېڅ درك نه و.

د لارې وروستی ګرځندې ته چې موږ ورسیدو ومولیدل چې ددښمن پنځوس شپیته کسو پر پله حمله ور وړی او دخوږ په بله غاړه په مورچلو کې ناست زموږ غشي ویشتونکی چې د پله پر ساتنه ګومارل شوي وو دهغوی د لرې شړلو هڅه کوي.

موږ له څه درنګ پرته پرهغوی حمله یووړه، دغه خلك وارخطا شول او شانه وتښتیدل، خو زه له څو سپاهیانو سره په هغوی پسې ور ورسیدم. اوس له پله نه وړاندې لاره نه وه او لاندې ژوره کنده وه. ددښمن کسان کلك بند شول بالاخره یې له مقابلې پرته بله لاره نه وه. په دې کې پنځلس شل کسان

زموږ له کلابندۍ څخه تير شول او پر غره وختل، نور دځلوېښتو په شاوخوا کې کسان يو هم ژوندي پاتې نه شو، يا موږ تر تيغ تير کړل او ياپي ځانونه په کنده کې وغورځول، خو ددې په مقابل کې موږ خپل نيمايي لښکر له لاسه ورکړې و.

جګټ نارايڼ خپل اعصاب له لاسه ورکړې وو، د ليونو په شان يې خپلو زامنو ته چيغې وهلې او پوځ په ډيره بې نظمۍ کې له پله تيريده، زه د پله پر ماتيدو ويريدم. ځکه په منډه ولاړم دپله تر څنګ ودريدم. زما په چيغو او فرياد دسپاهيانو وارخطايي لږه کمه شوه، خوتراوسه لا دوه سوه سپاهيان دې لورې ته وو چې دغره له لمنې څخه د غشو باران راباندې پيل شو، له دې سره سم ددښمن په سلګونو تنه له غره څخه را ښکته شول او نارې يې وهلې، زموږ په لور راغلل. په دې نازک پړاو کې پنځوس شپيتو ځوانانو له ماسره ملا وتړله موږ وروړاندې شوو، ددښمن لاره مو بنده کړه، ما په ورانه او اوږو دوه د تورو زخمونه وخوړل، ډير ملګرې مې ووژل شول. خو موږ دښمن پرېښنبود چې پله ته نژدې شي. لږ ځنډ وروسته پاتې پوځ هم له پله څخه تير شو. زما سره پنځلس يا شل تنه پاتې وو، موږ په جګړه، جګړه کې شاته تلو. خو ددښمن يوې سختې حملې مو پښې وښويولې او زما ملګرو په يوه وخت په منډه له پله څخه دتيريدو هڅه وکړه، ما لا په پله پښه اېښوده چې مات شو، ما سمدستي خوړ ته توپ وواهه. له دې خوړ څخه ژوندي وتل، يوه معجزه وه. له پله څخه تير شوې وو او ځينې نور له هغو شا تيرونو سره نښتې وو چې يو سر يې د پله په پورې غاړه په رسيو کلک تړل شوی و. داوبو يوې څپې هغوی هم په غيږه کې واخستل. موږ که څه هم ددښمن دغشو تر دم لاندې وو، خو بيا له پورې غاړې هغوی زموږ د نور پوځ تر بريد لاندې وو او بيا يې چې موږ داوبو په څپو کې وليدو جنګی قانون يې زموږ څخه توپير درلود او پر موږ يې له غشو اورولو څخه ډډه کوله.

زه په يوه ګرداب کې راګير شوم او دڅو غوټو له خوړلو څخه له هر څه بې پروا شوم.

تقدير راسره ملګرې و، ترڅو شيبو د مرګ او ژوندله کشمکش سره ترلاس او ګريوان کيدو وروسته په يوه لوی شاه تير پورې ونښتم، بيا هم زما باور و

چې دغه تکیه به مې هم لنډه مهالې وې. اوتوندې څپې به مې له کوم کمره سره ووهې، خو دخوړ ژوروالی ورو ورو کمیدو، له دې سره ددواړو څنډو لوړوالی زیاتیدو، اوس زه له خپلو ملګریو څخه خبر نه وم. دغه ننداره دومره ویروونکې وه چې کلونه وروسته اوس هم د هغې له تصور څخه زما غونې زیږه شي. شاه تیر څو ځلې کله یوې او کله بلې څنډې ته ورسره یوړم، خو ما د څنډو په هغو نیغو دیوالونو دختلو تصور هم نشو کولی. زما په زړه کې کله دا خیال راتلو چې ناڅاپه به چیرته دخوړ غیږ پراخه شي، خو ددې خبرې ډیر امکان و چې زه څنډې ته د وتلو په ځای، دسیند په منځ کې له کومې راوتلې ډبرې سره ټکر او ټوټه ټوټه شم.

او یا ناڅاپه اوبه ترکوم ځړوبې تیریږي او دا زما وروستی منزل وي، ماته ددې خبرې اټکل هم ګران و چې څومره لرې راغلی یم، اوبه د واورو په څیر یخې وې، د ټپونو تکلیف زه بې دریغه بې سیکه کړې وم. او پردې پوهیدم چې که لږ ځنډ نور په اوبو کې پاتې شم، نو له کومې حادثې پرته به مړ شم. یوځای د خوړ غیږ لږ زیاته یخه تر نظر راغله اولږ ځنډ وروسته مې د اوبو ډلاندې تویدو غږ تر غوږو شو.

بیا مې ولیدل چې د خوړ مخې ته یو لوړ کمر راغی او هغې داوبو لوری یو په یو اړولی دی. لږ ځنډ وروسته زه په یوه دایروی مسیر یوه وړوکی جهیل ته ووتم، که هغه زه د ډنډ "جهیل" پرځای یو لوی ځاه وبولم، نو ډیر به غوره وي، د خوړ اوبه په دې ویروونکی ځاه کې له یوې دورې وروسته ناڅاپه په یوې کندې کې لویدلې، یوازې د اوبو له شور څخه ما ددې کندې د ژوروالي اټکل کولی شوای. زه شیبه په شیبه د ځړوبې خواته ور نږدې کیدم، په یوه ځای کې مې دڅنډې له کمر څخه وتلې یو مړوې ولید چې دیوه بالښت په اندازه له اوبو څخه جګ و، له دې مړوې څخه پاس څو وړې وړې زینې جوړې شوې وې او دهغو شاته په کمره کې یولوی سوری ښکاریده.

*****

تقدیر د مرګ له کومې زما د ژغورنې پریکړه کړې وه، د ګرداب څپو شاه تیر تیل واهه او موږې ته یې نژدې کړ، د ژوندي پاتې کیدو هیلې زما په بې سیکه بدن کې یو نوی ځواك راپیدا کړ او لږګی مې پرېښود په مړوی ورپورته شوم".

عبدالواحد تر دې ځایه خبره را ورسوله او بیا له لږ چوپتیا وروسته هغه رنبیر ته وکتل او زیاته یې کړه:

کیسه رانه اوږده شوه، ته خو به ستومانه شوې نه یې؟

رنبیر ټکان وخوړ ځواب یې ورکړ:

نه نه، داسې داستان ته ټوله شپه ویښ کیناستلی شم.

ماته داسې ښکاري چې پخپله دمرګ له کومي راوتلې یم.

عبدالواحد خپله کیسه بیا پیل کړه ویې ویل:

تر لږ ځنډ وروسته پر مړوی کیناستم اود شا وخوا په باب مې فکر وکړ، دمړوی په اړخونو کې داسې علامې وې چې له دې ځایه د اوبو مشکونه ډك شوې وی او دانسانانو دتګ راتګ ځای وي، پاس زینې هم همدغه ګواهي ورکوله. زما باور و چې له دې لارې څخه بهر ته ووزم کوم کلی ته به لاره وباسم، خو ددې سیمې دکوم کلي تصور راته خطرناك و. پاس دهوا رنګ داسې و چې ماښام ته لږ وخت پاته وی د یخنی نه کرختی او له ټپونو څخه بې حالی دومره بې وسه کړی وم چې څو ګامه دتلو همت راسره نه و. خو له دې سره دا اندیښنه راسره وه چې که له ماښام څخه دمخه مې کوم دپناه ځای ته ځان ونه رساوه، نو دشپې به له یخنی نه وچ کلك او مړ شم. بالآخره نګوښیدلی جګ شوم، په کمره کې پر تراشلیو زینو وختم، څو ګامه مې چې واخستل د پښې او مټ د زخم له زغم نه وتلي درد مې سترګې تیاره کړې، بیا مې هم همت ونه بایله. او ورو ورو مې ګامونه اوچت کړل او پورته وختم، زه به لس پنځلس ګامه تللې وم چې له لرې مې څه غږونه واوریدل، څو شیبې بې حرکته او چوپ ودریدم، داسې مې احساس کړه چې څوك له ځانه سره ورو ورو څه سندره زمزمه کوی او زما په لوری راځی، زر مې خپل خنجر چې تر اوسه مې پرملا ځړیده راوویست، خو بیا مې په خیال کې راغلل چې راتلونکی چې ما له پاسه ووینی شور به ګډ کړی او دسترګو په رپ کې به یې

ملاتړ کوونکی راورسیږي، څکه خو که زه بیرته لاندې ښکته شم هلته به یې په ناپامی کې یوازې راګیر کړم، څکه خو زه بیرته ډیر په زحمت ښکته ولاړم او په تنګه لاره له کمره سره جوخت ودریدم، هره شیبه چې تیریده، زما تکلیف زیاتیده.

دسندرې زمزمه کوونکی ورو ورو ماته نژدې کیده، ما احساسوله چې دا د کوم نارینه نه، بلکې د ښځې آواز دی، خو په هغه حالت کې ماته یو ماشوم هم خطرناك کیدای شوای، بالآخره یوه نجلۍ دمنګی سره راښکاره شوه، بیله دې چې ماته یې پام شی وړاندې ولاړه په مړوی یې پښه تکیه کړه او منګی یې په اوبو کې ډوب کړ، زه پوهیدم چې هغه کله منګی ډك کړی او بیرته مخ راوګرځوي، نو مابه خامخا ووینی او زه به یې په آسانی په یوه ډیکه ویروونکی ګرداب ته ور وغورځوم، خو ددې سره چې د هندی دیوتاګانو نمانځونکی وم زما همت ځواب راکړ. زه له خپل ځایه رالرې شوم او د زینې مخې ته ودریدم، هغې منګی له اوبو راویوست راپورته یې کړ او جګه شوه ودریده، بیایې چې پر ما سترګې ولګیدې یوه وړوکې چیغه یې وکړه او حیرانه ودریده . هغه یوه ښکلی او ځوانه نجلۍ وه.

ماخپل خنجر ټینګ کړ ومې ویل:

مه ویریږه. تاته هیڅ نه وایم، خو که دې شور ګډ کړ. نو له لاس اوچتولو څخه دریغه نه کوم.

نجلۍ په ویریدلی غږ وویل: نه... ته څوك یې؟

ما وویل: ته یوازې زما ځواب راکړه، په تا پسې بل څوك هم دلته راځي؟

هغې وویل: نه ، خو که تا ماته لاس رانژدې کړل، زه به ګرداب ته ځان وغورځوم.

ما نور د دریدو توان نه درلود ، د زینې په یوه پایه کیناستم او نجلۍ ته مې وویل:

ستاسو کلی له دې ځایه څومره لرې دی؟

هغې ځواب راکړ: ډیر نژدې دی.

ما وویل: ددې مطلب دادې چې تر ماښامه به ډیر نور کسان هم له دې ځایه اوبه وړي؟

نه! کلی تش دی، خلك ځنګلونو ته تښتیدلي دي.

ما ورته وویل چې ته یوازې په رښتیا ویلو خپل ځان ژغورلی شې، زما وعده د یوه نوابزاده وعده ده.

هغې وویل: زه رښتیا وایم.

ما وویل: زه دا څنګه ومنلی شم چې د کلي خلکو ستا په څیر یوه نجلۍ یوازې پریښی او ځنګل ته تښتیدلی دي!

نجلۍ ځواب راکړ: زه له خپل بابا سره یم، هغه ړوند دی، ما هغه یوازې نه شو پریښودلای، زما ورور هم تراوسه بیرته نه دی راستون شوی، که هغه راغلی وای، نو موږ به هم خپل بابا کومې خواته راسره بیولی و.

دنجلۍ دالفاظو څخه زیات دهغې اوښکو زه بې ځوابه غوندې کړم، بیا هم زه پوره باوری نه شوم ، ومې ویل: ته به ترماښامه همدلته وی که څوك رامعلوم شول، نو دی ګرداب ته به دې وغورځوم، خو که دې خبرې رښتیا شوې ، نو زه به ستا سره تر یوه ځایه له دې ځایه ولاړ شم.

زما دې خبرو د نجلۍ ویره په کرکه او نفرت بدله کړه، په غوسه یې وویل: نه ته ما وژلی شي، خو زه تا خپل بابا ته نشم راسره بیولی، ما هغه داسې ځای پریښی او راغلې یم چې ته یې نشی موندلی.

ما فکر وکړ چې که مې تر څه ځنډه د پناه ځای ونه موند، نو شپه به شی او ژوند به مې همدلته پای ته ورسیږي. که په تیاره کې ووتم، نو د شاوخوا لیدل به راته ګران وي، بیا که لاره هم وینم تګ مې له وسه پوره نه دي، دغه نجلۍ زما وروستۍ امید وه، دهغې له مرستې پرته ماته د سبا ورځې لمر لیدل له امکان څخه لرې وو، د بې وسۍ احساس مې دقومی غرور برجونه رانړولې وو، د نجلۍ له کتلو څخه معلومیده چې هغه زما د تکلیف څخه پوه شوې ده ویې ویل: زه پوهیږم چې ته د نګرکوټ د پوځ سرتیری یې، خوزه د رحم سوال نه درنه کوم، که تا زما د وژلو پریکړه کړی وي، نو صرفه مه کوه، ستا په لاس کې خنجر دی او زه به خپلې سترګې پټې کړم، خو که ددیوتاګانو پر نمانځنې برسیره انسانیت تا پریوې ښځې دلاس اوچتولو څخه ایساروي، نو لاره مې پریږده، دغه سیمه له ځیرونکو ځناورو څخه خالی نه ده چې لمر ولویږی دکلی پر لاره ډیر زمریان او پړانګان پهره کوي.

ما خپل خنجر وغورځاوه، په زحمت او چت شوم او لاره مې پرېښوده، ورته ومې ویل:
ته تلای شې.
زما دغه کار دهغې پر زړه بې اغیزې پاتې نه شو، له څه زړه نازړه کېدو وروسته یې منګې اوچت کړ پر سر یې کېښود او چې پر زینه یې پل کېښود، ماته یې شاته راوکتل ویې ویل: ته ټپي یې؟
ما هغې ته دځواب ورکولو په ځای له درده سترګې پټې کړې هغې وویل: ته شپه دلته نشې تېرولی، زما سره راځه!
پرته له دې چې څه ووایم ورپسې روان شوم. پیچومې سخت و او ما په ډېر زحمت یو یو ګام اخست. له هرو پنځلس، شل ګامونو څخه د نیم بیهوشی په حالت کې ددمې لپاره کیناستم او هغه به ودریده، زما انتظار به یې کاوه، لږ ځنډ وروسته دتنګې او تیارې لارې له وهلو وروسته موږ بهر خلاصې سیمې ته ووتو، زما کینې لوري ته یو سمسور دنګ غر و، ښې لاس ته لاندې هماغه ژوره کنده وه چې دځوبي اوبه پکې لویدلې او وړاندې دغره په څوړه کې په یوه شیله کې څو څپرې معلومیدې، خو نور له ماسره دتلو توان نه و. په ښنو وښو پړمخې پرېوتم، نجلۍ منګی کېښود، راغله زما سرته ودریده او په تسلي یې راته وویل: هلته وګوره، هغه زموږ کلی دی، لږ همت وکړه. زه حیرانه یم چې تا په دې حالت کې هلته څه کول؟
ما ځواب ورکړ: زه په څوړ کې اوبو هلته راوړم، او ښایي د کوم دیوتا د راتلو انتظار مې کاوه.
لږ ځنډ وروسته زه بیا اوچت اوروان شوم. څومره چې کلي ته نژدې کیدم اندیښنې مې لږې کیدې.
هغې په یوه لاس غوښتل ماته تکیه راکړي او زما زړه ګواهي راکوله چې دا دکوم دښمن لاس نه دی.
له کلي څخه بهر یوه کمزوري بوډا په دردناك غږ آشا، آشا، چیغې وهلې او سرګردانه یوې او بلې خواته ګرځیده. نجلۍ غږ پرې وکړ: بابا راغلم!
بوډا غیږه خلاصه کړه او بې اختیاره مخې ته راغی ویې ویل: لورې! ډېر ځنډ دې وکړ، که ته لږ ځنډ نوره نه وای راغلې، نو ښایي ما لاره ورکه کړې

وای او چیرته کندې ته لویدلی وای . نجلۍ زه پرېښودم د بوډا لاس یې ونیو او هغه یې د یوې څپرۍ لوري ته بوت، زه نژدې د وچو وښو په یوه انبار پرېوتم، لږ څنډ وروسته ما دنیم بیهوشی په حال کې سترګې پرانیستې چې هغې زه تر متهو نیولې وم او غوښتل یې اوچت مې کړي، ماته نه ده معلومه چې زه له هغه ځایه ددوی تر څپرۍ څه ډول ولاړم، د شپې په لومړۍ برخه کې چې را په خود شوم، په یوه بستره پروت وم او ټپونه مې ټول پټې شوي وو، د کوټې په یوه کونج کې اور بلیده، زما ترځنګ په یوه بل کټ بل څوك ویده وو، ما د تندۍ له زوره اوبه وغوښتې، آشا چې ښایی ټوله شپه نه وه ویده شوې،زما د غږ په اوریدوله بلې کوټې راغله، ماته یې اوبه راکړې اوویې ویل:

ته له شپې راسې وږې یې، ما شیدې درته پرېښې دی اوس به یې درته تودې کړم.

هغې تودې شیدې راوړې او زما زړه د شرم او پښیمانی تر بار لاندې نه اوبه اوبه کیده. بوډا چې ماته نژدې پروت و، هغه دلاس په ټپونو زما تندی پیدا کړ او لاس یې پرې کیښود ویې ویل: تبه دې تر اوسه نه ده شکیدلې، خو زما باور دی چې ډیر ژر به روغ شې. دځوان زخم ډیر زر بیرته ډکیږي.

دریمه ورځ زما تبه لږ کمه شوې وه او ما لږ په ډاډه زړه له خپلو نیکی کوونکو سره خبرې اترې کولای شوای. بوډا تر اوسه پورې له مانه داسې څه پوښتنه نه وه کړې چې ځواب یې ماته تکلیف راکاوه. آشا ښایی هغه ته دا ویلی وی چې زه د دوی دبدترینو دښمنانو د پوځ یو سرتیرې یم. هغه له مانه دا هم ونه پوښتل چې زه چیرته او ولې ټپی شوم، زه دوی ته داسې یو بې وسه انسان وم او بس.

په هغه ورځ چې آشا د اوبو لپاره ولاړه ما پر زړه له زغم وتلی بار احساس کړ، بوډا ته مې وویل:

ته پوهیږې چې زه څوك یم؟

هغه په ډاډ ځواب راکړ: هو ماته معلومه ده!

- ما وویل: تاته دا هم معلومه ده چې که حالاتو زه په دې حالت دلته نه وای راوستی. نو تراوسه به زما توری په هغو غرونو کې دډیرو انسانانو وینې بهولې وای..

: ماته معلوم دي، خو زه تا نه ملامتوم، تاچې په کومه ټولنه کې سترګې غړولې دي هغه تاته يوازې په توره ګوزار کول در زده کړي. دانسانيت د فرياد اوريدو لپاره يې ستا غوږونه ندي آشنا کړي. ته دهغو ديوتاګانو سرتيرى يې چې دخپلو پالونکو له ټېر څخه زړونه باسي او په ځاى يې کاڼي ورته ږدي.

ما وويل: او ته ددغه کاڼې زړه درلودونکي انسان ژوندى پريږدې؟

هغه وويل: نه زويه! د کاڼي زړه هغه وخت مات شوې و چې لاسونو دې پر آشا له ګوزار نه انکار وکړ.

اوس زه ستا په سينه کې د يوه انسان دزړه درزا اورم او که داسې نه واى هم ستا خدمت زموږ فرض و. ته دې ويجاړ کلي ته ديوه دښمن په حيث نه، بلکې ديوه پناه اخستونکي په توګه راغلى يې، کاشکې زما سترګې روغې واى او ستا خدمت مې کړاى شواى.

له دې وروسته له بوډا سره زه ډير بلد شوم. دهغه له خبرو څخه پوه شوم چې ددې کلي يو شمير کسان د نګرکوټ د لښکر د پرمختګ درولو لپاره دجنوب غرونو ته تللي وو چې د شمال له لورى د نګر کوټ د يوه بل پوځ د راتلو خبر ورته راغلې و. څکه خود کلي خلك وويريدل او د ځنګلونو په لور وتښتيدل، دلته يوازې داسې خلك پاتې شول چې عزيزان يې دجنوب لورى ته تللي وو، خو چې کله هغو خلکو ته دا خبر ورغى چې د نګر کوټ لښکر په خوړ پل جوړوى او ورانديې تلل غواړي. هغوى هم په شپه شپه کې وتښتيدل. بوډا آشا ته ډير ويلي وو چې دا هم له هغو خلکو سره وتښتي. خو هغې خپل ړوند بابا يوازې پريښودل او تيښته خوښ نه کړل. اوس دوى دواړو دلته دآشا د ورور د راتلو انتظار کاوه. ما بوډا ته د پله له تيريدو وروسته دجګړې کيسه وکړه، هغه وويل: زما دا تمه نشته چې زموږ دکلي چا په دې جګړه کې برخه اخستې وي، کومو ځوانانو چې د جګړې جرئت درلود، هغوى دمخه د جنوب په لور تللي وو. دغې خلکو چې په دومره زړورتيا ستاسو د لښکر مقابله کړې ده دشمال او ختيځ له کليو څخه راغلي دي.

دکلي څخه د خلکو دتښتيدو په وخت هغوى زيات څاروى پريښې وو، دغه څاروى به د ورځې دلته هلته ګرځيدل او دشپې به کلي ته راټوليدل. آشا به د شپې د وحشي ځناورو له ځيرلو څخه ددوى د ژغورنې په خاطر هغوى په خو

کورونو کې ننه ویستل او سهار وختی به یې بیا خوشې کول، خو ځناور به کله کله د ورځې لخوا هم کلی ته نژدې درې څلور ځاروی وداړل او وبه یې وژل، په داسې وضعه کې آشا ته له کلی څخه وتل او د اوبو راوړل بې خطره نه وو، خو د باران نه اوریدو په سبب کلی ته نژدې یوه وړوکې چینه وچه وه او هغه ډنډ چې د کلی خلکو د ځارویو لپاره اوبه پکې غونډولې، خوسا او بدبویه شوې و او اوبه یې ډېرې مجبورۍ په حال کې هم د څښلو نه وې.

آشا چې اوبه راوړې نو ډیره وارخطا وه، مونږ چې د سبب پوښتنه ترې وکړه وېې ویل چې کله. د اوبو له اخستلو وروسته بیرته راتله په لاره کې یوه زمری یو غوایی څیرلی و او په خوراك یې بوخت و.

ما ورته وویل چې مونږ به په دې اوبو درې څلور ورځې ګوزاره وکړو ترهغې پورې به زه پخپله داوبو راوړوجوګه شم، آشا نوره باید هلته ولاړه نه شي.

آشا وموسکل ویې ویل:

ځناور پر انسانانو ډېرې لوږې په حال کې حمله کوي، اوس خو شاوخوا ته دومره ځاروی دی چې هیڅ یو ځناور به هم وږی نه وی . بوډا جګ شو او دامسا په تکیه بهر ته ووت او لږ وروسته بیرته دننه راغی ویې ویل:

آشا به نوره هلته نه ځي، زما امید دی چې تر سبا پورې باران وشي.

ما په ملاسته وویل: بهر خو وریځې نه معلومیږي.

هغه وویل: هوا داسې ښکاری چې وریځې به اوس راشي.

ماښام ما د وریځو درزا اوریده او آشا ویل: زما د بابا خبرې هیڅکله هم دروغ نه وي.

لږ ځنډ وروسته زه پرخپله بستره پروت وم چې دتوند باران غږ مې واورید، خوښ شوم چې آشا به نوره د اوبو د راوړو لپاره بهر ته نه ځي.

په هغې وضع کې زما په زړه کې دیوې بدشکله نجلۍ په اړه هم د انس او مینې پیدا کیدل حتمی وو او دآشا ښه او څیره خو داسې وه چې که مې هسې دلاړې پر سر لیدلې وای هم تر عمره به مې یې لټون کاوه.

ما به چې دهغې پر شونډو پیکه موسکا ولیده داسې به مې ګڼله چې د کلی غمجنه فضاله خوښیو اوکرسندو خنداګانو ډکه شوه، خو دغه موسکا به د تورو وریځو له منځه دتیریدونکی سپوږمۍ په څیر لنډه وه.

دهغې ځیره په عامه توګه غمجنه وه او دغم سبب یې د ورور غیابت و، د آشا دانتظار دا حال و، چې هر سهار به یې دهغه برخه خواړه پرېښودل او چې ماښام به شو دهغه لپاره پرېښې ځنډني خواړه به یې پخپله وخوړل او خپله برخه به یې بیا هغه ته پرېښوده، چې ښایی دشپې څه وخت هغه راشي.

***

ځومره چې ورځې تیریدې، زما دا اندیښنه زیاتیده چې جګت ناراین به دخپلې ماتې د بدل اخستلو لپاره خامخا کوم محاذ غوره کوي. هغه له دې کلی څخه ډیر لرې نه و. ما زیاتره دا فکر کاوه چې که هغه دې لوری ته رامخه کړي، نو دتشو جونګړو له سوځولو څخه به هم مخ وانه ړوي.

دخپلو زامنو مرګ به هغه لیونی کړی وي، ددې امکان نه و چې زما په ویلو دې هغه آشا او دهغې راندە او بوډا بابا ته څه ونه وایي.

ددې امکان و، چې زما د بغاوت په سبب زما خپلو پوځوتو زما ملاتړ کړی وای، خو ددې پای به څه ډول و؟

که دبغاوت له ګواښ سره جګت ناراین او دهغه نور سرداران آشا او دهغې بابا ته له څه زیان څخه لاس هم ونیو، بالآخره به دا معامله راجه او مذهبی مشر ته وړاندې شی او کوم خلك چې په دې جګړه کې وژل شوی دي، هغوی ټول به ددې بې ګناهو لپاره تر ټولو د سختې سزا غوښتنه کوی او په نګر کوټ کې به زما هیڅ یو دوست نه وي.

اوومه ورځ زه له بسترې څخه جګ شوم او ورو ورو د ګرځیدو او راګرځیدو وړ شوم، آشا سهار وختې د یوې غوا شیدې لوشلې، زه له خپلې بسترې څخه پاخیدم بهر ته ووتم او هغې ته نژدې د یوې ونې ډډ ته کیناستم، دی چې غوا ولوشله، جګه شوه، ما ورته وویل: آشا! زه څه درته وایم!

هغې د شیدو لوښې ماته نژدې کیښود ویې ویل:

ووایه!

ما وویل: آشا دلته ستا اوسیدل مناسب نه دي، زما زړه ګواهی راکوی چې د نګرکوټ پوځ له جنوب اویا شمال څخه دې لوری ته خامخا راځي.

هغې وویل: ستا مطلب دادی چې خپل ړوند بابا یوازې پریږدم او وتښتم؟

- نه آشا. ستا د بابا د مرستې لپاره زه چمتو یم چې درسره ولاړ شم.

هغې وویل: ته خو د تلو وړ نه یې، او که ته ددې وړ وې هم موږ د سندر له انتظار پر ته چېرته تلای شو.
سندر دهغې د ورور نوم و.
ما ځواب ورکړ: زه وعده کوم چې تا کوم خوندي ځای ته ورسوم بیرته به دې کلي ته راشم او چې کله ستا ورور راشي هغه به هم تاسو ته درولم.
هغې وویل: مګر تر اوسه پورې ته ښه تلی نه شې، بیا ته پخپله وایې چې ستاسو پوځ به تر واورینو غرونو پورې زموږ دخلکو د تعقیب اراده لري. امکان لري په کوم ځنګل کې موږ خپل کسان پیدا کړو، خو چې ستاسو پوځ هغې لورې ته راشي هغه خلك به ددې کلي په څیر بیا موږ یوازې پریږدي او په کومه به وتښتي. بابا چې زما لاس ونیسي هم ترڅو ګامه زیات نشي تلای، موږ ته به هیڅوك هم لاس نه راکوي او که بیا ستاسوله پوځ څخه خوندي پاتې شو هم په ځنګل کې به ورك شو او بیا به چیرته دوحشي ځناورو خوراك شو.
ما وویل: زه به بیاله تاسو سره اوسم. خو ستاله دې ځایه وتل ضروري دي. که خدای ته منظوره وه. نو ستا ورور به هم درسره یو ځای شي. خو ته یوه ښځه یې. تا خو ولیدل چې زمریان څومره په بې رحمۍ ځاروي وژني! هغه خلك چې زه پیژنم تر زمریانو ډیر بې رحمه دي، زمریان د خپلې ګیډې له ډکولو څخه وروسته آرام شي. خو زموږ د ټولنې دزامنو له زړونو څخه دانسانانو د وینو تنده هیڅکله نه لرې کیږي. که زما پردې باور وای چې زه تر سر تیر شم تا ساتلای شم. نو دا مشوره به مې نه درکوله.
ستا سر او کار له لیوانو سره دی، له انسانانو سره نه دی.
کله چې ستا ورور راشي چې د نور کلي په څیر ستاسو کور هم تش وګوري وبه پوهیږي چې تاسو هم د نورو کلیوالو سره تللې یاست. زه بیا هم وعده کوم چې ترڅو هغه تاسو نه دی موندلی، زه به له تاسو سره وم او دا هم امکان لري چې زه تل له تاسو سره پاتې شم.
وروستي الفاظ زما داحساساتو ترجمان وو. آشا په ځیر ځیر راته وکتل او خپلې اوښکې یې پاکولې ویې ویل: تا زما د سر قیمت ډیر زیات کړ، زه تلو ته تیاره یم.
ما ورته وویل: نو سبا سهار به له خیره له دې ځایه خوځیږو.

هغې وویل : دومره بیړه مه کوه، ته تر اوسه مزل نشی کولی .
ما هغې ته تسلی ورکړه، ورته ومې ویل:
زما غم مه کوه، که زما د پښې تکلیف زیات شو، نو لومړنی مزلونه به آرام آرام ولاړ شو، زه همدا اوس ستا له بابا سره خبره کوم.
موږ جګ شوو دواړه دننه تلو چې نجلۍ په وارخطایۍ چیغې کړې وروره! وروره! او یوې خواته یې منډه واخستله. نژدې دیرش، څلوېښت ګامه لرې یوځوان چې خپله ځیته یې په لاسو نیولې وه نګوښیدلې راروان و. دهغې له وضعې نه معلومیده چې ډیر بد ټپی دی، زه هم وړاندې ورغلم او هغه ته مو اوږه ورکړه دکور په لور مو راوست.
دآشا بابا بهر را ووت او چیغې یې وهلې: آشا، آشا! ستا ورور چیرته دی؟ سندر په کمزورې غږ آشا ته وویل: آشا ته وتښته ، ما پرېږده، نور ماته د هیچا دمرستې ضرورت نشته، زر کوه آشا وتښته، هغوی په ما پسې را روان دي، هغوی به اوس راورسیږی چې جونګړی ته نژدې شوو هغه په یوه زوروره جټکه زموږ له منګلو ځان خلاص کړ چیغه یې کړه: هغوی له ختیځ او جنوب څخه دغه کلی کلابند کوي، ته د خوږ په بهیر ښکته په ځنګل کې ولاړه شه، هلته به څو تنه ملګری ستا انتظار کوی اوس بیړه کوه، دفکر کولو وخت نه دی، بابا آشا وپوهوه!
له دې سره د سندرله خولې دوینو داره ووته او هغه پړمخې ولوید. ما زر د هغه د راپورته کولو هڅه وکړه، خو هغه دخپل ژوند سفر پای ته رسولې و. د شلیدلې ګیډې څخه راوتلې کولمې یې په لاسو نیولې او تردې ځایه ځان رسول د انسان له توان څخه بهر کار دی. آشا په حیرانی خپل ورور ته کتل، تر لږ ځنډه زه هم حیران وم دغه ګلالي ځوان ته مې کتل، خو ناڅاپه مې یوه اوږده ساه واخیسته او په یوه لاس مې آشا او پر بل دهغه بابا تر لاس ونیول او د ځنګل په لور مې ګامونه واخستل.
آشا په وارخطایۍ له څو ګامه اخستو وروسته ودریده او چیغه یې کړه: نه! زه مې د ورور مړی نشم پریښودې، بوډا هم په ځمکه کیناست، ما وویل:
بابا! دا د آشا د ژوند ژغورلو وروستۍ موقع ده، دخدای "ج" په خاطر دخپل لمسي د وروستۍ هیلې له پوره کولو څخه انکار مه کوه.

بوډا وویل: که ته د آشا ژوند ژغورلی شې، نو درسره بویې زه، نور زه درسره ملګری نشم کولي؛ نور زما په پښو کې زما د وزن پورته کولو توان نشته.

آشا لورې! ولاړه شه، زه لاسونه درته نیسم!!

آشا مې ونیوله او له ځانه سره مې کش کړه او هغې په کریږو ژړل له ماسره روانه وه ، لږ څنډ وروسته دهغې پر هر ټپ د ژوندي پاتې کیدو هیلې زور راوړ او له ماسره یې منډې وهلې، ما تر لږ څنډه دبدن ددرد احساس نه کاوه، خو نیم میل مزل وروسته ورو ورو زما همت ځواب راکاوه، موږ په ډیر زحمت دخوږ په غاړه د غره په ډډه کې ورو ورو لاره وهله او یومیل وړاندې له ګڼ ځنګل څخه پنځه تنه وسله وال ځوانان راښکاره شول او زموږ د لارې په مخه کې ودریدل، دا هماغه کسان وو چې د آشا ورور راته ویلې وو، یوه ځوان ماته په بدګومانۍ وکتل، خپل تبر یې اوچت کړ او ویې ویل: ته څوك یې؟

ما وویل: ما آشا تر تاسو پورې رارسوله. اوس د خبرو وخت نه دی. آشا به درته ووایي چې زه ستاسو دښمن نه یم. اوس تاسو دا یوه خوندي ځای ته درسره بوزئ، بیا مې آشا ته وکتل ومې ویل: آشا نور ماته له تاسو سره منډې وهل ګران دي، زه بېرته ستاسو کلي ته ځم، امکان لري باباجان دې وژغورم.

یوه ځوان د سندر پوښتنه وکړه، ما ورته وویل: سندر مړ شو. نور وخت مه تیروئ. زما اندیښنه ده چې دشمال له لوري د نګر کوټ کوم بل پوځ لاندې چیرته له خوړ څخه را پورې نه وزي او دې لوري ته رانشي، ځکه خو تاسو د ورځې په مهال دخوړ په غاړه دمزله په ځای په ځنګل کې غلي کیږئ او یا ورو ورو مزل کوئ، آشا لکه چې د خوب په حالت کې زموږ خبرې اورې په رډو رډو سترګو یې ماته کتل او له هغه سړیو سره روانه شوه، زه د یوه لوټ شوي مسافر په څیر بیرته کلي ته وخوځیدم.

***

په بیرته ستنیدو کې پر ډیرو هڅو برسیره زما مزل ډیر کرار و. زما درسیدو څخه دمخه دپوځ څو ډلګی کلی ته ننوتلي وې، څو سپاهیانو زه له لیرې ولیدم، په منډه راغلل او راڅخه راچاپیر شول. له مانه یې دجګټ نارایڼ د پوځ دحال پوښتنه وکړه، ما بیله دې چې څه ځواب ورکړم، دآشا دوی

د کور لاره ونیوله، دسندر د مړی ترځنګ دهغه د بابا مړی هم پروت و. خو دواړه مړی یې دومره مسخه کړي وو چې ماته یې پیژندل ګران وو، یو سردار راوړاندې شو او بې اختیاره راسره غاړه غړی شو، وېې ویل: د خدای رحم دې چې ته ژوندی یې موږ ستا په باب ډیر بد خبر اوریدلې و. ته له کوم لوری راغلی یې؟

جګت نارایـن موږ تـه پیغام رااستولې و چې دښمن په دې سیمه کې راتولیږي، خو دلته موږ له یوه مړی او یوه ړانده بوډا څخه پرته نور هیڅ ونه لیدل، موږ پر کلی له ځملې څخه دمخه پردښمن دغره لاره بنده کړې وه زما په ګومان به هغوی ښایي ځنګل لوری ته تښتیدلی وی ، ما دوی ته دخواب په ځای وویل: ددې ړانده د وژلو څه ګټه ؟

هغه وویل: یاره دی ډیر سرتمبه و. موږ غوښتل د کلی دخلکو په باب پوښتنې ترې وکړو، خو ده د لیونو په څیر کنځلې راته کولې. ما په خوله پرسوك وواهه او هغه په مځکه رأوغورځید. هغه ښایی له پخوا د مرګ لپاره منتظر و. خو تا داونه ویل چې له کوم لوری راغلې؟

ما په ډیر زحمت خپله غوسه وزغمله او په یوه نژدې ډبره کیناستم، ځواب مې ورکړ: زه تپې وم او دلته نژدې یو ځای غلی شوی وم.

هغه وویل: نو تاته دا خبر معلوم نه دی چې د سردار جګت نارایـن پوځ به دلته څه وخت راورسیږي؟ موږ ته د پوځ سرلښکر دا امر کړې و چې دلته یې د راتلو انتظار وکړو، زموږ دخبر له مخې هغه نن باید دلته راورسیږي، د پوځ سرلښکر پخپله هم دې ځای ته روان دي، افسوس چې ستاسو د پوځ ماتې زموږ ټولې ارادې بدلې کړې او هغه بری چې موږ یې انتظار کاوه، زموږ په برخه نه شو.

زه دنفرت او کرکې له احساساتو څخه مغلوب شوم ومې ویل: آیا د یوه ړانده وژنه ستا په ګومان بری نه دی؟

سردار وویل: که ستا مطلب داوی چې د کلی خلك زموږ د بې تدبیری په سبب تښتیدلی دي، نو دا غلط ګومان دی.

موږ ته یې یوازې د جنوب او ختیځ له لوری ددې کلی دکلابند کولو هدایت کړې و، او په دې لوریو موږ ددښمن دتیښتې ټولې لارې بندې کړې

وې، سردار جګت نارایڼ احوال راکړې وځ چې دې د لاندې لوری څخه چیرته له
خوږ څخه را پورې وزی او په ځنګل کې به د پناه اخستونکو لارې بندې کړې،
اوس دوه پیښې کیدای شي، یو داچې دښمن چیرته پل جوړ کړی او پر خوړ
پورې وتلی وی او د سردار جګت نارایڼ له بې خبری څخه یې ګټه اوچته کړې
وې، چیرته لرې تښتیدلی وې، دوهم دا چې هغوی دخپل خبر له مخې له خوړ
څخه راتیر شوی دي، خو دلویدیځ دځنګل لوری ته یې د دښمن دتیښتې لاره
نه ده تړلې او دښمن د تیښتې فرصت ترلاسه کړی دی.

بیا هم زما پوره باور دی چې که هغوی په ځنګل کې وی موږ به یې د
پسونو په څیر راګیر او ووژنو. زموږ د لښکر اعلی قوماندان ددې خلکو سره
په معامله ډیر ښه پوهیږي، تاسو که دا واورئ، خوښ به شئ چې موږ دښمن
ته څو ځلې ماتې ورکړې او ددې غره شاته مو ډیرې سیمې ترې صفا کړې.

سردار داسې ګومان کاوه چې زه د جګت نارایڼ د ماتې په یادونه غوسه
شوم، هغه ددې لپاره چې ما تر اغیزې لاندې راولی دخپلو بریاو کیسې یې
راته اوروليې. خو زما خیالونه کوم بل ځای وو، ما یوازې د آشا په باب فکر
کاوه او په ډیرې عاجزۍ مې خدای جل جلاله ته دا دعا کوله چې ځنګل ته د
جګت نارایڼ دلښکر ننوتلو څخه دمخه کوم بل لوری ته ووزي.

ما هغه دیوتاګان " دهندو عقیدې په اساس پر ځمکه دخدای نماینده ګان"
هم دآشا مرستې ته رابلل چې د سپیڅلتیا په باب یې زما په زړه کې ډول ډول
شکونه راپیدا شوي وو، خو زما دعاګانې قبولې نه شوې. له ماښام څخه لږ
وړاندې د جګت نارایڼ پوځ کلی ته راورسید، آشا ددوی له بندیانو سره وه،
له ماسره دا همت نه وځ چې هغې ته ورشم پوهیدم چې که اوس له څه لیونتوب
څخه کار واخلم، نو دآشا د ژغورنې لږ او ډیر امکانات به هم ختم شي، ځکه
خو ما چاته ونه ویل چې آشا پیژنم او چې کله د مرګ او ژوند ترمنځ په کش او
ګیر کې وم،هغې ماته پناه راکړې وه.

دخپلو ملګریو د پوښتنو په ځواب کې ما یوازې پر دې دوی ته ډاډ ورکړ
چې ماله کندې څخه له راوتلو وروسته هلته نژدې په یوه غار کې شپې تیرولې
او دشاوخوا ځریدونکو ځارویو په شیدو مې ګوزاره کوله چې د کلی خلکو د
تیښتې په وخت کې پریښې وو.

جګت نارا ین چې زه ولیدم، ډیر خوښ شو، خو چې کله هغه وویل چې ما ستاله سرنیرو څخه ستا د هر ویښته په بدل کې دیوه نیت ذاتي د وژلو ژمنه اخستې ده، نو زړه مې ولوید.

دشپې مهال چې جګت نارا ین په یوه جونګړه کې آرام کاوه زه ورغلم هغه ته مې خپله کیسه وکړه، خو دمصلحت لپاره مې د آشا او دهغه دبابا د نامه اخستلو پر ځای دومره وویل چې د خور په غاړه مرګ ته نژدې وم چې یوه نجلۍ راغله او زما پر حال یې رحم وکړ، دې ویجاړ کلی ته یې راوستم او زما خدمت یې کاوه، جګت نارا ین پوښتنه وکړه: هغه نجلۍ چیرته ده؟

ما ځواب ورکړ: هغه د پوځ له راتلو وړاندې چیرته غلې شوې وه، اوس زه ددې لپاره ستا خدمت ته راغلم چې که هغه نجلۍ ونیول شوه ته یې زما دخدمت په خاطر وبخښه.

د جګت نارا ین څیره بدله شوه ویې ویل:

هغې په تاڅه احسان نه دی کړی، ستا ژوند دیوتاګانو ساتلی دي. که دیوتا وغواړي، نو یو لړم له نیش وهلو څخه ایساروﻟﯽ شي. دیوتاګانو غوښتل چې ته ددین د ساتنې لپاره ژوندی وی ځکه خو هغوی دیوې شومې نبیرې دلور په زړه کې د لږ وخت لپاره رحم واچاوه. خو زه تانه مایوسوم. که هغه زموږ منګولو ته راغله زه به هڅه وکړم چې ددرمسال دخدمت لپاره یې واستوي، اوس لږ وخت وړاندې په ځنګل کې موږ یوه نجلۍ ونیوه. هغه ډیره ښکلې وه او دمذهبي مشر ورور ماته وویل چې داسې نجونو ته د شیوجی په درمسال کې موږ اړتیا لرو، تاخو به بندیان لیدلې وي؟

زه پوهیدم چې دهغه اشاره له آشا پرته بل چاته نه وه. خو ما ځواب ورکړ: ما ولیدل خو هغه په دې بندیانو کې نشته. زه ویریږم چې چیرته یې کندی ته ځان نه وی غورځولی.

جګت نارا ین وویل: نو په دې کې بیا ستا قصور دي، تا به هغې ته ویلی وی چې موږ ډیر ظالمان یو او له خپلو بندیانو سره ډیر بد سلوک کوو. ما په حقارت ځواب ورکړ هو! ما دا هم ورته ویلی وو چې دشیوجي په درمسال کې ددرمسال له پالونکیو نجونو سره کوم سلوک کیږي.

جګت نارایڼ له غوسې څخه وربړدیده، چیغې یې کړې: چوپ شه، ماته په وار وار دا احساس مه راکوه چې ستا په سپاهي توب کې مې اشتباه کړې ده. که ستا زړه دومره نازك وي بیرته تلای شې، هسې هم ته خوددې جوګه نه یې چې په کومه جګړه کې برخه واخلې، دخپلو زامنو له مرګ وروسته زه دا نشم زغملی چې ته ددې پستو ملاتړ وکړې.

زه جګ شوم ومې ویل: که ستا پر ځای ستا زوی وای هم تا به همدا ځواب ورکاوه؟

جګت نارایڼ په سپکه لهجه ځواب راکړ: که ستا پرځای زما زوی وای، نو ددې خلکو د مرستې پرځای به یې په سیند کې ډوبیدل غوره بللې وو.

زه د بې پایه نا امیدۍ په حالت کې له خپرې راوتلم چې جګت نارایڼ غږ راپسې وکړ او بیا یې زما پام وراړاوه ویې ویل: که زما اټکل غلط نه وي ته دهغې نجلۍ په باب له مانه څه خبره پټوې.

ما دخپلې اندیښنې د پټولو هڅه وکړه ومې ویل: څه خبره؟

جګت نارایڼ ماته سرتر پښو وکتل او بیایې وویل: ماته تر راتلو وړاندې تاته معلومه وه چې هغه نجلۍ چیرته ده. او تا ددې ځای له ښودلو څخه دمخه زما نظر معلوماوه، که زما دا اټکل غلط نه وي، نو زه دا نصیحت درته کوم چې له اور سره لوبې مه کوه، زه له تا څخه دانه پوښتم چې تا هغه چیرته غلې کړې ده، خو دا ضرور درته وایم چې که دا خبره ثابته شوه چې تا د یوې ټیټې ذاتې نجلۍ سره په تیښتې کې مرسته کړې ده، نو د نګر کوټ یو سرتیرې به هم ستا دوست نه وي، ستا لپاره دغه خلك د هغه میړنیو هیرولو ته تیار نه دی چې ددې خلکو په لاسو وژل شوی دي.

زه پر زړه له یوه درانه او له زغم وتلی بار سره له هغه څخه راووتم، زړه مې راته ویل چې که مې تر سهاره د آشا دخوشې کیدو څه لاره چاره ونه کړه، تر سبا پورې به پاتې پوځ هم راورسیږي او بیا به ماته له آشا سره مرسته ناممکنه وي، هره شیبه زما اندیښنه زیاتیدله، پر آسمان وریځې ګرزیدې، زه دهغه جونګړې په لوری ورغلم چې بندیان یې پکې ساتلې وو له پهره دارانو څخه څو تنه زما خپل کسان وو، او زما باور ؤ چې هغوی زما په مخکې هر څومره

لویې قربانۍ ته چمتو دي، خو زما دا ډاډ نه و چې دوی به زما لپاره ددیوتاګانو عذاب ته هم ځانونه چمتو کړي.

ما ددوی سره د راز له شریکولو مخکې غوښتل ددوی رایه معلومه کړم، یوځوان چې هنی داس نومیده زما دپوځ دیوې ډلګۍ مشر وو دهغه په باب ماته دا معلومه وه چې ذ حملې په پیل کې د جګت نارائن په امر د ښځو او ماشومانو په وژلو سخت غوسه و، ځکه خوما له پهره دارانو سره د خبرو پرځای، دهغه پوښتنه وکړه، چې پیدا مې کړ، یوې ګوښې ته مې بوتلو او خپله ټوله کیسه مې ورته تیره کړه. هنی داس له څه زړه نا زړه کیدو پرته د آشا دخلاصون وعده راکړه.

له یو څه بحث وروسته دواړه په یوه پلان سره متفق شوو، هنی داس زه د پوځ دیوه پړاو سره پرېښودم او رانه ولاړ، لږ ځنډ وروسته یې اته نور داسې کسان راوستل چې دهغوی په باب موږ ډاډه وو چې هر امر بیله څه پوښتنې او اعتراضه منې، هغو کسانو ته موږ وویل چې په پوځ کې موږ ته د یوې خطرناکې دسیسې خبر راغلی دی ځکه خو د سردار جګت نارائن دا هیله ده چې څو تنه باید ونیول شي . له دې وروسته هنی داس دبندیانو پهره دارانو ته ورغی. دپهره دارانو دټولې مشر د جګت نارائن خپل سړی و، هنی داس هغه ته وویل چې سردار جګت نارائن د ګزمې په وخت کې په پړاو کې زه ولیدم او ته یې بللی یې. دپهره دارانو مشر له هنی داس سره ولاړ. لږ ځنډ وروسته موږ دهغوی خبرې اوریدلې، دپهره دارانو مشر ویل:

سردار ډیر ستومانه شوې و، ماته یې ماښام وویل چې زه به ډیر زر ویده شم دلته په دې ویرانه کې هغه څه کوي؟

هنی داس ورته ویل چې وړاندې ډیرې خپرې دی او سردار د یوې خپرې په مخه کې له واسدیو سره خبرې کوي، زه حیران یم چې ته ولې ویریږې؟

دهنی داس وروستۍ خبرې کار وکړ او د پهره دارانو مشر وړاندې شو ویې ویل: های یاره څوك ویریږي!

د نیکه مرغه په تیاره کې هغه موږ هر یو جګت نارائن ګڼلو، سپاهیانو زما په اشاره د سترګو په رپ کې هغه رالاندې کړ او یوه سرتیرې یې په مرۍ خنجر کیښود ګوابښ یې وکړ:

که دې شور ګډ کړ، نو د سرخیر دې نشته.
هنی داس بیا په تیاره کې ورک شو. لږ ځنډ وروسته یې دوه نور پهره داران راوستل، موږ دهغوی خولې داحتیاط لپاره بندې کړې چې دوی له چاسره خبره ونه کړای شي، نور دهنی داس دمعلوماتو له مخې څلور تنه نور پهره داران زموږ خپل خلك وو او درې نور د نورو سردارانو کسان وو.
اوس زموږ پلان دا ؤ چې هنی داس پخپله د پهره دارانو مشر ځای ونیسی او نیمه شپه هغه درې تنه نور کسان هم په یوه شکل رخصت کړي، له هغې وروسته به ماته خبر راکړي وروستی ځل مې چې هنی داس رخصتاوه ورته ومې ویل چې له آشا سره ووینې او هغې ته زما پیغام ورسوی چې بندیان نژدې نیمه شپه تیښتې ته تیار وي. د هنی داس له تلو څخه زیات وخت نه و تیر شوی چې څرکند باران پیل شو، زه پردې خبره لږ ډاډه شوم چې پاتې پوځ چې بهر اړولې وو اوس یې په څپرو کې دننوتو هڅه کوله. دیوه سپاهی څخه مې دهغه وسله واخستله او په ډیره ناکرارۍ مې د هنی داس د راتلو انتظار کاوه.
دنیمې شپې څخه لږ وړاندې هغه په منډه راغی ، ما چې ولید ودریدم، هغه زه تر مټ ونیولم او په کش کولو یې یوې خواته کړم وی ویل:
ما دبندیانو دتیښتې لاره خلاصه کړه،خو دآشا په باب مې یو داندیښنې خبر راوړی دی.
زما زړه ولوید او په خپ غږ مې ترې وپوښتل دخدای لپاره ووایه څه وشول؟
هغه وویل: همدا اوس د مذهبی پیشوا مشر ورور دوه بوت نمانځونکی راوستل او آشا یې هغه ته وروستله، ما که څه مزاحمت کولی، نو دا ټوله لوبه به ویجاړه شوې وای.
ما هنی داس وپوهاوه چې زه به له هغه ځایه د آشا د راویستلو هڅه وکړم، ته لږ ځنډ وروسته ټول بندیان خوشې کړه، هغوی پردې هم پوه کړه چې دهغوی په یوه لوری تر تښتیدلو به داور ته غوره وی چې هر یو په یوه لوری بیل بیل وتښتي، ستا لپاره هم له تیښتې پرته بله لاره نشته، که کله وخت راغی زه به تاته ددې نیکۍ بدله ضرور درکړوم، خو که ما ستا ددې نیکی بدله

درنکړای شوه، هم ستا به دا تسلي شوي وي چې تا دخدای رضا ترلاسه کړې ده. دهغه په نظر به ستا درجه د دیوتاګانو څخه لوړه وي.
هنی داس ځواب راکړ: زه به تر وروستۍ شیبې ستا سره وم. تر لږ ځنډه د مذهبي پیشوا د ورور د هستوګنځي په مخه کې زما انتظار کوه، زه چې بندیان خوشې کړم هلته به درشم، ته به هغه جونګړه پیدا کړای شې؟
ما ځواب ورکړ: زه هلته په پټو سترګو هم تلای شم. هغه ظالم په هغه کور کې دی چې ما پناه پکې اخستې وه.
****
لږ ځنډ وروسته زه د کور دیوال ته نژدې د یوې ونې ترڅنګ ولاړ وم او دمذهبي مشر د ورور خبرې مې اوریدې چې ویل یې:
ته لیونۍ یې، دا ستا نیکمرغي ده چې په ځنګل کې مې د نیولو په وخت کې ولیدې، ستا په څیر ښکلې نجلۍ باید ژوندۍ وي، او زه به تاته داسې ژوند دروبخښم چې د نګرکوټ د لوړ ذات نجونې به یې ارمان کوي. ته به له دې ځنګل څخه ووزې په هغه درمسال کې به اوسې چې د راجه ګانو له محلونو څخه زیات شاندار دی او د بوتانو خدمتګاران یې د سپینو او سرو زرو په لوښو کې خواړه خوري. زه د هغه مذهبي مشر ورور یم چې په مخکې یې د نګر کوټ راجه لاس په نامه دریږي. زه به تاته په خپل کور کې ځای درکړم. ماته ددې لپاره راوغوښتې چې له بندیانو سره دې اوسیدل زما خوښ نه دي، ګوره ما فکر کاوه چې ته به وږې یې خپل خواړه مې ستا لپاره پریښودل کنښینه!
ګوره زما ناراضه کولو مطلب به داوي چې ته هم د کالی د یوې "توري دیوي" قرباني ورکړې.
د آشا غږ اوچت شو: ذلیل سپیه! ماته لاس مه راوړه، ما وژلی شې، خو عزت مې نشی رانه اخستی، پرې مې ږده، که نه نو شور به ګډ کړم.
د مذهبي مشر ورور وویل: که ته چیغې وکړې هم څوک به په دې وخت کې دې جونګړې ته د نژدې راتلو جرئت ونه کړي. اوس که د نګر کوټ راجه وي هم دلته به ستا چیغو ته د پام کولو جرئت ونه کړي.

آشا چیغې وهلې: پرې مې ږده! زه له خپلو ورونو سره مرګ ته تیاره یم، زما د صبر کاسه ډکه شوې وه، وړاندې ورغلم، جونګړې ته ورننوتم چې دګزمې دسپاهیانو د یوې ډلې د پښو ترپهارې مې واورید، زه بیرته د ونې ترڅنګ ودریدم، د آشا چیغې او فریادونه یې چې واوریدل، سپاهیانو رامنډې کړې، یوه سپاهی دروازه وټکوله ویې ویل: باداره! دننه د مذهبی مشر د ورور دروند غږ اوچت شو:

خره! تښته له دې ځایه، که نه پوست به دې وباسم.

سپاهی وتښتید، زه ور وړاندې شوم او د دروازې د خلاصولو هڅه مې وکړه خوهغه له ننه څخه زنځیر وه دمذهبی مشر ورور آشا ته ویل: ودې لیدل؟

چیغې دې بې ګټې وې، اوس ډاډه کینه او زما خبرې په غور واوره.

ماته معلومه وه چې دروازه ښه کلکه ده، په وړوکی دیکه یې ماتول ګران دي، خو تقدیر زما مرسته وکړه، ناڅاپه یوه لوری ته د سپاهیانو چیغې او فریادونه اوچت شول، ما په زوره دروازه وټکوله او ومې ویل:

باداره! دښمن حمله کړې، ځان دې ژغوره!

زما پلان کار وکړ، د مذهبی مشر ورور سمدستي دروازه خلاصه کړه او سر یې بهر ته راوایست، ما یې توره پر ټټر ور چوخ کړه او ورته ومې ویل:

که دې غږ وکړ، نو د سر خیر دې نشته.

هغه په شا ولاړ، زه چې د ننه ورننوتم، په بل لاس مې هغه په خوله پر سوك وواهه.

دګوزار سره پر ځمکه وغورځید او آشا سلګۍ وهلې راغله، ماته یې په غیږ کې ځان راوغورځاوه.

د مذهبی مشر ورور بې سده شوی ؤ، ما یې د لاس او پښو د تړلو ضرورت احساس نه کړ، د لرګیو مشال مې چې کوټې په یوه کونج کې بلیده ګل کړ، له آشا سره بهر ته راووتم. په دې خند کې هنی داس رارسیدلې و، هغه راته وویل چې بندیان مې وتښتول، خو پخوا له دې چې له پړاو څخه ووزي، د ګزمې کومې ډلې ولیدل او هغوی شور ګډ کړ، اوس زیات سرتیری په ځنګل کې دهغوی دلټون هڅه کوي. نور یوځ په ګډوډۍ کې په یوه او بله خوا منډې

وهي. زياتره سپاهيان داسې فکر کوي چې دښمن په موږ يرغل راوړی دی. موږ ته به لاندې د ځنګل په ځای د غره لاره غوره وي.
ځکه خو موږ د غره لاره ونيوله، د تورو په برېښنا کې کله کله موږ خپله لاره سمې کوله، سرتيرو په وارخطايي يوې او بلې خوا منډې وهلې او شور ماشور يې کاوه، د ګډوډۍ دا حال وچې که موږ دری واړه بنديان وای هم ښايي هيچا مو پروا نه وای کړې.
موږ بيله دې چې له څه ستونزې سره مخ شو، له پړاو څخه ووتلو، لږ ځنډ وروسته مې د څړوبې غږ واوريد، ما دا احساس کړه چې هغه ځای ته نژدې شوی يو چې زما له آشا سره لومړۍ ځل ديدن شوی و.
د تورو د برېښنا په رڼا کې ما هغه ښيله هم وليدله چې څړوبې ته نژدې ورغلې وه او موږ هغه ښيله پرېښودله، نيغ د غره په لور روان شوو.
تراوسه پورې يوې غير معمولي ارادې له ما نه د بدنی خوږو احساس هير کړی و. خو چې دا له منه سامې واخستله، زما همت ځواب راکړ. د ورځې له خوا ځنګل ته د آشا رسولو هڅو او منډو زما د پښې ټپ بيا خراب کړی و. اوس مې په مخ پيچومی د ختلو په وخت کې سخت درد احساساوه. ما ته دا احساس ډير تريخ و چې زه به تر ډيره دهنی داس او آشا ملګری ونکړای شم. او که همداسې په لويدو او ولاړيدو تر سهاره له دوی سره ملګری وم. نو ښايي ډيره لاره مزل ونکړای شو، سپاهيان به مو د سهار په رڼا کې ژر را پيدا کړی او يوازې زما په خاطر به دوو نورو ژوند هم په خطر کې ولويږي.
د پښې مخ په زياتيدونکې درد زه زر يوې پريکړې کولو ته مجبور کړم. ما لومړۍ له هنی داس څخه دا وعده واخستله چې دده هر امر به منم، بيا مې آشا ته وويل:
آشا له دې ځايه زموږ لارې سره بليږي. زه له تاسو سره نشم تلای. ځکه به له دې وروسته هنی داس ستا ملاتړ کوي.
آشا ځواب راکړ: ستا څخه پرته ما ته د بل ملګری هيڅ ضرورت نشته، موږ به يو ځای ساه ورکوو.
ما وويل: آشا زما خبره ومنه، زه د ځان لپاره خطر نه يم، زه يو سردار يم. هغوی ما ته هيڅ نشي ويلی، زه د خپلو سپاهيانو په منځ د پوځ له هر سردار

سره تکړ کولی شم، خو ته که ونیول شوې، نو ستا په ملاتړ به زما سپاهیان هم توري راونه باسي.

آشا زه به خامخا له تاسره وینم، خو که ته ونیول شوې، نو زه به بیا خامخا ستا په مخکې پر خپل تېره خنجر ښخوم.

زما خبره ومنه آشا، ماته هیڅ خطر نشته، دا یوه دوکه وه، زه پوهېدم چې ددې پېښو څخه هیڅوك به هم زما په ملاتړ ګوته اوچته نکړي. خو پر آشا زما خبرو اغیزه وکړه، په سلګیو شوه ویې ویل:

ماته ستا د حُکم له منلو نه انکار په کار نه دی، خو په یاد ولره چې ماته له تا پرته یوه شیبه ژوند نه دی په کار.

ما وویل: موږ به ډېر ژر بیا سره وونیو. آشا ورخه! هغه له هنی داس سره روانه شوه، د تورو په بریښناکې ما خو ګامونه وړاندې دهغې وروستی خلکا ولیده او بیا په یوه ډبره کیناستم، لږ څنډ وروسته باران ودرید، سپوږمی راښکاره شو او د ډېرې بې وسی احساس زه له خپل شاوخوا څخه بې خبره کړم. خو د لږ دمې څخه وروسته نه پوهیږم ولې ماته دهغه کمره دلیدو هیله په زړه کې راپیدا شوه چې ګام مې پرې کیښود، د خپلې دنیا څخه راووتم او دآشا نړۍ ته ورننوتم، هلته چې نرۍ لاره لاندې کندې ته تللې وه، زه بیا د ساه آرامولو لپاره د کمره پر څنډه کیناستم او لاندې مې څړوبی ته کتل. خو اوس په دې ننداره کې ماته هیڅ په زړه پورې نه وو. له ژوند سره زما اړیکې غوڅیدلې. ستونې ستغ پریوتم او آسمان ته مې کتل، وریځې تښتیدلې وې فکر مې کاوه چې لږ پخوا پر آسمان تورې او ویروونکی وریځې راخپرې وې او اوس تقدیر د تورو وریځو پر ځای د ستورو او سپوږمۍ قندیلونه روښانه کړل، خو پر دې هیواد له پیړیو پیړیو راسې ویروونکې تیارې مسلطې دي، او معلومه نه ده چې تر کومه به په دې تیارو کې د راګیرو انسانانو سترګې د رڼا په لټه پسې سرګردانه وي، آیا له دې سیمو څخه د دیوتاګانو طلسم نشی ماتیدای چې د یو انسان په زړه کې یې د بل انسان پرخلاف د کرکې او نفرت تخم کرلی دي؟

ما د خپل پای په باب فکر وکړ، باور مې و چې سهار شي، نو وبه مې نیسي. زما پر خلاف د شاهدی لپاره به ډیر کسان حاضر وی د مذهبی پیشوا

ورور چې په هوښ کې شي چيغې او فريادونه به اوچت کړي چې د نګر کوټ د پوځ هر سرتيرې به زما د وينو تږې شي. زما خپل کسان به ماليونى وبولي، خو دوى به ما د وژلو پر ځاى ژوندى نيسي او په نګر کوټ کې به مې د " تورى ديوې" پښې پريمنځې.

زما په وينو به د "تورى ديوي" پر درشل وينه تويوي.

ما فکر کاوه چې که مې مرګ نصيب دى، نو د تورى ديوى د درمسال انتظار ولې وکړم؟

زه د هغې چټلې په پښو کې د حلاليدو پر ځاي، دې سپيڅلې ځړوبى ته ولې ځان ونه غورځوم؟ زه د هغه مهال لپاره ولې پاتې شم چې هره شيبه يې ماته له مرګه زياته درنه ده؟ ځکه شوم داسې ځاى ودريدم چې په يوه ګام اخستلو د ژورې کندې تل ته پريوتم. دغه نړه چې څو ورځې وړاندې ماته هرڅه وه اوس يو له حقيقته لرې شى راته ښکاريدله، خو يو خيال داسې اوس هم و چې زما لمن يې رانيوله. زما د زړه درزا آشا، آشا چيغې وهلې، وريږديدم، سترګې منې پټې کړې او په يوه پښه مې ډبره ولټوله، چې له شا څخه مې ناڅاپه يو غږ واوريد. يو ځل بيا يې زما لاس او پښې د ژوند په هغو زنځيرونو وتړل چې نژدې مې تول شلولى وو، د آشا غږ و. هغې زما نوم واخست او راغله. زه يې تر متو ونيولم شاته يې کش کړم.

هغې سلګۍ وهلې ويې ويل: تا دې کندې ته ټوپ واهه او بلې غاړې ته دې ځان رساوه، تاته ددې د ژوروالى اندازه معلومه نه ده. دلته که ځان وروغورځوې، نو ددې ځړوبې د اوبو د څاڅکو په څېر به ټوټه ټوټه شې...

ما پر خپله حيرانى د راقابو کيدو هڅه وکړه ومې ويل:

آشا ته ولې بيرته راغلې؟

هغې وويل: واسديو! ستا څنګه پردې باور شو چې زه به تا د مرګ په کومې پريږدم او ځم به؟ ماته د درغو تسلې راکولو هيڅ ضرورت نه و.

ما وويل: تا بايد پر ما اعتبار کړې واى. آشا اوس هم لا وخت دى وتښته. هنى داس څه شو؟

آشا په ډاډ ځواب راکړ: هنى داس نور ډير لرې تللى دى.

ما وويل: ما له هغه نه دا تمه نه درلوده چې تا به پريږدى او ولاړ به شي.

هغې وویل: هغه زه نه یم پرېښې ، بلکې ما پخپله د هغه له سترګو ځان الونیه کړ او راغلم.
ما په دردناکه لهجه ورته وویل: ولې دې داسې وکړل؟
هغه احمق به درته ویلي وې چې زما ژوند په خطر کې دی.
آشا ځواب راکړ:
هغې ته د ویلو ضرورت نه و، هغه ژړل او ماته دده اوښکې پردې حقیقت د پوهیدو لپاره بس وې.
زه بې سیکه شوم په یوه ډبره کیناستم او ومې ویل:
آشا زه له مرګه نه ویریږم، خو چې ته بیرته راغلې ، ماته د مرګ تصور بیا ویروونکی شو.
که ته تر لږ ځنډه نه وای راغلې، نو ما به دې کندې ته ځان غورځولی و ، په دې تمه نه چې ما به بلې ځنډې ته ژوندی ځان رساوه، بلکې پردې باور چې زما مړی به دې لېوانو ته په لاس نه و ورغلی.
آشا ماته نژدې کیناستله. ویې ویل: زما سره یوازې ددې خبرې اندیښنه وه چې ته د خدای "بګوان" له رضا پرته چیرته د تلو هڅه ونه کړې.
ما چیغې کړې: ستا په ګومان زما د " بګوان" رضا داده چې زه په خپلو سترګو ستا دنیول کیدو ننداره ووینم! او بیا د توری دیوې په پښو کې حلال شم؟
هغې وویل: نه! ستا خدای غواړي ته ژوندی پاتې شې، که داسې نه وای ، ته به هغه ورځ له خوړ نه ، نه راوتلې، زما بابا ویلې وو چې خدای له ده نه څه کار اخلي.
ما وویل: ته لیونۍ یې آشا ، که هغوی زه ژوندی پرېښودم هم نو نصیب به مې د نګرکوټ د جیل تورې خونې وې، که مې له تاسره د بیا لیدو امید وای، نو ښایي ما د جیل هغه تورې خونې هم منلې وای ، خو هغه خلك چې له تاسره کوم سلوك کوی د هغې تصور ما پخپله د ځان وژلو ته هڅوي.
آشا ځواب راکړ: هغوی به زما په ژوند ماته لاس رانه وړي. خو ته به له ماسره وعده کوی چې ځان به نه وژنې که زه مړه شوم هم نو په یوه بله ځیره به راشم او تا به ولټوم.

ما آشا ډیره وپوهوله چې اوس هم تاته د ځان ژغورلو وخت شته. خو هغې زما عذر نه اوریده. په ختیځ کې د سهار ستوری راوخوت او ما دا احساسوله چې لږ ځنډ وروسته به پوځ زموږ لټون پیل کړي. آشا ماته له ژونده تېرېدل ګران کړل. غوښتل مې ددې په خاطر ژوندی پاتې شم. زما وضعه هغه چاته ورته وه چې په توپان کې ډیوه بلوي. کله به مې فکر کاوه چې پوځ به ځنګل لوری ته ولاړ شی او څوك به دې خواته پام وا نه ړوي. کله به مې پردې زړه ته تسلی ورکوله چې د پوځ سرلښکر به دې کلي ته د راتلو پرځای کوم بل مخاذ غوره کړی او پوځ به ور وغواړي، زه ددغسې ورکو امیدونو په تکیه راپورته شوم دآشا لاس مې په لاس کې ونیو او په نرۍ لاره لاندې د خوړ خواته کوز شوم.

هغه مړوی چې یو وخت ما له اوبو څخه یو بالښت اوچت لیدلې و اوس په اوبو کې ډوب و.

موږ د زینې په پاسنی پایه کیناستلو. د کمزورۍ. ستومانی او تېونو له لاسه زما وضعه ډیره خرابه وه. آشا زما سر په زنګنو تکیه کړې و.

ما ورته وویل:

آشا! ستا دا تمه شته چې هغوی دې لوری ته رانشي؟

هغې په داډ ځواب راکړ. زما یوازې پردې پوره داډ دی چې ته به ژوندی پاتې شې.

لږ ځنډ وروسته د سهار رڼا دې تیاره ګوښې ته هم راورسیده. ناڅاپه ما پاس د چا د پښنو غږ واورید. توره مې راوایستله او ومې ویل:

. آشا ته همدلته اوسه! امکان لری هغوی زما خپل کسان وي، زه څو پایې پاس وختم او په یوه ګرځندی کې ودریدم، چې د مخې سپاهی نژدې راغی، ما د تورې څوکه دهغه پر ختېه ورکیښوده، دا همغه ؤ چې جګت نارایـن د شپې د بندیانو د پهرې مسؤول ټاکلې و، هغه چې زه ولیدم چیغې یې کړې او زما توره دهغه نه بوټه ووته

دهغه یو بل سپاهی شور ګډ کړ او ګړندی لاندې راکوزیده. ما زر دهغه مړی یوې خواته وغورځاوه او پاس وروختم. هغه زه ولیدم حمله یې وکړه. تر څه ځنده. زه کلك شوم او مقابله مې وکړه. خو دهغه توندي او ګړندیتوب پر

ما غلبه کوله. ما یې ګوزارونه دفع کول او په شا بښکته روان وم. پاس د ډېرو خلکو چیغې او فریادونه اورېدل کېدل. د وروستي زینې سره مې په پوره څواک په خپل مقابل لوری حمله وکړه او هغه مې په شاته تلو اړ کړ. ناڅاپه دهغه پښه وښویېده او پړ مخې ولوېد. زما د تورې وروستي ګوزار هغه د مرګ په غېږ کې ویده کړ. اوس ما اشا پلو ته مخ واړوه، خو هغه هلته نه وه. د هغې تیکرۍ پر زینه پروت و او دا څو ګامه وړاندې په اوبو کې د توندې څپې په غېږه کې وه. چیغې یې کړې:

واسدیوه! ستا پر خپل خدای سوګند په ما پسې مه راځه!

زه تاته په پوره باور وایم چې دوی به ماته لاس رانه وړي. آشا د سترګو په رپ کې ځړوبې ته ورسیده او ما خپلې سترګې پټې کړې، چې بیرته مې وغړولې هغه ورکه شوې وه.

اوس له ماسره ویره او له ژوند او مرګ سره هیڅ پروا نه وه، ټول حواس مې د بدل او کسات په نه ختمیدونکي جذبه بدل شول. د لیونو په څېر مې چیغې وهلې او پورته سرنه روان شوم. انه. لس کسان یو ځای ښکته را روان وو. ما ددوی تر ټولو د مخې کس په یو ګوزار د مرګ کومې ته وسپاره. نورو تنګه لاره خطرناکه وګڼله او بېرته یې د پورته ختلو اراده وکړه. لږ ځنډ وروسته د کمره پر برنۍ برخه خلاصي فضا ته ورسېدم. هلته نږدې پنځوسو تنو زه را ایسار کړم. په هغوی کې سردار جګت نراین هم و. هغه چیغې وهلې او زما د ژوندي نیولو قوماندہ یې ورکوله. له هغې وروسته مې یوازې همدومره په یاد پاتې دي چې څلورو خواو ته مې بې دریغه حملې کولې او سپاهیان د پسونو په څیر رانه تښتیدل.

بالآخره زه بې سده پریوتم او دوی د ځای پر ځای وژلو پرځای د یوې عبرتناکې سزا په خاطر ونیولم او له ځان سره یې یوړم.

څو ورځې وروسته زه د نګر کوټ په جیل کې وم. د یوې اونۍ له بندي پاتې کیدو وروسته راته څرګنده شوه چې ما د تورې دیوي په پښو کې قرباني کړي.

خو دوې اونۍ نورې تېرې شوې. بیا ما ته معلومه شوه چې سلطان محمود پر ویهند یرغل راوړی دی او دنګرکوټ پوځ ویهند د راجه د ملاتړ

لپاره تللی دی، له دې پوځ سره مذهبي مشر او راجه هم تللي دي چې د هغوی له راتلو وروسته به زما د قرباني نبته تاکل کیږي.

د ویهند د راجه او له هغې وروسته د نګر کوټ د توري دیوی د پالونکو ماته زما په ګومان د آشا د خوب تعبیر وُ

*****

دنګر کوټ له فتحې وروسته سلطان محمود زه له جیل څخه خلاص کړم او ما هغه په دې هیواد کې د رڼا دیوه نوی علمبردار په حیث ګانه او په پوځ کې یې شامل شوم.

له ما سره په زرګونو داسې کسان د سلطان محمود په پوځ کې شامل شول چې له سترګو څخه یې دنګر کوټ د درمسال د بُتانو دماتیدو په سبب د وهمونو پردې لرې شوی وې. محمود غزنوی زما نوم عبدالواحد کېښود. هغه زما محسن دی. خو که دهغه نیکی یوازې زما تر ذات پورې واي، نو ما به له ده سره په جګړو کې د برخې اخستو پرځای خپل ژوند په یوازیتوب کې په کومه کوښه کې تیر کړی وای. له جیل څخه د خوشې کیدو څخه وروسته ما ته ددې بشپړ اختیار راکړل شوې و چې چیرته مې زړه غواړی ژوند کولی شم. خو زه هغه د دې هیواد د ستم ځپلیو خلکو مرستندوی ګنم. خدای هغه دیوه ډیر لوی هدف لپاره پیدا کړی دی او دغه هدف ماته تر خپل ژوند ډیر ګران دی. دا زما داستان دی او زما زړه ګواهي راکوی چې که ته زما په ځای وای. نو ستا احساسات به هم زماله احساس څخه بیل نه وو. رنبیر سر اوچت کړ. عبدالواحد ته یې وکتل، دهغه سترګې له اوښکو لمدې وې. په ډیره غمجنه لهجه یې وویل: که زه ستا پرځای واي، نو ژوندی به نه وم پاتې شوی. ته انسان نه یې، یو کمر یې.

عبدالواحد په موسکا وویل: کله چې ژوند د کوم هدف لپاره شي، نو له هر انسان څخه کمر جوړوي.

رنبیر وپوښتل:

له خوشې کیدو وروسته ته بیا هغه کلي ته ورغلی یې؟

عبدالواحد ځواب ورکړ: زه خو ځلې هلته تللی یم. هغه ویجاړ کلی اوس سرنه ودان دی. خو د آشا کور تش پروت دی . د غرونو وهمي خلك هغه

کورته دننه پښه نه ږدی او ویریږي. هغوی ګومان کوي چې د آشا روح هره شپه له دې کور څخه طواف کوي، زه پر دغسې خرافاتو عقیده نه لرم، په هماغه کور کې اوسیږم. خو بیا هم د شپې لخوا زه داسې احساسوم چې ددې کور دیوالونه سلګی کوی او کله چې زه دهغې خوږ لوری ته ورځم داسې حس کوم لکه آشا چې چیغې راته وهي، د ځروبی په نه ختمیدونکی نغمه کې زه د آشا ، آشا الفاظ اورم.

رنبیر وپوښتل: ستا دهغو ملګرو حال څنګه شو چې د بندیانو په خوشي کولو کې یې ستا ملاتړ کړی و؟

عبدالواحد ځواب ورکړ: هغوی ټول زما سره بندیان وو او له خوشې کیدو وروسته ټول له ماسره یو ځای د سلطان په پوځ کې شامل شول. هنی داس په هغه کلې کې د غزنیو خلکو سره اوسیده، زه د نګر کوټ له فتحې وروسته چې هلته ولاړم، هغه مې له ځانه سره راوست . اوس هغه هم د محمود په پوځ کې دی.

رنبیر وپوښتل: ستا پردې خبره باور دی چې آشا به بیا په کومه بله څیره ستا سره مخ شي؟

- نه ! عبدالواحد ځواب ورکړ:

آشا په خپل مرګ ماته یو هدف پرینښی دی او زه دهماغه هدف او ارمان د بشپړیدو لپاره هڅه او جهاد کوم . زیاتره داسې احساسوم چې دهغې روح ماویني. شپه تر نیمایی اوښتې وه. رنبیر له عبدالواحد څخه رخصت شو او دخپلې کوټې مخه یې ونیوه . نوره شپه یې په خپله بستره لټ په لټ اوښتو تیره کړه.

سبا ماښام رنبیر د نابللی میلمه په څیر هلته ورغی او له هغې وروسته د ورځې یو ځل دعبدالواحد د کوټې د دروازې ورټکول دده معمول شوی و.

د څو نورو لیدو کتو نه وروسته رنبیر داسې احساسوله چې په خیالونو کې یې یو ډیر لوی انقلاب راغلی دی. خو بیا هم هغه د پخوانیو اړیکو دشلولو او په یوې نوی دنیا کې د پښې ایښودلو لپاره یوې ځواکمنې جټکې ته اړتیا درلوده، دده حالت هغه چاته ورته و چې د سیند د توندو څپو څخه د ځان ژغورنې په خاطر د څنډې وښو ته لاس اچوي. خو دغه واښه یو یو شکیږی او

هغه هره شېبه دا احساسوی چې کومه یاغی څپه به د ده له لاسه وروستی تکیه هم واخلی او بیا به یې د یوه داسې منزل په لوری ورسره یوسي چې له هغې ځایه بیرته د ساحل په لور راتلل ده په وس کې نه وي.

د سیند پرهغه څنډه د رنبیر موسکی او خندیدونکی دنیا ودانه وه. بې شمیره هیلو او آرزوګانو لاسونه ورته غوړولی ولاړې وې، دهغه پلار، خور او د ماشومتوب ملګریو یې دا پیغام ورکاوه چې:

رنبیره! دی سیلاب کې د لویدو څخه د ځان ژغورلو هڅه وکړه. ته خپل دین او کلتور پرېښودای شې. دديوتاګانو له عظمت څخه انکار کولی شې، خو موږ نشی پرېښودای. دا رښتیا ده چې د نګرکوټ خاصو حالاتو له یوه انسان څخه د ټولنې او دستور دښمن جوړ کړی دی، خو قنوج نګر کوټ نه دی. او ته عبدالواحد نشې کیدای.

ستا نړۍ دهغه له نړۍ څخه بیله ده. ته یوازې نه یې. که موږ ته نشی راتلای. نو موږ درسره بوزه.

رنبیر ته دغه ورځ دډيرې اندیښنې ډکه ورځ وه. د عبدالواحد دا خبرې هره شیبه دده په غوږو کې کړنګیدلې چې ستا د جګړې په ځير ستا بندی توب هم بې هدفه دی. کله کله به دهغه په زړه کې دا خیال راغی چې د عبدالواحد په مخکې اعتراف وکړی چې د برهمنانو له دین او کلتور او یا د قنوج د واکمن دبری او ماتې سره هیڅ دلچسپی نه لرم. زه یوازې یو ځل د خپل پلار او خور لیدل غوارم. که ما خوشی کړې. نو دې وعدې کولو ته چمتو یم چې د مسلمانانو پر خلاف به په کومه جګړه کې برخه وانه خلم.

د رنبیر زړه دا ګواهی ورکوله چې که عبدالواحد دا واوری د پرېښودو حُکم به یې ورکړي، خو له دې سره رنبیر پردې پوهیده چې عبدالواحد دده د زړه په هره خبره پوهیږی.

هغه دده له غوښتنې پرته د ویهندله والی څخه د رنبیر د خوشې کیدو سپارښت کړی و، او رنبیر همدې احساس له هیلې اوغوښتنې څخه ایسار کړ.

* * * * *

یوه ورځ رنبیر د خپلې کوټې په مخه کې قدم واهه، چې یو سرتیری راغی خبر یې ورکړ چې د کلا ناظم غوښتی دی. رنبیر له سرتیری سره روان شو

عبدالواحد په خپل دفتر کې ناست و، هغه چې رنبیر ولید وې موسکل او په مخه کې یې یوې کرسۍ ته اشاره وکړه ویې ویل: کینه. زه یو زیری درباندې کوم.

د یوې شیبې لپاره د رنبیر وینې په مخ کې راغونډې شوې او دخپل زړه په درزا یې د راقابو کیدو هڅه کوله ویې پوښتل: د ویهند دوالی څواب راغی؟

عبدالواحد ځواب ورکړ، دهغه ځواب تر اوسه ندی راغلی، خو ډاډه اوسه ، ته به ډیر زر خپل کور ته ولاړ شې، اوس په ما د یوه بل کار لپاره را غوښتی یې.

د رنبیر زړه ولوید او خفه شو، عبدالواحد ته یې وکتل.

عبدالواحد د وریښمو په یوه وړوکی دسمال کې پیچلې یو لیک له میز څخه اوچت کړ، رنبیر ته یې ور وړاندې کړ ویې ویل: لومړی دا ولوله ستا له کوره راغلی دی.

رنبیر په لړزیدلیو لاسونو دسمال لرې کړ، لیک یې پرانیست او په لوستلو یې بوخت شو، لیک دهغه خور شکنتلا لیکلې و او مضمون یې داسې و:

زه شمبو نات ستا په لټون پسې استوم، خدای دې وکړی چې در ورسیږي. د ننده د کلا د خوشې شویو بندیانوله خولې ستا احوال راغی. که تا پلارجان د فدیې له استولو څخه نه وای ایسار کړی، نو هغه به له فدیې سره پخپله به ننده ته درغلی و.

خو ستا لیک هغه پردې مجبور کړ چې د پلارولۍ مینه د نوابزاده له غرور څخه قربان کړي، ستا د پیغام له رارسیدو وروسته ظاهراً هغه له خوښی په جامو کې نه ځاییده، هرچاته به یې همدا ویل چې ما له رنبیر څخه همدغه هیله درلوده، خو زه پوهیدم چې د ده زړه له زغم وتلی پوه بوج لاندې دی . هغه به ماته تسلې راکوله چې ډیر زر به د قنوج پوځ د نورو ډیرو راجه گانو او لویو راجه گانو له لښکرو سره یوځای پر دښمن یرغل ور وړي. او چې کله ستا ورور خوشې شي، د قنوج له پوځ سره به بیرته راشي. خلك به د راجه پرځای ستا د ورور ډیر درناوی کوي. خو دا یو خوب و او د قنوج له ماتې وروسته له پلار جان سره ددې خوب د تعبیر په باب څه نیکې هیلې نه وې. د یوه نوابزاده

غرور هغه ته اوس هم د خولې چوله کولو او څه ویلو اجازه نه ورکوله. خو چې زه دهغه څیره وینم، د زړه فریاد یې اورم.

زه دهغه له مشورې پرته شمبونات دراستوم او څه چې له ما سره وو هغه مې ده ته وسپارل، که دا ستا د فدیې لپاره بس وي، نو د خدای لپاره چې له جیل څخه راخلاص شوی کور ته راشه. زما او شمبونات څخه پرته به دا راز بل چاته معلوم نه وی چې ته مو د فدیې په بدل کې راخوشې کړی یې، ما مې پلار جان ته هم نه دی ویلي، ددې لپاره نه چې ګواکې هغه به یې بده ومني، بلکې ددې لپاره چې ستا انتظار به یې سخت نا کراره کړي، اوس هم د هغه وضعیت داسې دی چې یوازې له ځان سره ګړیږي. کله کله د شپې لخوا له بسترې څخه جګ شی ، دروازې ته منډه واخلی او نوکرانو ته چیغې کړي: دروازه خلاصه کړې، ما د رنبیر غږ واورید.

ترځان راته ګرانه وروره!

د ځان په اړه تر دې زیات څه لیکلی شم چې له هری ساه سره ستا نوم اخلم. ستا په یاد دی چې په ماشومتوب کې به کله کور ناوخته راتلې. نو ما به خوب نه کاوه او په کړکۍ کې به مې ستا انتظار کاوه. ته به کله کله پر زینه د راختلو پرځای د کړکی ترځنګ په ونه راوختې او زما کوټې ته به راغلې. ما به ځان قصدي ناګاره واچاوه او تا به له شا نه زما پر سترګو لاسونه کیښودل او ویل به دې: زه څوك یم!

او ما به هم ځان تیر کړ. د خپلې کومې خورلنې نوم به مې واخیست. زه اوس هم له ویده کیدو وړاندې د هماغې کړکۍ سره کینم او ستا انتظار کوم.

کاشکې ته راشې، ته به کله کله د خپلې وړوکې شکنتلا په کړس کړس خنداګانو په غوسه شوې، خو اوس ما موسکیدل هم هیر کړی دي، کله به چې ته کورته راغلې، زه به غلې شوم او تا به په ماپسې کور ګوټ په ګوټ ولټاوه ، اوس زه له څلور نیمو کلونو راهیسې ستا لارې څارم."

(ستا وړوکې خور شکنتلا)

د لیك په لوستلو د رنبیر په سترګو کې اوښکې راوخوټیدې تر لږ خنډه یې سربښکته اچولی و او چوپ ناست و. بالاخره یې عبدالواحد ته وکتل او لیك یې هغه ته ونیو:

دا زما د خور لیك دی. ته یې لوستلی شې.

عبدالواحد لیك له لوستلو وروسته بیرته رنبیر ته ونیو او یوه سرتیری ته یی غږ وکړ. بیا یې وویل:

کوتوال ته وو وایه له قنوج څخه چې کوم کسان راغلی دي، هغه ما ته راولي!

بیا یې قلم واخیست او په څه لیکلو بوخت شو. لږ ځنډ وروسته یې کاغذ د لیك په څیر قات کړ او په تار یې وتاړه. رنبیر ته یې وکتل او ویې ویل:

رنبیره مه ویریږه ته به ډیر ژر خور ووینې!

شمبونات له کوتوال سره کوټې ته ورننوت. هغه یو د مزبوتو متو بوډا سړی و، رنبیر چې ولید وروړاندې شو. شمبونات ټیټ شو د هغه د پښو ښکلولو هڅه یې وکړه، خو رنبیر تر متو ونیو او غیږ یې ورکړه.

د جذباتو له زوره تر څو شیبو د دواړو له خولې سوڼ نه خوت. د رنبیر په سترګو کې اوښکې ځلیدې. او شمبونات پر ډیر زحمت خپلې سلګۍ راایساروليې. ناڅاپه شمبونات رنبیر یوې خواته تیل واهه او خپله لویه پګړۍ یې د عبدالواحد په پښو کې وغورځوله.

هغه لاس په نامه ونیول او په ریږدیدونکی آواز یې وویل:

باداره! د ننده خلك وایي چې ته دیوتا یې.

عبدالواحد پګړۍ پورته کړه. بیرته یی دهغه پر سر ورکیښوده او ویې ویل:

د ننده خلك دروغ وایي. کینه او له ما سره په پوره داډ وغږیږه! ما یوازې یو انسان وبوله.

شمبونات له لږ زړه نا زړه کیدو وروسته پر ځمکه کیناست. عبدالواحد یوې چوکۍ ته اشاره وکړه ورته ویې ویل: پر هغه چوکۍ کښېنه!

شمبونات په عاجزی ورته وویل: نه باداره! یو نوکر ستاسره د برابر کیناستلو جرئت کله کولی شي.

-نه ته زموږ میلمه یې!

عبدالواحد دا وویل او بیا یې هغه تر مټ ونیو. جګ یې کړ او په یوه کرسی یې کښیناوه. شمبونات په خوله څه ونه ویل. خو سترګو یې له رنبیر څخه پوښتل چې ما خو به غلطي نه وی کړي. خو چې د عبدالواحد په اشاره رنبیرهم دهغه ترخنګ کیناست. شمبونات ژر بیرته پاڅید او لاس په نامه ودرید

رنبیر لږ پریشانه شو ویې ویل: شمبوناته کښینه! هغه په نه زړه بیرته پر کرسۍ کیناست. خوله ځیرې څخه یې معلومیده چې هغه له کرسۍ څخه جګیدو او تینبتې ته د یوې اشارې انتظار باسي.
عبدالواحد وویل:
ته د رنبیر له کوره راغلی یې؟
- هوکی باداره! که د سر خیر وي یو عرض وکړم؟
عبدالواحد وموسکل. ځواب یې ورکړ: دلته ستا سر ته هیڅ خطر نشته.
شمبونات له خپلې ملا څخه یو دسمال را خلاص کړ. له هغه څخه یې یوه وړوکې کڅوړه راوکښله. عبدالواحد ته یې وړاندې کړه ویې ویل: باداره! دا مې ستا خدمت ته راوړې ده. د خدای لپاره رنبیر خوشې کړه!
عبدالواحد ځواب ورکړ: دا کڅوړه دې له ځان سره ساته. موږ ته ددې لپاره ضرورت نشته.
- باداره ته خو یې یو ځل وګوره! ددې وزن ډیر نه دی. خو بیه یې ډیره زیاته ده.
باداره ته خو یې وګوره او شمبونات بیا په خپلو ریږدیدلیو لاسو کڅوړه خلاصه کړه. څو وړوکي وړوکې کاڼي او یوه د غمیو هار او یوه طلایي ږمنځ یې چې قیمتي غمي پکې کار شوي وو ترې راوایستل او عبدالواحد ته یې په مخ کې کیښودل.
رنبیر چې د خپلې خورګانه ولیده. زړه یې را ډک شو او مخ یې بلې خواته واړاوه.
عبدالواحد له شمبونات څخه تشه کڅوړه واخستله او ګاڼه یې بیرته په کې واچوله، ورته ویې ویل: دا زیور به له ماسره امانت ایښی وي چې کله بیرته تلې له مانه یې وغواړه او که ته دبنار په ځای له موږ سره همدلته اوسیدل غواړې، نو بیا یې له ځان سره وساته.
شمبو نات بیا لاس په نامه ودرید ویې ویل:
دا مه ردوه باداره! په دې زیور ځلور پیلان اخستل کیدای شي. د ږمنځې او امیل غمي ټول اصل دي. تاسو یې د ننده ګوم زرګر ته ورونبیي! که په دې کې کوم غمی بدل و. ما غرغره کړئ. بیا هم که دغه غمي د رنبیر د

خوشي کيدو بيه نشي پوره کولی، کورته د تلو موقع ورکړی، تاسو چې څومره نور غواړی، له کوره به يې درته را واستوي، په دې موده کې زه دې ته چمتو يم چې دلته په جيل کې يم.

عبدالواحد وويل: زما په ګومان رنبير د خوشي کيدو قيمت ادا کړی دی، دا يې وويل او بيا يې هغه ليک کوتوال ته ورکړ ورته ويې ويل:

تاسو دغه ليک همدا اوس يوه ذمه وار سړی ته وسپارئ او د ويهند والی په لور يې واستوئ. ما له دې وړاندې هم يو ليک ور استولی ؤ. خو تراوسه يې ځواب نه دی راغلی، د ديهند والی کله چې په دوره وتلی دی، تاسو استازی ته هدايت وکړئ چې هغه ليک د ويهند د والی دفتر ته پخپله ده ته وسپاری او تر څو يې ځواب نه وی راوړی، نه دی راځي.

کوتوال ليک واخست او بيرته ووت. عبدالواحد له خپلې کرسی څخه جګ شو. رنبير ته يې وکتل او ويې ويل:

سر له نن څخه تاسو زما ميلمانه ياست. ترڅو چې زما دليك ځواب نه وی رارسيدلي، تاسو به همدلته اوسی. ما د هند والی ته بيا ستا د خوشي کيدو په باب ليك واستاوه. زما اميد دی چې ددې ځواب ژر راشي. اوس تاسو به بله کوټه کې کښينئ او په پوره ډاډ روغبړ وکړئ.

عبدالواحد يوه نوکر ته غږ وکړ. هغه د خپل آقا په امر رنبير او شمبونات د پاسنی پوړ يوې پراخې کوټې ته بوتلل. شمبونات لاپخوا ډير وارخطا شوی و. دغه نوی عزت او احترام نور هم وارخطا او حيران کړ.

کله چې نوکر هغوی يوازې پريښودل او بهر ته ووت، هغه يو ځل بيا د رنبير په مخ کې لاس په نامه ودريد او ويې ويل: باداره! زما قصور وبخښه.

کله چې هغه د زمری په څير سترګې را برګې کړې او راته ويې کتل، ترې ووېريدم، که نه نو ستا سره د برابر کيناستلو جرئت مې نه کاوه.

زه پردې هم ويريدم چې هغه به پر ما په غوسه شي، خو غوسه به په تا سره کړي، خو پر دې ونه پوهيدم چې هغه له ماسره په دې ټوکو څه غوښتل؟ کاشکی تا هغه ته ويلي وای چې زه يو ټيټ ذاتي يم او زموږ کورنی له څلورو پښتو راسې ستاسو خدمتګاره ده.

• رنبیر هغه ته تسلې ورکړه ويې ويل: شمبوناته مه ويرېږه ! دې کلا ته له ننوتلو وروسته ستا ذات بدل شوی دی.

له نن څخه وروسته ته د نړۍ د هر انسان سره د برابری دعوه کولی شې. هغه بوت چې د انسانانو تر منځ يې د کينو او کرکو ديوالونه درولی وو ماتيدونکی دي. د رنبير وروستی خبره د شمبونات د ماغزو له سطحې څخه لوړه وه، هغه يوازې پردې وپوهيده چې ده ته ددنيا دهر انسان سره د برابری ددعوې مشوره ورکړې ده ويې ويل:

نه باداره ! ته داسې خبرې مه کوه، ماته همدا بس دی چې زه ستا خدمتګار يم.

دعبدالواحد نوکر بيا راغی له شمبونات څخه يې وپوښتل: ستا آس چيرته دي؟

شمبونات په واخطايی وويل: زما آس!

- هوکی ! ستا آس . بادار وويل چې که ستا آس او يا کوم نور څه سامان په سرای کې پاتې وی چې دلته يې راوړو.

شمبونات له لړزړه نازړه کيدو وروسته ورته وويل: آس مې پلورلی دي.

خو چې نوکر ولاړ رنبير ته يې په ټيټ آواز وويل: باداره! رښتيا خبره داده چې زه پر خره سپور راغلی يم. خپل آس مې ددې خلکو سيمې ته له ننوتلو څخه دمخه پرېښود په لار مې د غلو او داړه مارانوله ويرې ديوه ګدا ګر جامې اغوستې وې، که پر آس سپور وای، ښايی په لاره کې څو ځايه تلاشی شوی وای او زه به يې چې پر خره سپور ليدم، د چا ګومان نه کيده چې دومره دولت راسره دي.

پنځه ورځې وروسته سهار وختی د عبدالواحد نوکر د رنبير او شمبونات کوټې ته ورننوت . هغه رنبير ته د جامو يوه وړوکې غوټه او يوه توره ور وراندې کړه ويې ويل:

تاسو سفر لپاره دغه جامې واغوندې. آغا وویل چې له لمانځه څخه وزګار شي دکلا په دروازه کې به مو وینې. دغه توره هم هغه رااستولې ده. تاسو تیار شئ. زه به اوس بیرته راستون شم او تاسو به د دروازې د کلا لوري ته بوزم.

رنبیر د شپې د خپل کوربه له خولې زیرې اوریدلی و چې د ویهند والی لخوا یې د خوشي کېدو حکم راغلی دی او هغه به سهار خپل کور ته روان شي، خکه خو یې شمبونات ته د شپې په دریمه برخه کې ویل چې نور سهار کېدونکی دی.

رنبیر په بیړه جامې بدلې کړې. نوکر بیا راغی او هغوی یې له خانه سره ملګري کړل.

د دروازې په لور روان شول. د دروازې په مخې کې یو سپاهی دوه آسونه تر جلب نیولی ولاړ و.

د شمبونات لپاره د انتظار هره شیبه ډیره اندیښمنه وه. په خپ غږ یې په وار وار ویل: ډیره ناوخته شوه. وګوره اوس به لمر راوخیژي. ویریږم چې ددې خلکو اراده بدله نشي.

رنبیر هر ځل ورته ویل: مه ویریږه شمبوناته. هغه به اوس راشي.

عبدالواحد د کلا له کوتوال او څو نورو کسانو سره د خبرو په حال کې د یوه کونج څخه را ښکاره شو چې رنبیر ته ورنږدې شو. د ګانې کڅوړه او یو لیک یې ورته ونیو او ویې ویل: دا ستا امانت دي او دغه لیک ستا د خوشي کېدو په باب دی.

په دې کې د لارې تولو پهرو او ګزمو ته دا لارښوونه شوې ده چې ستاسو سره مرسته وکړي او چې هر څه ته مو ضرورت وي درته برابر یې کړي. له دې پرته به زما دعاګانې تل ستا سره وي نور تاسو ځند مه کوئ آسونه موتیار دي.

رنبیر د منني او احسان له جذباتو لاندې خپل محسن ته وکتل او ویې ویل: زه به دې تر عمره نیکی هیرې نه کړم. خو زما یوه هیله ومنه. زه اوس په خوښی خپلې فدیې اداکولو ته چمتو یم چې څومره پیسې وغواړې. زه چې

کورته ورسیږم درته استوم یې تر هغې پورې به زما د خورګانه ستاسره امانت وي.

عبدالواحد ځواب ورکړ: ما د خپلو اختیاراتو څخه بهر څه ستا سره نه دی کړي، د ویهند حاکم نه ما ستا په اړه چې لیك استولې و ، په هغو کې مې ددې ګانې خبره هم یاده کړې وه، خو هغه له فدیې پرته ستا د خوشې کولو په باب زما غوښتنه منلې ده.

رنبیر وویل: بیا هم لږ تر لږه ماته ددی آسونو قیمت ادا کول لازم دي.

دا زما شخصی مال دی، دا د یوه دوست سوغات وګڼه او ویې منه، دا یې وویل او عبدالواحد د خدای پامانی لپاره لاس ور اوږد کړ. لږ ځنډ وروسته رنبیر او شمبونات پر آسونو سپاره د کلا له دروازې څخه ووتل.

# روپ وتي

روپ وتی د سیند پر غاړه جامې مینځلې ،له لرې یې د چا د سندرې غږ واورېد او ناڅاپه یې مینځل پرېښودل . غږ ورو ورو ددې لوری ته ورنژدې کېده او له دې سره سم د روپ وتی د زړه درزا زیاتېدله. د هغه غږ له خوږوالی سره د هغې غوږونه آشنا وو . له دې وړاندې به چې کله دې دغه غږ اورېده، نو ناکراره به شوه او څلورو خواوو ته به یې نظر سرګردانه ؤ. خو نن ددې وضعه بدله وه. نن ددې زړه د خوښی پر ځای له وېرې لړزېده. دغې غږ دا د هغو پسرلیو . نغمو. خنداګانو او خوښیو په لور ورسره وړه چې د دې د تل لپاره مخه ښه ورسره کېدونکې وه. دی به په وار وار په خپل زړه کې ویل:

رام ناته. کاشکی ماته رانشې.

سندر بول ناڅاپه چوپ شو. روپ وتی د هغه د پښو ترپهار اورېده. په هغې کې د سر راپورته کولو او یا مخ را اړولو توان نه و. خو چې کله ددې غیږې ته سارایی ګلاب چا ورواچاوه. نو جګه شوه. څو ګلان په اوبو کې ولوېدل او د سترګو په رپ کې اوبو یووړل.

یو غنم رنګی ښکلی زلمی " رام نات" د روپ وتی په مخکی ولاړ ؤ او موسکل یې.

هغه په ونه ډېر جګ نه ؤ خو ټټر یې د معمول پر خلاف پراخ ؤ، ویې ویل:
نن دیوی د خپل پالونکی نذرانه رد کړه!

روپ وتی سر اوچت کړ، په غټو غټو سترګو کې یې اوښکې ځلېدلې.

رام نات په ژړه غونی آوازوویل:روپا ،روپا! ته ژاړې! چا څه درته ویلی دي؟

روپا په خپل تیکري اوښکی پاکې کړې ویې ویل: رام ناته . ته به زما یوه خبره ومنې؟

رام نات په ناکراری ځواب ورکړ: روپا ستا اوښکې پر ما هره خبره منلی شي وایه!

هغې ووېل. که زه درته ووايم چې نور مانه مه راځه، نو....؟
رام نات خواب ورکړ: ديوې خپل نمانځونکي ته دا حکم کولی شي چې ځان ووژنه. خو دانه چې ته مې نمانځنه مه کوه.
روپ وتی په غريو نيولی آواز ووېل: زه پوهيدم چې ته به راپورې ملنډې وهې، خو دا ټوله زما ګناه ده، کاشکې ما پخوا تا ته ټول حال ويلی واي.
رام نات هم انديښمن شو ويې ويل: زه يوازې دومره پوهيږم چې د نړۍ هيڅ يو قوت زموږ په منځ کې نشي ځاييدای.
روپ وتی ووېل: زه ډير زر داسې ځای ته ځم چې ته ځان نشی را رسولي، موږ ته د يو بل له هيرولو پرته، بله هيڅ چاره نشته.
رام نات د موسکی کيدو هڅه وکړه ويې ويل:
زما سره ټوکې مه کوه، که ته آسمان ته وخيژې هم زه به درپسې درشم، ته زما يې او هيڅوك دې هم نشي رانه اخستلای. که ستا ماما غواړي تا بل چاته واده کړي، نو زه به مې پلار همدا نن ستا ماما ته واستوم او زما باور دی چې هغه به پردې راضی کړي.
روپ وتی ووېل: نن چې زه درته وايم درته به معلومه شی چې زما په باب ستا پلار او زما ماما ټول بې دمه او ناتوانه دي.
زه د سومنات درمسال ته د يوې داسې "د بوتانو خدمتګارې" په حيث ځم. که زما ماما هڅه وکړی هم نه مې شی را ايسارولی. زما مور زما د زيږيدو نه دوې ورځې وروسته مړه شوه، په هماغه ورځ د سومنات د درمسال يو پالونکی راغلی و د هغه په مخکې زما پلار دا نذر منلی و چې که مې لور ژوندۍ پاتې شوه، نو د سومنات د درمسال خدمتګاره به وي. د يوه کال وم چې پلار مې هم مړ شو، زما ماما اولاد نه درلود، ځکه يې زه د خپل اکا له کوره راوستم، زما ماما ته معلومه وه چې پلار مې د سومنات درمسال ته نذر کړې يم . خو هغه غوښتل دغه راز پټ کړي، هغه ماته هم دا نه و ويلې ، خو پروسږ کال زموږ تره راغی او دهغه له خولې ماته معلومه شوه چې زما اصلی کور د سومنات درمسال دی. دا زما ګناه ده چې هماغه مهال مې بايد درته ويلې واى. اصلاً ما تاته د دوکې درکولو په خاى ځان دوکه کاوه. زما ماما به ويل چې هر کال په زرګونو تنه خپلې لوڼې د سومنات درمسال ته وقف

کوي. خو داسې نجونې ډېرې لږې وي چې د لوېيدو څخه وروسته د درمسال د خدمت جوګه وبلل شي. زه پردې تمه ژوندۍ وم چې د سومنات پالونکی به ما هم د زرګونو نورو نجونو په څېر له لیدو وروسته رد کوی او بیرته به ولاړه شي.زموږ تر منځ به هغه دیوال نه وی چې تر اوسه هیڅا را ونه غورځولای شو، خو خدای ته دا منظوره نه وه.

وړمه ورځ چې د درمسال پالونکی دمالیې د ټولولو لپاره راغي، زما کاکا هم را ورسید او هغه یې زموږ کره راوست. سږ کال زموږ د کاکا دوه غوایان مړه شول. او هغه دا احساسوی چې تر اوسه زما د سومنات درمسال ته د نه تلو په سبب دیوتاګان ناراضه شوی دي، پنډتانو چې وړمه ورځ زه ولیدم ویې ویل چې بیرته راستانه شوو تا به له ځانه سره بیایو.

د سترګو په رپ کې د رام نات د خیالونو ښکلې نړۍ ورانه شوه، پر شونډو یې یوه غمجنه موسکا خپره شوه. ویې ویل:

نو ددې مطلب دادی چې که نن یا څو ورځې نور نه وای راغلی ته به زما له لیدو پرته تللې وای؟

روپ وتي ځواب ورکړ: هوکې ! ما هیڅکله دا.نه خوښول چې زما په سبب لوی بادار دربانډې په غوسه شي. د هغه غوسه غرونه ویلې کوي. رام ناته! وعده وکړه چې ته به نه راپسې راځې!

رام نات له ډېر زغم څخه کار واخست ویې ویل:

روپا! زه پردې هیڅ اندیښمن نه یم چې ته سومنات ته ځې. دولت هره ستونزه آسانه کولی شي. ما اوریدلی دي چې د سومنات ځینو خدمتګارو ته د واده اجازه هم ورکول کیږي په دې شرط چې له هغوی سره واده کوونکی د درمسال لمنې له سرو او سپینو ور ډکې کړي. زه نن ددې لپاره راغلی وم چې تاته ووایم چې زه د ګوالیار د راجه په پوځ کې شامل شوم او ځم او بیا به د یوه غریب بزګر د زوی په بڼه ستا مخې ته نه راځم.

بلکې زما متو به زما لپاره د پرمختګ نوی دروازې خلاصې کړې وي. زما هیله وه چې کومه ورځ په پیل سپور ستا د ماما کور ته راشم او دهغه په مخکې تاته خپله غیږ خلاصه کړم. خو اوس که ته د سومنات درمسال ته ځې.

زه په باور سره وایم چې ډیر ژر به هلته درشم او که ستا د ترلاسه کولو لپاره ماته د کوم راجه د تاج غمی په کار یدل هم صرفه به ونه کړم.

روپ وتی ځواب ورکړ:

ته دهغو نجونو خبره کوې چې هلته په خپله خوښه د زده کړې لپاره ځی او دهغوی مور او پلار یې په دې امید هلته استوی چې شهرت یې زیات شی او لوی لوی سرداران او راجه ګان یې وغواړي. خو زه د درمسال په نامه قربان شوی یم. هلته له ننوتلو وروسته رابانديې د دنیا ټولې دروازې بندیږي. زما د ژوند یوازینی مقصد به د بوتانو او بوت پالو خدمت وي. بوت پالونکی ویل چې زما په څېر نجونې د سومنات دیوی ګانې کیږي، ته خو بیا پوهیږی چې د سومنات دیوي ته د هندوستان تر ټولو لوی راجه او واکدار هم د سترګو پورته کولو جرئت نشي کولی. زه ستا لپاره مړه شوې یم.

رام نات د ډوبیدونکی انسان په څیر خاشاکو ته لاس اچول. ویې ویل: نه زه به د سومنات د نمانځونکی په حیث هلته درشم. زما لپاره به همدا بس وی چې دواړه د یوه هدف لپاره ژوندي وو.

زه به ټول عمر په دې امید د سومنات د دیوتاګانو د ستاینې سرودونه وایم چې که یوه ورځ رابانديې مهربانه شی او موږ ته دخپلې ویجاړې دنیا د بیا ابادولو اجازه راکړي.

چا د ګنو ونو له منځه چیغې کړې: روپا . روپا!

روپ وتی وویریده ورو یې وویل:

رام ناته ولاړ شه! د خدای لپاره ولاړ شه. ما له ماما سره وعده کړې ده چې نور به له تا سره هیڅ خبرې نه کوم

- زما تر اوسه له تاسره ډیرې خبرې پاتې دي، زه وعده کوم چې که ته سومنات ته ولاړې، زه به هم ډیر ژر هلته درځم او هغه خبرې چې د انسانانو د وړاندې نشو کولی هغه به د دیوتاګانو په وړاندې کوو.

رام نات دا وویل او بیا په ونو او بوټو کې شاته غلی شو

روپ وتی زریو ټوکر راپورته کړ او له نیښتیخلو وروسته یې په زوره غږ وکړ: ماما څه خبره ده . زه دلته یم!

یو عمر خوړلی سړی د ونو له مینځه راښکار شو ویې ویل:

لوړی ډیر ځنډ د وکړ اوس په بیړه کوزنه څه!
- اوس څم ماما جانه یوازې یوه ټوټه پاته ده.
- ښه ده زر کوه. د هغې ماما دا وویل او لږ وړاندې د یوې ونې لاندې کیناست. لږ ځنډ وروسته روپ وتی او ماما یې د کوز په لوړ روان شول او رام نات له ګنو ونو څخه راووت، هغوی ته یې کتل، کله چې دوی له یوه پټی څخه تیر شول او کلی ته ننوتل رام نات هم دخپل کلي په لور وخوځید.

*****

د رام نات پلار ګوپی چند یو معمولي بزګر و. د هغه کلی د سیند پر غاړه په هغه شل میله اوږده او پنځلس میله سورره سمسوره سیمه کې و چې د سومنات درمسال ته وقف شوې وه. د سومنات درمسال ته دغسې سیمې دهندوستان د ډیرو ریاستونو راجه ګانو او نوابانو وربخښلې وې.

د ګوالیار د راجه واکمني پر دې سمسورې سیمې تش په نامه وه. اصلي واك د هغو مذهبی مشرانو په لاس کې و چې د سومنات د لوی مشر د نمایندګانو په حیث یې له بزګرانو څخه مالیې ټولولې. هر کال به د درمسال پالونکي په پیلانو سپاره شول او وبه وتل او دخلکو نه به یې مالیه راټوله کړه او بیرته به راستانه شول. د مالیې اندازه هم معلومه نه وه. د سومنات استازو خلك په دوارو لاسو لوټول. که دچا د مالیې په ورکولو کې څه ناغیړی کوله، دهغه مال او څاروي به یې ضبط او ورسره وژل به یې.

د درمسال د پالونکیو د هستوګنې په وخت کې د هغوی پیلان د خلکو په کښتونو کې آزاد څریدل او دخلکو کښتونه به یې بربادول، پنځوس شپیته وسله وال کسان د لوی مذهبی پیشوا له خوا ددې سیمې لپاره ټاکل شوې وو چې د سومنات د پالونکیو په یوه اشاره به یې هغه خلك چې د مالیې په ورکولو کې دوه زړې وو ویرول، وهل) او یا به یې بې عزتی ته تیار وو، د سومنات د پالونکیو د زیاتیدونکی حرص او هوس څخه په تنګ راغلی د کلیو خلکو به تل هغه وختونه یادول چې د دوی نیکونو او پلرونو د سومنات د مذهبی پیشوا پر ځای خپلو واکمنو ته مالیه او جزیه ورکوله او هغوی دومره خوښ وو چې هر کال به یې په خپله خوښه د سومنات لپاره په زرګونو روپۍ په خپله خوښه نذر ورکاوه.

د رام نات پلار ګوپی چند په ځانګړې توګه د هغه وخت یادونه کوله او ددې سبب دا و چې پر دې سیمه د سومنات د پالونکیو له واک څخه د مخه دده د بابا په لاس کې یو بشپړ کلی و. خو چې کله سیمه د سومنات د درمسال نذر شوه. نو د مالیې ټولوونکیو پنډتانو د لوټ او چور له لاسه په څو کلونو کې مفلس شو.

تر څو د ګوپی چند سترګې غړیدې. دهغه په واک کې یوازې یوه اندازه ځمکه پاتې وه. ده د خپل پلار او نیکه په څیر له بزګرانو څخه یوازې خپله روا برخه اخستله. خو برهمنانو له دې خبرې سره سرو کار نه درلود چې دده عایدات څنګه دي؟

هغوی ددې خلکو له خولې څخه د نمرې د تښتولو څخه ډډه نه کوله، د خپل عزت د ساتنې په خاطر ګوپی چند هر دوهم او یا دریم کال د یوې ټوټې ځمکې په خرڅولو مجبوریده. د ټولو هندوانو په څیر ده هم د سومنات درمسال لپاره دخپل سر پر قربانولو دریغ نه کاوه او دایې خپل فرض باله. خو هغه په دې خبره ډیر خوابدی کیده چې د زرګونو انسانانو د خولو او وینو قربانی د څو تنو د درمسال پالو د عیش او عشرت. سامان برابرولو ته وقف دي. ده هغوی ظالمان. لوټماران او ډاکه ماران بلل. د سومنات پالونکی په داسې نامه یادول دمرګ له بلنې سره مترادف و. خو خلکو د ګوپی چند درناوی کاوه. هغه ډیر د سخي طبعی خاوند و که به د چا خاروی مړه شول او یا به یې فصل تباه شو . نو ده به خمکه پلورله د هغه له مرستې څخه به یې دریغه نه کوله. که به د درمسال پالونکیو کوم بزګر د مالیې دنه ورکولو په تور سرتیرو ته حواله کړ. نو هغه به خپله وروستی تکیه ګوپی چند باله.

په دغسې وضعه کې د ګوپی چند هر ګام د بې وزلی په لور و. لوی زړه او د شتو کمی یې ډیر اعصاب خراب کړی و. خو خلکو دده دغه بدخویی هم غوره ګڼله او مینه یې ورسره کوله. د هغه په وړاندې د سومنات ددرمسال بوت د نرۍ نر ټولو زیات داحترام وړ شی و او تر ټولو زیات د کرکې وړ هغه انسانان وو چې د سومنات د بوت په نامه د مالیې ټولولو لپاره ددوی کلي ته ورتلل

همدغسې په ځارویو کې چې څومره ده له غوایي سره مینه دلوده، تر هغې څو چنده یې له پیل څخه کرکه کوله. په خاص ډول هغه ورځې دده کرکه او نفرت تر مورکو واوښته چې د درمسال پالونکیو ددوی په کښتونو کې اته پیلان خوشې کړې وو او په درې ورځو کې ددوی تر نیمایي فصل زیات برباد شوی و.

خلکو پیل دیوتا باله، خو ګوپی چند ویل که ددیوتاګانو کار د فصلونو بربادول وی ، نو پیل تر ټولو لوی دیوتا دی. د کلي ټوکمارو او شوخو خلکو به کله راګیر کړ او ورته ویل به یې چې بابا له پیل څخه دې دومره کرکه پرڅه ده؟

ګوپی چند به چې دا واوریدل له اختیاره به ووت او ویل به یې: بچو! که ستاسو فصل تیار وی او پیلان یې پر خرتوم باندې غوبل کوي. نو زه به بیا وګورم چې تاسو به هغه په کومه خوله دیوتا بولی. په بګوان "خدای" سوګند چې زه خو پیل د دیوتا د سپیڅلې هستی او د بګوان نماینده څه چې په ځارویو کې هم نه شمیرم.

په شمال کی د محمود د لومړنیو حملو په سبب د هندوستان د راجه ګانو د پوځونو سره ددوی د پیلانو په باب هم خبرې تودې شوې او د خلکو په نظر د پیلانو اهمیت نور هم زیات شو. ګوپی چند د شغوی په اړه ترڅه مودې خپله کرکه نه ښکاروله او د پیلانو په اړه یې د څه ویلو څخه ډډه کوله. خو چې د هندوستان د پرلپسې ماتو سره سره دا خبرې هم اوریدل کیدې چې په پلانی جګړه کې دښمن زمونږ دومره پیلان نیولی دی او په پلانی جګړه کې پیلان وترهیدل او زمونږ خپل پوځونه یې تر پښو لاندې کړل، نو د ګوپی چند اعصاب به بیا ورته خراب شول ، هغه به زیاتره دا ویل: په بګوان قسم! دا پیلان به مونږ له پښو وغورځوی او بیا به مو پریږدي. ددغه ځناور سر له عقله تش دی او خدای د عقل په ځای پزه ورکړې ده. زمونږ لپاره دوه مصیبتونه دی د سومنات د لوی پیشوا د پالونکیو خیټې او د پیل پزه ( خرتوم).

د رام نات د راتلونکی په باب له ګوپی چند سره اندیښنه وه . دده تر ټولو لویه هیله دا وه چې رام نات سرتیری او پوځی شی او که هغه د راجه په پوځ کی کوم لوی منصب ترلاسه کړي. نو دی به دغه سیمه پریږدی او کوم بل ځای به میشت شی چې د سومنات د پالونکیو له چور او لوټ نه په امن وي. په هغه

ورځو کې سرتېريو ته د پوځي زړورتيا په بدله کې لوی لوی جاګيرونه او ځمکې ورکول کېدلې ګوپي چند هم په همدې تمه خپل زوی څو کاله يوه مذهبي پيشوا ته د زده کړې لپاره پرېښود او بيا يې غشي ويشتلو، توره وهلو او د آس سپرلۍ دزده کولو لپاره وزګار پرېښود، په شاوخوا کليو کې ډېر داسې کسان وو چې ځوانۍ يې د راجه په پوځ کې په خدمت تېرې کړې وې.

رام نات به هغوی ته ورتلو او د پوځي مهارتونو زده کړې يې ترې کولې. کليوالو به په ميلو کې غيبرې نيولې، رام نات به هم په هغو کې برخه ورسره اخيسته.

د ځوانۍ په پيل کې هغه د خپلې سيمې ډېر نامي پهلوانان ځملولي وو، ګوپي چند د خپل بچي پر زور نازيده، خو دهغه يو خوی يې هيڅ نه خوښيده، هغه دا چې د رام نات له موسيقۍ او ساز او سرود سره ډېره مينه وه، دده لپاره دا خبره تر کنځلې کمه نه وه چې زوی يې ښې سندرې وايي او ښې بدلې جوړوي.

د رام نات بدلې ډېرې مشهورې وې. دشاوخوا شپنو هڅه کوله چې دده بدلې دده په نظم ووايي. روپ وتی دغو سندرو درام نات په لوړ ور ماته کړې وه.

د ګوپي چند څو کښتونه د روپ وتی د ماما د کښتونو سره پوله پر پوله وو، رام نات به کله کله د خپلو بزګرانو د مرستې لپاره ورتلو. يوه ورځ يو بزګر ناروغ و. رام نات د هغه پر ځای يوې (قلبې) ته ولاړ. د روپ وتی ماما په بل پټي کې ده ته نژدې قلبه کوله. رام نات ورو ورو له ځانه سره بدله زمزمه کوله او بيا څو شيبې وروسته هغه له خپل چاپېريال څخه بې پروا په لوړ غږ سندره پورته کړه، د روپ وتی د ماما په شمول شاو خوا بزګران د هغه خوندور غږ وزنګول، روپ وتي يې ماما ته ډوډۍ راوړه، له لږ ځنډ وروسته هغې هم د رام نات بدلو ته په مينه غوږ ونيو. د روپ وتي ماما غږ پرې وکړ او ورته ويې ويل: راځه ياره ډوډۍ وخوره!

رام نات قلبه ودروله ځواب يې ورکړ: ډوډۍ مې خوړلې که شرومبې وي نو درځم.

- راحه شرومبې ډېرې دي!

رام نات کار پرېښود ورغی هغه ته نژدې کیناست، روپ وتي هغه ته يو جام ډك کړ ، رام نات چې د شړومبو له څښلو وروسته تش جام ورته ونيو دی ورته وویل: نورې درکړم!

د روپ وتی ماما وویل: وځښنه یاره شړومبی ډېرې دی ، ستا غونډې څوان سړی ته يو جام شړومبی څه دي؟

- ښه ده راکړه!

روپ وتی موسکی شوه او بل جام يې ورکړ، د شړومبو له څښلو وروسته رام نات د روپ وتی له ماما سره په يوه او بله موضوع خبرې اترې کولې او بيا جګك شو ولاړ ، خو تر ډېره يې تر سترګو لاندې دتورو غټو سترګو خاوندی نجلۍ تصویر نځيده، تر څو ورځو پورې يې بيا روپ وتی ونه ليده.

يو سهار ده په سيند کې له لامبلو وروسته جامې اغوستې چې څو ګامه لرې د ونو په منځ کې چا ورو ورو سندرې ويلې ، دا د يوې نجلۍ زړه وړونکی غږ و او سندره هماغه وه چې رام نات په فصل کې د کار پر وخت ويله. سندرې ویونکی يوه ناره وکړه او بيا ناڅاپه چوپه شوه.

لږ څنډ وروسته يې بيا دوهمه مصرع څه د رام نات الفاظ او څه له ځانه ورسره جوړ کړل او سندره يې په يوه شړيدلی شکل پوره کړه، رام نات زړه نا زړه اصلی سندره وويله او سندرغاړې بيا چوپه شوه. يوې نجلۍ څو څاروی وشړل او د ونو له منځه راووته . رام نات حيران هغې ته کتل، دا روپ وتی وه، کله يې چې څارويو ته اوبه ورکړې او بېرته ستنه شوه، نو رام نات لږ له جرئت نه کار واخست ورته ويې ويل:

ګوره! ته حق نه لرې چې زما سندره ګډه وډه کړې، روپ وتی مخ ور واړاوه موسکی شوه او بيله دې چې څه ووايي خپل څاروی يې وځغلول او په ځنګله کې ننوته لږ څنډ وروسته رام نات بيا دهغې د سندرې غږ اورېد ، اوس هغې د واړه مصری ګډې وډې ويلې. دا يې پيل و او شپږ مياشتې وروسته د همدغه سيند په غاړه دواړو په له يو بل سره ځانونه د مينې په وعدو تړل. دا هغه مهال و چې د ستلج له سيند څخه پورې غاړې ته د سلطان محمود د برياوو په سبب د هندوستان ټولو راجه ګانو د راتلونکو خطرونو احساس کاوه او خپل پوځی قوت يې زياتاوه. د رام نات زيات همځولی د ګواليار په پوځ

کې شامل شوی او تللي وو ، د یوه پوځي په حیث د نامه ایستلو شوق د رام نات په زړه کې له پخوا څخه و. اوس د روپ وتي د راتلونکي په باب دده، ارادې نورې هم اوچتې کړې وې. خو د خپلې مور د اوږدې ناروغۍ په سبب هغه له کوره نشو تلای، درام نات مور نرځلورو میاشتو پوری د مرګ او ژوند تر منځ په کشمکش تیرولو وروسته مړه شوه او د هغې له مرګه درې میاشتې وروسته رام نات په پوځ کې شامل شو ، خو له تلو څخه وړاندې له روپ وتي سره دده وروستي لیدو د ده د خیالونو محلونه را ونړول. اوس دی د پلار د پخوانۍ هیلې د ترسره کولو لپاره روان و.

*****

رام نات چې له کوره تللی و دوه کاله یې تیر شول ، په دې موده کې د محمود غزنوی د فتحو سیلاب د ګنګا او جمنا ډاګونو ته مخه اړولې وه، د جنوب ختیځ هندوستان خلکو په لومړي سر کې دا ډاډ درلود چې د قنوج د لوی راجه تر قوماندې لاندې د نورو راجه ګانو متحد پوځ په وړاندې راشي او د دښمن مخه به وګرځوي. خود محمود ګړندیتوب دهغوی په زړونو کې دا اندیښنه رااوچته کړه چې ددې لښکر د خوځیدو څخه دمخه به د غزني پوځونه د لارې ښارونه او کلاګانې لاندې کړي او قنوج او کالنجر ته به ورسیږي. د متهرا برهمنانو پردې باور درلود چې د وطن هر سپاهی به ددې سپیڅلي ښار تر دیوالونو لاندې ځان ووژني . خو دښمن به هغو سترو او شاندارو درمسالونو ته نژدې پرې نږدي، چې له پیړیو را په دې خوا تول واړه او لوی راجه ګان خراج ورکوي.

له سر سوا څخه تر کالنجر او ګوالیار پورې د هر درمسال پالونکی ( متهراو ساتي) ، نارې اوچتې کړې وې، کله چې محمود غزنوی د سرسوا واکمن ته له ماتې ورکولو وروسته برن لوری ته وړاندې ولاړ، نو د "متهرا" برهمنانو راجه ګانو ته کنځلې کولې او شاو خوا په ریاستونو کې تیت شول او له اولس څخه یې د متهرا د دفاع لپاره د مالي او ځاني قربانیو غوښتنه کوله. د نورو ریاستونو په څیر د ګوالیار پر خلکو هم د متهرا د مذهبي مشرانو کوکو او فریادونو اغیزه وکړه، په سلګونو ځوانان د متهرا د ساتنې

لپاره وخوښدل او اولس دهغو رضا کارانو د مرستې لپاره په خلاص زړه چندې ورکړې.

څو مذهبي مشران د ګوپي چند کلي ته هم ورغلل. هغوی د شاو خوا کليو وتلي مشران راټول کړل او دمرستو غوښتنه يې وکړه. د متهرا د مذهبي مشرانو د خبرو اترو اغيزې لاندې ډير ځوانان متهرا ته تلو ته چمتو شول. خو چې د آسونو او وسلې د برابرولو خبره رامخې ته شوه، نو خلکو دا عذر وړاندې کړ چې په نژدې وخت کې د سومنات پالونکي د ماليې د راټولولو لپاره راغي او هغوی به چاته يوه ټنګه هم ونه بخښي. که دهغوی ويره نه وای، دلته هر سړی دی ته چمتو ؤ چې له خپلې ګيډې يې وسپموي. خو دمتهرا د ژغورلو لپاره د رضا کارو سره مرسته وکړي.

د متهرا برهمنانو خلك پوهول چې سومنات درمسال په ټولو رياستونو کې ځمکې او جايداد لري او په هغو ځمکه ورکونکيو کې ډير داسې دی چې خپله ټوله شتمني يې د متهرا د سپيڅلي ښار ددفاع لپاره ورکړې.

د سومنات درمسال له دې ځايه په سلګونو ميله لرې دی . ځکه خو دهغو ساتونکی دمحمود غزنوی څخه څه انديښنه نلري. خو متهرا ته د محمود غزنوی په رسيدو کې ځنډ نه راځي. که موږ په متهرا کې د دښمن غاښ ورمات نکړل، نو هغه ورځ لرې نه ده چې دهغوی آسونه به په دې کليو کې منډې وهي.

ګوپي چند دهمدې برهمنانو په ملاتړ خبرې وکړې ويې ويل:

ورونو ! د دښمن په لاره کې متهرا زموږ تر ټولو لوی مورچل دی، د متهرا ماته به د هندو دين ماته وي، که د سومنات پالونکی دومره بې حسه شوی وي، چې دښمن د جمنا او ګنګا پر خاوره وينې هم په هوښ نه راځي ، نو موږ بايد د هغوی پروا ونه کړو ، کله چې هغوی راشي موږ به ورته ووايو چې تر څو زموږ خپله آزادي په خطر کې ده ، تاسو ته خراج نشو درکولی. موږ به له خپل راجه څخه هيله وکړو چې هغو خلکو ته پر موږ د ظلم او تيری اجازه ورنکړي چې زموږ د وينو اوښکو په حاصل يې خيټې پړسيدلې دي. که راجه زموږ کريږې او فرياد وانه وريد ، نو موږ به د ځان دفاع پخپله وکړو . د متهرا مذهبي مشرانو که د ځانونو لپاره څه غوښتي، نو موږ به خامخا ورته ويل

چې موږ د سومنات رعیت یو او له موږ سره ستاسو لپاره یوه تنکه هم نشته.
خو اوس که زه د متهرا د ساتنې لپاره دخپلې ټولې شتمنی قربانولو ته چمتو
یم. نو زما ددې قربانۍ هدف د هندو مذهب د ناموس او دخپلې آزادۍ او
عزت ساتنه ده، د سومنات د پالونکیو په اړه د زیاتو خلکو احساساتو د ګوپی
چند څخه توپیر نه درلود. خو په داسې ډک مجلس کې دبرالا جرئت یوازې
ګوپی چند کولای شوای، د ګوپی چند له وینا نه وروستو خلکو له کورونو څخه
پیسې او غلې راوړی او د متهرا د مذهبی مشرانو په پښنو کې یې انبار کړې.
ښځو خپلې ګاڼې لرې کړې او دوی ته یې وړاندې کولې، ګوپی چند چې خپله
غله پلورلی وه او د سومنات د درمسال لپاره یې څومره پیسې ټولې کړې، هغه
یې ټولې د متهرا د دفاع لپاره ورکړې.. په دې سربیره په کور کې ده د میرمنې
زیور پروت و او دده دا آروز وه چې دغه زیور به یوه ورځ دده د زوی ناوی
اغوندي. خو ده د کلی تر نورو خلکو د وړاندې کیدو په دود هغه ګاڼه هم ټوله
دمتهرا برهمنانو ته راوړه. له دې وروسته ګوپی چند ددې هیئت سره دسیمې
دوره وکړه. د هندوستان د نورو درمسالونو په څیر د متهرا دمندرونو
پالونکیو هم د سومنات له اعتبار او نفوذ سره ضد او حسد درلود. هغوی
دګوپی چند په څیر د بې باکه کسانو څخه پوره پوره ګټه اخسته او د سومنات
د پالونکیو پرخلاف کومې خبرې چې دوی پخپله نشوای کولای هغه یې د
ګوپی چند له خولې وایستلې. د ګوپی چند د لمسون لپاره دوی ته همدومره
ویل بس وو چې په دې زمانه کې داسې سپین ګوی او ریښتینې سړی غنیمت
دی ګوپی چند غوښتل په هره وینا کې دخپلې ریښتینولی او زړورتیا یو نوی
ثبوت وړاندې کړي. د ځینو کلیو پر خلکو د ګوپی چند خبرې ښې نه لګیدې
او هغه به یې ګواښه، خو ده به خپل هر اعتراض کوونکی ته ځواب ورکاوه
چې ته بې زړه یې او زه بې زړه او بې همته نه یم.

تر شلو ورځو پورې د متهرا د برهمنانو هیئت په دې سیمه کې د پاتې مال
او شتو پر ټولولو برسیره د متهرا د ساتنې لپاره زر تنه جنګیالی رضاکاران
هم استولی وو، ددې هیئتونوله تلوڅخه یوه میاشت وروسته چې کله د
سومنات پالونکی د خراج ټولولو لپاره سیمې ته راغلل. هغوی د سیمې په
خلکو کې د عام بغاوت نخښې ولیدې.

د ګوالیار راجه ته یې شکایت وکړ، راجه خپل یو وزیر د پوښتنې او پلټنې لپاره راواستاوه، وزیر د وضعې احوال واخست او بیا یې راجه ته راپور ورکړ چې خلکو غلطی خامخا کړې وه، خونیت یې بد نه و، خو بیا یې هم هغوی وګواښل چې که یې د سومنات د خراج په ورکولو کې غفلت وکړ، نو حکومت به دوی ته د سزاور کولو په خاطر د سومنات د پالونکیو مرسته کوي. په دې کال له دوی سره هیڅ نه وو پاتې شوي، ځکه خو یې معاف کول په کار وو، راجه د پالونکیو د خوښی لپاره دخپلې خزانې څخه یو مناسب مبلغ ورکړ، دا د سیمې د مالیې له پیسو څخه لږې نه وې، خو د سومنات د بامبړانو له نظره دا جرئت د بخښلو وړ نه و. چې بیرته ستنیدل خپلو څو ملګریو ته یې مشوره ورکړه چې تاسو همدلته پاتې شئ، زموږ پر خلاف دمتهرا د برهمنانو د پروپاګندو اغیزو په لری کولو کې زیار وباسئ.

ددې پیښو څخه څو ورځې وروسته د سیمې خلکو دا خبر واورید چې د سلطان محمود پوځونو د برن او مهابن له فتحه کولو څخه وروسته متهرا کلابنده کړې ده. بیا یوه ورځ دا خبر هم راغی چې سلطان متهرا ونیوله. ددې خبر په اوریدو تر ټولو زیات ګوپی چند خپه شو. د سومنات هغه پالونکی چې تراوسه په دې سیمه کې وو دهرکلي خلکو ته یې دا ویل چې د متهرا برهمنانو د سومنات دیوتا ناراضه کړې و او اوس به ددې ګناه سزا ګالي.

د سومنات دیوتا هر هغه سړی ته سزا ورکوی چې له ده څخه یې نورو دیوتاګانو ته مخ اړولی وې. اوس به هغه درمسال ټول بربادیږي او هغه بوتان به ټول ماتیږي چې پالونکی یې د سومنات د پالونکی عزت نه کوی او چې د کومو ریاستونو راجه ګانو زموږ له ځمکو څخه د خپلو پوځی ضرورتونو پوره کولو لپاره چنده ټوله کړې ده او یا یې د کوم بل درمسال پالونکیو ته دچندې د خیرات د ټولولو اجازه ورکړې ده، د هغوی ټولو انجام به ډیر خراب وي. اوس ددې هیواد ژغورنه په دې کې ده چې د ټولو ریاستونو واکمن او خلک او دټولو درمسالونو مذهبی مشران، پنډتان او پالونکی د سومنات درناوی ته سبرونه ټیټ کړې.

د داسې خبرو په اوریدو د سیمې هغه خلک چې له ګوپی چند سره همنظره شوې وو بیرته توبه ګار شول. زیاتره د خپل په غوسه شوی دیوتا د خوښی

ترلاسه کولو لپاره خپل خپل ښاروی پلورل او د سومنات پالونکیو ته یې نذرانې ورکوله. او کوم چې لږ زیات سرتمبه وو هغوی د قنوج د راجه له مانې وروسته توبه وکړه، گوپی چند پر خپل دریځ ولاړ وُ، خو اوس له ده سره ملاتړ کوونکی نه وُ، هغو خلکو به چې دده جرئت او زړورتوب ستایه اوس ورسره دخبرو کولو څخه ویریدل، ده دخلکو د پوهولو هڅه کوله چې انسان یو د بل دښمن کیدای شي، خو دخدای د بگوان نماینده (دیوتا) یو د بل دښمن نشی کیدای. دا کله کیدای شی چې د سومنات پالونکی له موږ څخه خپه وی او د سومنات د دیوتا بُت له متهرا، مهابن، قنوج او آس له درمسالونو څخه بدل واخلي.

زموږ د قربانی هدف په هغو ښارونو کې د بگوان د دیوتاگانو د درمسالونو او د هغوی د بوتانو ساتنه او دفاع وه، زه ددې خبرې منلو ته تیار نه یم چې د سومنات دیوتا زموږ څخه د خوشاله کیدو پرځای راڅخه خپه شوی وي. زموږ دماتې سبب زموږ د واکمنو بې همتی او مختلفو درمسالونو د پالونکیو د خپلمنځلی کینی او دښمنی څخه پرته بل څه نه دي.

خو اوس څوك د گوپی چند خبرو اوریدو ته تیار نه وو. دکلی ښځو خپل میړونه له هغه سره له خبرو اترو څخه ایسارول تنکی ځوانان به چې دده پر کنځلو خندیدل ، اوس به یې په هره خبره کې ورلویدل او گواښلو به یې. او بوډاگانو به پوهاوه چې: وروره! نور دې ژبې ته قیضه واچوه. ستا پرخلاف د سومنات تر مذهبی پیشوا پورې شکایت رسیدلی دي، موږ ویریږو چې ستا په سبب پر موږ ټولو عذاب رانشي.

د متهرا د ساتنې لپاره ځینې تللی کسان چې کور او کلی یې پریښی وُ نیول شوی او بندیان وو، د هغوی خپلوانو او دوستانو د هغوی د بربادی پړه په گوپی چند وراچوله ، کوم کسان چې ژوندی راستون شوی وو هغوی هم له گوپی چند څخه لری گرځیدل.

په دې وضعه کې د کلي له هر سړی څخه د گوپی چند کرکه او حقارت له حد څخه اوښتی وُ اوس هغه په ډیره ناکراری د رام نات د راتلو انتظار کاوه و د هغه ټوله مشغولتیا د رام نات تر یادونو پوری محدوده وه.

رام نات د راجه په پوځ کې په لومړي کال د نيزه وهونکې دلې افسر وټاکل شو. راتلونکي کال چې هغه د څو اونيو لپاره کلي ته په رخصت راغی. نو په يوه ښکلي آس سپور و، روپ وتي دده په غياب کې پخوا سومنات ته تللې وه.

د روپ وتي ددايمي بېلتون په خيال رام نات ته خپل چاپيريال غمجن او خپه ښکاريده، دهغه د ژوند د نغمې هغه تار شلېدلی و چې هغه فضا به يې په زړه وړونکو نغمو ډکوله. د دهله شونډو څخه هميشنی موسکا تروړل شوې وه او دده سرګردانه سترګو دا ښودله چې کوم ورك شوی شی لټوي.

کله کله به ګوپی چند ترې پوښتل:

زويه! ته پريشانه ولې يې؟

ده به ټکان وخوړاوځواب به يې ورکړ:هيڅ نشته پلار جانه!ماڅه فکر کاوه!

- د څه په اړه دې فکر کاوه بچيه! د هيڅ نه پلارجانه! رام نات به ووېل:

او بيا به په څه پلمه جګ شو او غلی به بهر ته ووت.

يو ماښام رام نات يوازې د سيند پر غاړه ناست و، دا هماغه ځای و چې ډېر خلې يې له روپ وتی سره ليدلې وو. ده د سندرې هڅه وکړه. خو غږ يې په ستونې کې خپ پاتې شو. ګوپي چند دهغه په لټون پسې هلته ورغی. ترې ويې پوښتل:

دلته څه کوې بچيه!

- هيڅ هم نه پلاره! هسې په قدم وهلو کې دلته راغلم کيناستم. ګوپی چند هم ده ته نژدې کيناست، پلار او زوی تر لږ خنډه چوپ وو، بيا يې پلار ووېل: زويه خلك وايی چې تا سندرې بيخی پريښی دي؟

رام نات ځواب ورکړ: هوکې پلار جانه، ستا خوله سندرو څخه کرکه وه!

ګوپی چند ووېل: زما ستا له سندرو تر هغه وخته کرکه وه چې ته سرتيرې شوی نه وې. اوس خو زه پخپله غواړم ستا سندرې واورم.

پلار جانه! زه اوس سندرې نشم بوللی. اوس زه ښايي هيڅکله هم سندرې ونه بوللی شم. راځه کور ته ځو!

رام نات ډيرې ورځې په کور کې د پاتې کيدو موقع ونه مونده. د ګنګا او جمنا د ميدانونو په لور د محمود غزنوی وړاندې راتلو خبرې چې واوريد.

هغه بیرته ستون شو. دهغه له تلو وروسته ترڅو میاشتو ګوپي چند څه احوال ترې نه درلود، ګوپي چند له رام نات سره دلیدو لپاره د ګوالیار د پلازمینې په لور مخه کړه. خو هلته چې ورغی ورته معلومه شوه چې زوی یې د ګوالیار له پوځ سره په داسې مهم پسې وتلی دی چې د هغې په اړه څوك چاته څه نشي ویلای، هغه د پوځ له یوه لوی منصبدار سره وکتل، هغه تسلي ورکړه ورته ویې ویل: ستا بچی ژوندی دی. خو اوس تاته دا نشو ویلی چې هغه چیرته دی، که تاسو هغه ته څه پیغام ور استوی نو لیك ماته راکړی. ګوپي چند هغه ته یو لیك ورکړ، د لیك مضمون داسې و.

"زما د سترګو توره!

زه ستا په اړه له ډیرې مودې هیڅ احوال نه لرم. اوس ماته په کلي کې اوسیدل ګران شوي دي. دېګوان په خاطر ځو ورځې رخصت راواخله او راشه ما له ځانه سره بوزه یا دې درك راوښیه چې په خپله درشم.

(ستا پلار ګوپي چند)

ګوپي چند خپل کل ته راغی او په ډیره ناکرارۍ یې دخپل زوی د ځواب انتظار کاوه. څو ورځې وروسته دا آوازې تودې شوې چې د سلطان محمود د تیرې حملې په دوران کې د قنوج د لوی راجه د ماتې په سبب د کاونډیو ریاستونو زیات واکمن دهغه مخالف شوي دي. دغه واکمن د راجه ګانو په بلنه په کالنجر کې راټول شوي دي او دقنوج واکمنی ته یې دا پیغام استولی دی چې له مسلمانانو څخه د ویرې له امله د تیښتې نه وروسته نور ستا پر تخت کیناستل. دشهزادګانو لپاره توهین اوسپکاوی دی ځکه خوله تخته که لاس پرسرشي دابه غوره وي اوکه نه نو موږ به دې په زوره له تخته لرې کړو.

بیا دا خبره مشهوره شوه چې د ګوالیار او نورو زیاتو ریاستونو پوځونه د کالنجر د شهزاده په لارښوونه د قنوج پر لوري پرمختګ کوي. نژدې یوه میاشت وروسته د قنوج واکمن دخپل زوی او نورو سردارانو د غدارۍ په سبب د جګړې په ډګر ماته وخوړه او ووژل شو او یرغل کوونکو د قنوج نوی پلازمینه بیرته ونیوه او دهغه زوی ترلوچن پال ۱ یې پر تخت کیناوه.

---

۱- ترلوچن پال د دیهند ماته خوړلی واکمن نه دی چې د اوسه یې د جیپال له لاسه وتلی واکمني د بیا لاسته راوړو په خاطر لاس او پښې وهلې. بلکې دا د قنوج او [illegible] د [illegible] راجه زوی او ولیعهد و.

ګوپي چند اوس پوهېدلی وچې دده زوی د کومو مهمو عملیاتو لپاره تللی و . هغه همدغه وو . ځکه خو یې اوس لا په ناکراری د هغه د راتلو انتظار کاوه.

*****

ورځ په تېرېدو وه . د ګوپي چند يوه کلیوال سیند ته نژدې څاروی پوول چې له لیرې یې یو سپور ولید چې بې دریغه آس ځغلوي، سپور چې ورنژدې شو. کلیوال وپېژاند په منډه ولاړ او د کندی پر سر ودرید او دواړه لاسونه یې اوچت کړل او چیغې یې کړې:

ودرېږه ! ودرېږه!

سپاره په دواړو لاسونو د آس جلب ورکش کړ او د آس درولو هڅه یې وکړه، خو ګړندی آس په دریدو دریدو کې کې څو ګزه وړاندې ولاړ او شپانه د ځان د ژغورلو په خاطر شاته منډه واخسته او لرې شو.

دا رام نات و چې د آس جلب یې راوګرځاوه ، شپانه کلیوال ته یې وکتل. هغه په منډه ورغی د آس جلب یې ونیو ویې ویل:

رام ناته ! د بګوان (خدای) په خاطر وړاندې مه ځه .له همدې ځایه بیرته ستون شه.

رام نات څو شیبې په زړه زړو شپانه ته وکتل. بیا یې لږ همت وکړ ویې ویل: ولې کاکا؟

څه خبره ده!!

شپانه په غریو نیولی غږ ځواب ورکړ: کلي ته د سومنات پالونکی راغلی دی او ...

رام نات ناکراره شو ویې ویل: د بګوان په خاطر زر ووایه!

- هغوی ستا پلار نیولی دي!

- ته څه وایې؟

- زه دروغ نه وایم، د سومنات پالونکی د باج ټولولو لپاره راغلی دي. هغوی ستا د پلار ټوله شتمنی ترې واخسته او لیلام یې کړه، کور ته یې اور واچاوه. ستا پلار بې حوصلې شو . د یوه پالونکی د مرۍ نیولو هڅه یې وکړه، اوس سپاهیانو هغه نیولی او تړلی دی او له ماسپښین راسې یې دبوی

، هغه څو څلې بې سده شوی دی ، او چې کله بیرته په هوښ راشي د سومنات لوی پیشوا او پالونکیو ته کنځلې کوي. د بګوان ( خدای) په خاطر ته هلته مه ورځه له هغوی سره بشپړ پوځ دي.

د رام نات حوصله پای ته رسیدلې وه. ببله دی چې څه ووایی آس ته یې پونده ورکړه ، آس په وروستیو دوو پښو نیغ ودرید شپانه له ویرې قیضه خوشې کړه.

ګوپی چند د یوې چوترې په مخ کې پرمخې پروت وُ. یو سپاهی له یوه کوتك سره د هغه سرته ولاړ وُ. د سومنات دوه پالونکی پر کټونو او نژدې څلوېښت تنه سپاهیان شاوخوا په مځکه ناست وو. د کلی خلك شاوخوا ته دریدلې وو. یو بوت پال له چارپایی څخه جګ شو وړاندې ورغی په لغتو یې ګوپی چند څو ځلې وواهه بیا ورټیټ شو پر نبض یې لاس کېښود ویې ویل: دی مړ شوی دی!

د کلی خلك چې تراوسه پورې چوپ وو پټ پټ یوله بل سره په غوږ کې ګریدل . څو تنه په ویره د ګوپی چند مړی ته نژدې ورغلل . خو د سومنات پالونکی په درانه غږ وویل: وړاندې مه راځي. هماغلته ودرېږی!

خلك وویریدل او شاته ولاړل. خو یوه بوډا بزګر جرئت وکړ ویې ویل: بادار! اوس شپه کیدونکی ده که تاسو اجازه راکړئ چې موږ یې د مړی بندوبست وکړو.

هغه وویل : دا مړی به تر هغو دلته وی چې ددې سیمې ټول خلك یې یو ځل ووینې

بوډا سړی بیله دې چې نور څه ووایی شاته شو او د کلی خلکو یوه یوه له هغه ځایه خپلو کورونو ته مخه وکړه. سپاهیان د خلکو په فصلونو کې څریدونکو آسونو او پیلانو د بندوبست لپاره ورتلل. لږ ځنډ وروسته د سومنات د پالونکیو په شاوخوا کې اته تنه سپاهیان او پنځلس شل کسه کلیوال پاتې شول.

رام نات لویې چوترې ته نژدې اس ودرواه. د کلی خلکو چیغې کړې: رام نات راغی. رام نات راغی.

هغه له آس څخه پلی شو ، یوې او بلې خواته یې وکتل او په منډه د پلار مړی ته ورغی. دهغه آس او جامو د لرې څخه لیاره بُت نمانځونکی او دهغوی سپاهیان وویرول. د کلي یوه ځوان دده آس تر جلب ونیو ، رام نات، پلار جانه پلار جانه! چیغې کړې او دخپل پلار مړی یې په غیږ کې ونیو کیناست یو بُت پال جګ شو وړاندې ورغی د کلي له خلکو څخه یې وپوښتل: دا څوك دی؟!

خو د کلي خلکو د ځواب په ځای زړه نا زړه په اندیښنه یو بل ته کتل، بُت پال وړاندې رام نات ته ورغی او پوښتنه یې وکړه: ته څوك یې؟

رام نات سر اوچت کړ، هغه ته یې وکتل او د ځواب ورکولو پرځای یې خپله شونډه وژووله.

بُت پال بیا په درانه غږ خپله پوښتنه تکرار کړه، رام نات مړی پر ځمکه کیښود ودرید او په زیږدیدلی غږ یې وویل: دا چا وواژه؟

د رام نات په سترګو کې د اور لمبو بُت پال اندیښمن کړ، خو له همت څخه یې کار واخست ویې ویل: اوس به دې د پوښتنې ځواب واوری! ته لومړی دا ووایه چې څوك یې او ددې پست ذاتي سړي سره دې د خواخوږۍ جرئت څنګه وکړ؟ رام نات وویل: پست ته په خپله یې او بیا یې پر خوله هغه په زوره په سوك وواهه.

خپتور بُت پال په شا ولاړ او بیا ستونې ستغ ولوید. د هغه په غورځیدو اته تنه سپاهیان چې هلته وو د ونیسئ، ووژنئ!! چیغې وهلې. وړاندې ورغلل. په دې څنډ کې رام نات خپله توره راایستلې وه. هغو سپاهیانو تراوسه پورې د خپلو متو زور په لاس پورته کوونکو ازمویلی و. دا لومړی ځل و چې دوی دخپلو زنګ وهلیو تورو په ځواب کې یوه ځلیدونکی تیره توره لیدله. رام نات یې چې د شاته تلو پرځای حملې ته تیار ولید، دوی څو ګامه لرې ودریدل او یو بل ته یې حیران کتل.

بل بُت پال چیغې کړې: بې همتو! څه ته ګورئ.

سرتیري په نه زړه وړاندې ورغلل او د رام نات د راایسارولو هڅه یې کوله، خو هغه په لومړي حمله کې یو پر بل پسې دوه سرتیري پر مرګ وسپارل، دریم سرتیري وارخطا شو او شاته وتښتید خو د غورځیدلی بُت پال

سره يې پښه ونښته او ستونې ستغ وغورځيد، د جګيدو هڅه يې وکړه، خو د رام نات توره يې په ککره ولګيده او هغه بيا له ځايه ونه خوځيد.

نور سرتيري يوې او بلې خوا ته وتښتيدل او خپلو هغو ملګرو ته يې چيغې وهلې چې له کښتونو څخه يې خپل ځاروي راښکول، دوهم بت پال وارخطا شو او هلته نژدې يې په يوه ونه د ختلو هڅه کوله.

د کلي خلکو چيغې وهلې: رام ناته ! نور تښته، سپاهيان کښتونو ته د آسونو د راوستلو لپاره تللي دي اوس به هغوی راشي ، زر کوه!

خو رام نات اوس لاندې پراته بت پالونکي ته پام واړاوه ، د هغه د توری څوکه د بُت پالونکي په خيټه وه او هغه لاس په نامه نيولې وو چيغې يې وهلې: ومې بخښه باداره!

زه د سومنات پالونکی يم، باداره ! باداره!

رام نات هغه پر خوله په لغته وواهه او ويې ويل:

بې همته هغه زما پلار و.

د کلي خلکو د درمسال د پالونکي د ژغورنې هڅه وکړه، خو د رام نات توره د هغه تر ټټر بوته ختلې وه او پخپله په منډه ولاړ پر آس سپور شو. لږ څنډ وروسته چې د سومنات د پالونکيو سربښندونکي سرتيري د هغه په لټون پسې ووتل. نو رام نات دوه کيلومتره لرې په تيارو کې پناه اخستې وه. خو له دې وروسته راتلونکي هر سهار رښا دا پيغام ورته راوړ چې مرګ د سيورې په څير په هغه پسې دی . د ديوتاګانو په ځمکه کې د سومنات د پالونکي د قاتل لپاره هيڅ ځای نه و.

# خپل کور

یو ځل د شپې مهال رنبیر او شمبونات د سپوږمۍ په رڼا کې له لرې خپل منزل لیده. ستومانه آسونو سرونه ښکته اچولي وو او ورو ورو یې ګامونه اخستل، د خوږ په شاوخوا کې چونګښو او چرچریو خپلې نه ختمیدونکې نغمې پیل کړې وې. د رنبیر هر ویښته دخپل وطن په وږمو تازه شوې وو، هغه خپل آس پر غاړه وټپاوه ویې ویل:

آشنا! ستا پر ستوماني او لاره پوهیږم. خو نور زموږ منزل لرې نه دي.

له کښتونو څخه ووتل او هغوی یوه ګڼ بڼ ته ورننوتل او د رنبیر پر زړه او ماغزو یوځل بیا د تیرو ښکلو او زړه وړونکو یادونو خاپونه راڅرګند شول. دا هماغه باغ و چې ده به په وړکتوب کې لوبې پکې کولې او په کړس کړس به یې پکې خندل. هغه کړس کړس خنداګانې اوس هم دده په غوږو کې کړنګیدلې.

له باغ څخه چې تیر شو. هغه د خپل کلا ته ورته کور څلور دیوالی لیدله. پر شونډو یې موسکا ځلیدله او په سترګو کې یې اوښکې ځلیدې. د کور د ننه چوپه چوپتیا وه. د پاسنی پوړ د یوې کوټې له دریځې نه چې زیاته برخه یې د انګړ د منځ د یوې ونې په څانګو پټه شوې وه د ډیوی تته رڼا راوتله، شمبونات دریځې ته اشاره وکړه ویې ویل:

هلته وګوره! د شکنتلا په کوټه کې چراغ بلیږي، هغه به ویښه وي، ما ورته ویلی وو چې هغې ستا په غیاب کې یو خوب لیدلې ؤ چې ته د کړکۍ له لارې د هغه کوټې ته ورننوزې، له هغې ورځې وروسته دې د خپلې کوټې ډیوه نه ده مړه کړې.

دوی له دېوال سره جوخت د بهرنۍ دروازې په لوری روان وو. ناڅاپه رنبیر خپل آس ودرواه او ویې ویل: ودریږه شمبو!! اوس مو که په دروازه کې غږ

وکړ، نو، نوکران به چیغې کړي او ټول کلي به راویښ کړي، زه تر ټولو د مخه غواړم شکنتلا او پلار جان ووینم. ته لږ ځنډ دلته ودریږه ګوره چې شکنتلا مې پېژني که نه؟ شمبونات ورته وویل:

که دې ویښتان سپین شوي وای هم شکنتلا به پېژندلې.

رنبیر خپل آس دیوال ته نږدې کړ، بیا په زینې ودرید او پر دیوال ور وختو، یوې او بلې خواته یې وکتل او بیا د لاندې ښکته شو، د پراخه انګړ نه تیر شو او د اوسېدو د کوټو د شا دېوال سره جوخت په کونج کې د جامن یوې ونې لاندې ودرید او پاس یې وکتل. د پاسنی پوړ د کوټې له دریڅې نه اوس هم رڼا راوتله. د رنبیر د زړه درزا زیاتیدله، هغه فکر کاوه چې شکنتلا به لومړی پر هغه د غله ګومان وکړي، بیا به چیغې کړي وروره! او راسره غاړه غړی به شي، او زه به ورته وایم: لیوني! ته خوب وینې.

بیا یې په زړه کې وویل: نه! زه به خپ او غلی ورننوزم او پر سترګو به یې لاسونه ورکیږدم. خو نه، هغه به وویریږي، زه به له کړکۍ نه ور وګورم که هغه ویښه وه. بیا به د ونې تر شا غلی شم او ورو به غږ پرې وکړم، هغه به وارخطا شي او زه به مې بیا خندا را قابو نکړای شم. بیا به موږ دواړه د پلار جان کوټې ته ورشو.

چې رنبیر د پلار په فکر کې شو. یو ځل بیا یې ډول ډول اندیښنې په خیالونو کې ور وګرځیدې. دخپل وطن حدودو ته له ننوتلو څخه پخوا یې په قنوج کې د انقلاب خبر اوریدلې و. او هغه خپل وروستي پړاوونه ډیر په تونده وهلې وو. که څه هم هغه د شمبونات پر خبرو پردې باوری شوې و چې د سلطان محمود پرلاس د قنوج د ماتې سره د هغه پلار یوازې د قنوج د شاهي کورنۍ څخه نه، بلکې د شاوخوا ټولو راجه ګانو څخه مایوسه او متنفر شوی و او هغه به د قنوج د واکمن په مرسته په جګړه کې هیڅ برخه نه وی اخستې، بیا هم ځینې نامعلومې اندیښنې ده په زړه کې را پیدا کیدلې.

د مانۍ له بل کونج څه یو پهره دار راښکاره شو، رنبیر د ونې له تنې سره جوخت ودرید. یوځل د رنبیر په زړه کې دا هیله راپورته شوه چې غږ پرې وکړي، خو هغه لا په همدې کې دوه زړی و چې پهره دار له باندینی دیوال سره جوخت روان و او وړاندې ولاړ. د ......... حالت رنبیر ته دا ښودله چې د کور

اوسیدونکی آرام او داده ویده دي. هغه د جامن په ونه وخوت او د روښانه کرکۍ مخې ته يې ځان ورساوه.

د ونې په څانګه ودرید او د کړکۍ څخه يې د ننه وکتل. کړکۍ ته مخامخ دوه ګامه وړاندې یوه ښځه په سپین تکري کې پر پالنګ ویده وه. د هغې مخ له تیکري څخه راوتلی و، خو زیاته برخه يې په لاسونو پټ و، د هغې ښکلی لاسونه له سر څخه اوچت یو پر بل پراته وو، او په مړوندونو کې يې نري د سرو زرو بنګړي ځلیدل.

رنبیر خپله د زړه دړزا راقابو کړه ورو يې وویل: شکنتلا! خو چې پر پالنګ پرتې ویدې ښځې څه غږ وانه ورید، ورو کوټې ته ورننوت، څو شیبې چوپ ولاړ و، بیا يې د شکنتلا د راویښولو په اراده خپل لاس د بسترې خواته ورنژدې کړ، خو بیا يې څه په خیال کې ور وګرځیدل او لاس يې ودرید پر شونډو يې شوخه موسکا وځلیده له ملاځخه يې د ګانې کځوره را خلاصه کړه او تولګانه يې ترې را وایستله او د ویدې نجلۍ سر ته يې کیښوده. بیا يې یوه کړه واخستله او ورو يې د هغې په یوه مړوند کې واچوله. چې غوښتل يې په بل لاس کې يې بله ور واچوي نجلۍ په لټ واوښته او بیا وارخطا راویښه شوه. غوښتل يې چیغه وکړي. خو له کومې يې غږ و نه وت.

رنبیر هم څو شیبې حیران پاتې شو او هغې ته يې کتل. هغه شکنتلا نه وه او دوی دواړه یو له بل سره ناآشنا وو. سمدستي د رنبیر په زړه کې ور وګرځیدل چې دا به د شکنتلا کومه خورلڼه وی او زموږ کور ته میلمنه راغلې ده. له دې خیال سره يې یو ځل بیا پر شونډو موسکا وغوړیده، هغه نجلۍ ته تسلي ورکړه ویې ویل: ویرېږه مه، زه کوم لوټمار او غل نه یم، ته څوك يې ما هیڅکله نه يې لیدلې، زما د خور په خورلڼو کې خوستا په څیره کومه نجلۍ نه وه. د نجلۍ ویره په اندیښنه او پریشانی بدله شوه او په ویریدلی غږ يې وویل: که ته کوم لوټمار او یا غل نه يې، نو دغه مهال دلته د څه لپاره راغلی يې. له دې ځایه درومه، که نه نو شور به ګډ کړم.

رنبیر وویل: زه په خوښۍ تاته د شور ماشور اجازه درکوم. خو که ته د نور چا پرځای زما خور راوغواړې، نو دا به ډیره ښه وي

د نجلۍ پریشاني په غوسه بدلیده، ویې ویل:

که ته غل نه یې، نو لیونی ضرور یې، که زه په خپله بدنامی نه ویریدای، همدا اوس به مې د کور ټول خلك په شور راپاڅولی وو.

ډیر ښه، شور وکړه، رنبیر په ډاډمنه لهجه ورته وویل: ته دې پر خپل ځان نه ویرېږې؟

- بلکل نه.

- آخر ته څه غواړې؟ ته څوك یې او په دې وخت کې زما په کوټه کې څه کوې...؟

- د مرګ لپاره ته زما د کوټې پرځای کوم بل ځای نشی موندلی؟

- نه، نور ماته د مرګ او ژوند لپاره د کوم بل ځای لټول په کار نه دي.

نجلۍ د پریشانی په حالت کې خپلې شونډې ژوولې، رنبیر تراوسه پورې د چا څیره د غوسې په حال کې دومره په زړه پوری او راښکونکی نه وه لیدلې. ناڅاپه د نجلۍ سترګې پرخپلو مړوندونو ونښتی په هغې کې یې چې ځلیدونکی بنګړی ولیدل غوسه یې په حیرانی بدله شوه او له لږ چوپتیا وروسته یې په هیله منه لهجه وویل: ته یوازې د یوې نجلۍ په بدنامولو سره مرګ قبلوې. آخر ما ستا سره څه بد کړی دي؟

رنبیر چې د نجلۍ په سترګو کې اوښکی ولیدې اغیزه یې پرې وکړه ویې ویل: وبښه، زه په ناپوهی دې کوټې ته راغلم. زه پردې خبر نه وم چې زما دا کار به د یوه میلمه د پریشانی سبب کیږي.

- میلمه! د چا میلمه. دا خو زما خپل کور دی.

- سهی ده دا ستا کور دی، خو ووایه چې شکنتلا چیرته ده؟ زه د بل چا له راویښولو څخه د مخه غواړم هغه ووینم.

- ته د موهن چند د لور په باب خبره کوې؟

- هوکی زه دهغه ورور یم.

ناڅاپه د نجلۍ رنګ زیړ واوښت او په غریو نیولی غږ یې وویل:

ته د مسلمانانو سره بندي وې؟

- هوکې! زه همدا اوس دلته را ورسیدم، اوپه ونه وختم، د کړکۍ له لارې دلته راغلم، ما ګومان کاوه چې شکنتلا به پریشانه کړم، خو د هغې برخه پریشانی بګوان ستا په برخه لیکلی وه، زه اوس ښښنه غواړم او هیله کوم چې

د شکنتلا تر کوټې پورې لاره را وښيي، که نه نو ويرېږم چې ستا په خير کوم بل ميلمه په عذاب نه کړم.

د نجلۍ زړه اوس د ويرې او غوسې پرځای د ښيګڼې او خواخوږۍ له جذبو ډك شو، د هغې په مخکې اوس د يوه ډاکو يا غله او ليونې پرځای يو داسې ځوان ولاړ و چې ځيره يې ديوتاګانو ته ورته وه. دی د رنبير په باب ډېرې خبرې اوريدلې وې، دی ته دا تصور ګران نه و چې دغه ځوان چې پنځه کاله په جيل کې و، له کومې غمجنې پيښې سره مخ کيدونکی دي. دی رنبير ته کتل او په زړه کې يې په وار وار دا جملې تکرارولې:

کاشکې زه دلته نه وای.

رنبير چې ددې په ځيره کې د غم او خفګان کرښې وليدې تړې وي پوښتل: زما پلار جان او شکنتلا څنګه دي؟!

نجلۍ له لږ دوه زړه توبه وروسته ورته وويل:

هغوی دلته نشته او که ته خپل ژوند قيمتی بولې، نو د "بګوان په روی له دې ځايه زر تر زره ځان باسه وتښته.

رنبير په موسکا وويل: زه ډېر ستومانه يم که نه نو ستا حُکم به مې منلی وای.

- زه رښتيا وايم ستا پلار او خور دلته نشته.

-هغوی چيرته دي؟

- د بګوان په خاطر ورو غږيږه. زه د هغوی په باب خبره نه يم. يوازې پردې خبره يم چې که ته د موهن چند زوی وې، نو ددې کور په انګړ کې ستا ژوند په خطر کې دی.

رنبير دروازې خواته ورغی زنځير يې په لاس کې ونيو مخ يې راواړاوه. نجلۍ ته يې وکتل او ويې ويل: دغه ټوکی زما له زغمه اوچتې دي. ته په څه داسې وايې چې له دې کور څخه بهر زه د خپل ژوند په قيمت نه پوهيږم.

- ودريږه! د بګوان په خاطر هلته مه ځه!

نجلۍ دا وويل او بيا يې منډه واخستله او د رنبير لاسونه يې ونيول.

د نجلۍ دې کار د رنبير داد ولړزاوه. خو بيا يې هم د موسکی کندو هڅه وکړه ويې ويل.

زما په گومان تا دخپلې پریشانۍ پوره بدل واخست، نور ټوکې مه کوه.

د نجلۍ سترګې راډکې شوې ویې ویل: پر بګوان مې سوګند، زه له تاسره ټوکې نه کوم، زما خبره ومنه چې په کومه لاره راغلی یې په همغه لاره بېرته درومه، نور دغه کور ستا لپاره د ننډنه له کلا څخه په خطر کم نه دی.

ولاړ شه، بېره کوه! هغې رنبیر د کړکۍ په لوری کشاوه، خو هغه بې حرکته چوپ ولاړ وُ دې ته یې کتل، په دې وخت کې چا له بهر څخه دروازه ډیکه کړه او غږ یې وکړ:

نرملا! نرملا دروازه خلاصه کړه!

نجلۍ رنبیر ته وکتل او بیایې وویل: پلار جانه خلاصوم یې، د نجلۍ ټول حواس په سترګو کې راټول شوې وو.

رنبیر هم دې ته کتل خو نور وضعه دده له زغم څخه بهر وه، د نجلۍ لاس یې وځانده او زنځیر یې خلاص کړ، ناڅاپه په یوه درب سره د دروازې دواړه پلې خلاصې شوې مخامخ یو د مزبوتو متو خاوند ایستلی توره ولاړ وُ دهغه شاته څو تنه نور وسله وال کسان دریدلې وو. نجلۍ چیغې کړې: پلار جانه. پلار جانه! او بیا د هماغه مزبوتو متو خاوند سره غاړه غړۍ شوه او رنبیر په اضطراري حالت کې څو گامه په شا ولاړ او خپله توره یې راوکښله.

- پلار جانه هغه ما ته هیڅ هم نه دي ویلي. دا غل او ډاکو نه دیو د موهن چند زوی دی او دخپلې خور په لټه کې راغلی دی.

په عمر پوخ سړی په یوه جټکه خپلې متې د نجلۍ څخه خلاصې کړې هغه یې د بونډې په لور ټیله کړه او چیغې یې کړې:

ته چوپه شه! زه پوهیږم چې دی څوك دی!

ما د ده ملنډې واوریدې، بیا یې نوکرانو ته وکتل او چیغه یې کړه: بې غیرتو! څه ته گورئ ویې نیسئ!

څلور وسله وال کسان کوټې ته ورننوتل او چیغې یې کړې:

ویې نیسئ! راګیر یې کړئ، د ماڼۍ له لاندینی پوړ څخه هم همدغسې چیغې را اوچتې شوې. نجلۍ په برنډه کې له یوې ښځې سره غاړه غړۍ شوه او چیغې یې وهلې:

مورجانې! پلار جان مې ایسار کړه! هغه بې ګناه دی. هغه مور ته هېڅ بد نه دی رارسولی.

له رنبیر سره ددې معما په اړه د فکر کولو وخت نه و. هغه د کوټې په کونج کې دیوال ته تکیه وهلې وه او زړه نا زړه ولاړ و. مخامخ یې تورې ته کتل.

د مزبوتو متهو خاوند ورو ورو ګامونه واخستل او وړاندې ورغی. د رنبیر پر شاوخوا د وسله والو کسانو کلا بندی نور هم تنګه شوه. رنبیر زړه ور و. خو دلته یې پریکړه نه شوای کولې چې څه وکړي. د مزبوتو متهو خاوند ورته وویل:

ته په مقابله کې ځان نشې ژغورلی!

- د توری لوبه زما لپاره نوې نه ده. خو کاشکې زه پوهیدای چې زما دښمن څوك دی. او بیا یې توره وغورځوله.

د مزبوتو متهو خاوند ډاډمنه ساه واخسته ویې ویل: د بګوان شکر دی چې ته پخپله دلته راغلې که نه نو ټول عمر به مې ستا لټیون کاوه.

لږ ځنډ وروسته رنبیر د لوخو تورو په سیوری کې دماڼۍ د هغه دروازې په لور روان و چې د سمندر په لور خلاصه وه. چې دروازې ته ورسیدل سپاهیانو د رنبیر لاسونه په یوه کلکه رسۍ وتړل.

د مزبوتو متهو خاوند وویل: دی اوس زر تر زره د سیند پورې غاړې ته ورسوئ. تر سهار د مخه باید دده چاره وشي. دکلی خلك ددې پیښې څخه باید خبر نه شي. که د سیند پورې غاړه چا ولید ورته ووایئ چې دا یو غل دی، که له تاسو څخه چا لټی وکړه، نو په دار به مو وځړوم.

نرملا څو ګامه لرې له مور سره ولاړه وه او دغه خبرې یې اوریدې، کله چې سپاهیانو رنبیر بهر ته بوتلو دا په منډه پلار ته ورغله او په سلګو یې ورته وویل: پلار جانه! دا ګناه ده ډیره لویه ګناه . د بګوان په خاطر سپاهیان ودروه.

پلار یې ورته وویل: احمقه کیږه مه نرملا، د یوه مار د بچي سر ټکول او ځپل هیڅ ګناه نه ده، د موهن چند د زوی په ژوند کې مور ډاډه ژوند نشو کولی.

ته د بګوان شکر کوه چې هغه زما په ژوند کې دلته راغی.

- نه نه پلار جانه! دا ګناه مه کوه!

- چوپه شه! زه د خپل ډېر بد دښمن د زوی لپاره ستا اوښکی تویول نشم زغملی ورځه خپلې کوټې ته ولاړه شه!

.....

د اتو تنو پهره دارانو تر څارنې لاندې رنبیر له ماښه ځخه ووت په ګڼو بوټو او ونو کې تېر شو او د سیند غاړې ته ورسیدل. هلته یوه وړوکې کېښتۍ ولاړه وه ، پهره دارانو رنبیر له کېښتۍ سره په ځمکه کښیناوه او په پښو کې یې هم رسۍ ور واچولې، درې تنه پهره داران له رنبیر سره ودریدل او پاتې نورو کسانو له کېښتۍ ځخه اوبه بهر ته غورځولې. دوی ټول رنبیر ته نا آشنا وو ، لږ ځنډ وروسته د رنبیر سره پهره کوونکو له ډلې ځخه یو سپاهی چې دنورو مشر معلومیده له کېښتۍ ځخه د اوبو لرې کولو ډلې ته نژدې ورغی او ویې ویل: بیړه کوئ ناوخته کېږي!

په هغوی کې یوه ځواب ورکړ: د کېښتۍ تل خرابه ده. زما په نظر خو د ټولو سپریدل پکې خطرناك دي. زما په نظر غوره داده چې نیمایی کسان یوځلې او نیمایی نور بل ځل پورې وزي. هسې هم دغه کېښتۍ د پنځو شپږو کسانو ځخه د زیاتو کسانو لپاره نه ده

سپاهی له لږ ځنډ وروسته ځواب ورکړ: سهی ده ته هغه څلور کسان یو ځل پورې غاړې ته ورسوه هغوی هلته پریږده او بیرته راشه. بیا به موږ له بندی سره ولاړ شو. خو ځنډ ونه کړئ.

دوهم سپاهی پاروګان سمبال کړل ویې ویل:

زه اوس راځم.

په کېښتۍ کې پنځه کسان ولاړل، او پاتې درې پهره داران له رنبیر سره نژدې کیناستل ، رنبیر چې د خپلو پهره دارانو شمېر لږ ولید ، بیا یې هم مایوسی لږه نه شوه، هغه د مایوسی په حالت کې په ځمکه پروت و، څلورو خواو ته یې د مرګ له تیارو پرته هیڅ تر سترګو نه شول، هغه فکر کاوه:

" د تقدیر دا ټوکه څومره عجیبه ده، آیا د همدې وخت په انتظار ما پنځه کاله د یوه بندي په بڼه تیر کړل؟ آیا د همدې وخت او حالت دلیدو له پاره ما هر ماښام او سهار د ژوند دُعا کوله؟

زه له مرګ سره د غاړه غړې کېدو لپاره د ننداره تر دګر پورې وتم، خو هغه ددې ماڼۍ په دېوالونو کې ماته غلي ؤ او انتظار یې کاوه چې ماته ددنیا تر هر حصار او ماڼۍ زیاته خوندې او په امن کې ښکارېدله. زه دهغه دښمن له جیل څخه راخوشې شوم او راغلم چې تر قنوج پورې یې د برې بیرغونه رپېږي، او اوس زه د یوه داسې دښمن په لاسو وژل کېږم چې نوم یې هم راته معلوم نه دی. شکنتلا چېرته ده؟ پلار جان چېرته دی؟ آیا زه اوس کوم خوب وینم؟"

ناڅاپه ده خپلو پهره دارانو ته وکتل او ویې ویل: ورونیو! زه له تاسو څخه یوازې یوه پوښتنه کوم. پهره دارانو په چوپتیا ده ته وکتل. رنبیر وویل:

زه پوهېږم چې تاسو زما په وژلو مجبور یی، دخپل سردار حُکم منل ستاسو فرض دی، زه له تاسو څخه د رحم غوښتنه نه کوم. خوله مرګه وړاندې زه یوازې پردې ځان پوهول غواړم چې ستاسو هغه سردار چې زما د وژلو امر یې وکړ څوك دی؟

پهره دارانو تر لږ ځنډه په چوپه خوله یوه او بل ته کتل. بیا په هغوی کې یوه ځواب ورکړ:

موږ تا ته یوازې دومره وایو چې زموږ د سردار نوم جې کرشن دی او دهغه ماڼۍ ته د شپې مهال د غله په څېر ستا د ورننوتلو نه وروسته ته له دې پرته د بل څه سلوك حقدار نه وې.

د جې کرشن له نامه اورېدو سره د رنبیر له سترګو څخه تولې پردې لرې شوې، نور ده ته هیڅ خبره معما نه وه. څو شیبې چوپ شو او بیا یې په غریو نیولی آواز وویل: زه د سردار موهن چند زوی یم. او له تاسو څخه د خپل پلار او خور د احوال پوښتنه کوم.

یوه پهره دار ځواب ورکړ: هغوی مړه شوي دي.

د رنبیر له خولې تر ډېره وخته څه خبره و نه وتله. نور ژوند او مرګ دواړه ده ته بې حقیقته شوي وو. دوهم سپاهي وویل: ستا د پلار په باب خو په ډاډ سره وایو چې هغه په دې دنیا کې نشته. خو د خور په باب دې بګوان ښه پوهېږي. د هغې په باب ویل کېږي چې سیند ته یې ځان وغورځاوه. خو هیچا یې مړی نه دی لیدلی

رنبیر په ریږدیدلی غږ پوښتنه وکړه:
زما پلار جی کرشن وواژه؟

- هوکي! سپاهی ځواب ورکړ، خو د داسې خبرو له یادولو څخه اوس څه ګټه؟ غوره داده چې ته یګوان یاد کړې.

د رنبیر خپه او مایوسې سترګې په چوپه فضا کې سرګردانه وې، دهغه ضمیر د هغو دیوتاګانو په بې وسۍ ملنډې وهلې چې د هغوی د سپیځلتیا په خاطر دی د خپل سر دقربانولو په اراده پنځه کاله وړاندې له خپل کوره وتلی و. ناڅاپه دده په زړه کې له جی کرشن څخه د بدل اخستلو لپاره د ژوندی پاتې کیدو هیله راویښه شوه، هغه وخت دده زخم خوړلی ضمیر په چیغو شو. رنبیره! په دې دنیا یوازې نه یې، ددې هیواد په ملیونونو انسانان ستا څخه زیات مظلوم دی او جی کرشن هم یوازې نه دی، ددې هیواد دهر اوسیدونکی بل د برلاسی نه وروسته په جی کرشن بدلیږي. ددې سمندر هر لوی کب واړه کبان ژوندی تیروي.

دغه کلتور یوازې د تیټ ذاتو دښمن نه دی. بلکې د هرهغه انسان دښمن دی چې د یوه ځواك په وړاندې سر ټیټوي. ددې کلتور دیوتا دهر هغه ظالم او جابر انسان ملاتړکوونکی دی چې د نورو انسانانو پر ورمیږونو د سپریدو همت کوي.

د دیوتاګانو پالونکی چې هر کال ستا له پلار څخه د خراج وړو لپاره راتلل اوس به جی کرشن ته راځی او خراج به ترې وړي. ستا جګړه او په جیل کې لویدل دواړه بې هدفه وو. او اوس ستا مرګ هم بې هدفه دی.

ستا وینه پر دی خاوره تویېدونکی ده چې د بې شمیره مظلومانو او بې ګناهو وینې یې زبیښلی دي. رنبیر په همدې خیالونو کې ډوب و. چې ناڅاپه یې زیات او کم دیرش ګامه وړاندې په بوټیو او ونو کې خوځیدونکی شی تر سترګو شول، خو شیبې یې چې په ځیر ځیر ولیدل دا یې احساس کړه چې یو انسان ښوییږی .له دې سره جوخت د مایوسی په تورو تیارو کې د امید یوه ننه وړانګه تر نظره ورغله. ښوییدونکی له خو ګامه ښوییدو وروسته ودرید او سر یې اوچت کړ. شانه یې وکتل او بیا یې په لاس اشاره وکړه او بیا چوپ او غلی ځای پر ځای پروت پاتې شو. [illegible] پهره دارانو د کیښتی به انتظار

سېند خوانه کتل. نا آشنا له لرې خند وروسته دوهم ځلي په ځمکه ښويېدل پيل کړل او ورو ورو وړاندې راتلو . له دې سره جوخت بيا رنبير دهغه تر شا اته - لس تنه نور هم وليدل چې په ښويېدلو ورنژدې کيدل. دهغه وينه چې څه شيبه وړاندې يخه شوې وه اوس ډيره ګړندۍ په رګونو کې ګرځيدله. ژوند غيږه ورته شلولې وه. له ده سره د غاړه غړۍ کيدو لپاره وړاندې ور روان وُ.

ناڅاپه د پهره دارانو مشر جګ شو او په ځير يې پورې غاړې ته وکتل ويې ويل: بدبخته تراوسه راستانه نشول. سهار کيدونکی دی او سردار به په ناکرارۍ زموږ د ورستنيدو انتظار کوي. موږ که بندي لومړۍ بيولی وای دا به غوره وه.

دوهم پهره دار وويل: زه ستاله غوسې ويريدم. که نه هغه وخت مې غوښتل چې ووايم چې بندي به دلته ووژنو او مړی به يې په لومړۍ پيره کې پورې غاړې ته واستوو. مشر په کړس کړس وخندل ويې ويل: واه واه څومره هوښياره خبره دې وکړه. که دهغه دلته وژل هدف وای. نو بيا ددومره خلکو پورې غاړې ته پورې وتل د څه ضرورت لپاره وو؟ سردار امر کړی چې بندي پورې غاړې ته بوزئ او ويې وژنئ؛ ته نه پوهيږې سردار ډير وړاندې فکر کوي

د پهره دارانو مشر دا وويل او بيا يې په ناکرارۍ په قدم وهل پيل کړل. په رېکونو ښويېدونکی خلك اوس ډير رانژدې شوې وو. د پهره دارانو خبرې پای ته رسيدلی وې او اوس د هغوی چوپتيا د رنبير لپاره د انديښنې وړ وه. هغه پردې باوري شوې وُ چې په بوټو کې غلی راغلی کسان تقدير دده مرستې ته رااستولی دي. خو ده انديښنه درلوده چې که پهره داران د هغوی په راتګ خبر شي، نو تر هر څه دمخه به دده د وژلو هڅه وکړي، ځکه خو ده خپلو مرستندويو ته د فرصت برابرولو په خاطر د پهره دارانو په خبرو بوختيدل لازم بلل. رنبير د هغوی پام ځانته ورواړاوه او ورته ويې ويل: تاسو پوهيږئ چې د مسلمانانو پوځ په نژدې وخت کې يو ځل بيا پردې هيواد حمله کوي. او اوس به دوی د بيرته ستنيدو پرځای دا هيواد نيسي او حکومت پرې کوي. پهره دارانو د خواب پرځای په انديښنه د هغه خولې ته کتل.

رنبیر بیا وویل: کله چې هغوی دې سیمې ته راشي، نو جی کرشن غونډې خلك چې څومره ظالمان دي هومره به بې همته ثابت شي.
د پهره دارانو مشر وویل: ته پوهیږې چې مرګ څو هسې هم راغلی دی. له دې زیات ته نور څه کولی شې، خو که تا زموږ د سردار په باب څه ګستاخی وکړه، زه به همدلته ژبه درنه غوڅه کړم.
رنبیر وویل: که ستا سردار احمق نه وای، نو داسې فکر یې ولې کاوه چې زه یوازې ماڼۍ ته ننوتلی یم. زما پنځوس کسان د محل څخه بهر د لویې دروازې سره ولاړ وو. زما باور دی چې هغوی به تراوسه پورې ماڼۍ نیولې وی او جی کرشن به یې غرغره کړی وي، او تاسو له خپل سردار څخه زیات کم عقل یاست. همدا اوس ستاسو شاته او کیڼې خواته زما کسان دریدلی دي. سترګې وغړوئ او ویې ګورئ!
پهره دارانو په حیرانۍ شاوخوا لس تنه وسله وال کسان ولیدل. د هغوی مخونه پټ و. رنبیر ددوی له لیدو پرته پردې باور و چې هغوی دده کلیوال دی او یو پکې شمبونات دی. رنبیر حمله راوړونکو ته مخ واړاوه او ویې ویل: دوی ته څه مه وایئ. بیچارګان نوکران دي.
د رنبیر تدبیر کامیاب و. حمله کوونکو د پهره دارانو له وارخطایی څخه ګټه واخسته او کلك یې را ایسار کړل. هغوی د شور ماشور او یا مقاومت پر ځای وسلې کیښودې. یو تن راوړاندې شو د رنبیر دلاس او پښو پړی یې وشلول. رنبیر جګ شو د یوه تن له لاسه یې توره واخسته او وارخطا پهره دارانو ته یې وویل: که تاسو د خپل سرخیر غواړئ نو چوپ له موږ سره راځئ.
د پهره دارانو مشر لاسونه په سلام پورته کړل او ویې ویل: بادار! په موږ رحم وکړه. رنبیر خپلو مرستندویانو ته وویل: دوی د بوټو منځ ته یوسئ او لاسونه او پښې یې وتړئ. له دوی سره خبرو اترو ته ضرورت نشته. هو که کوم یوه شور کاوه ورمیږی ورغوڅ کړئ.
دې کسانو پهره داران ونیول او د بوټو شاته یې بوړل. د هغوی په پګړیو او دسمالونو یې کلك وتړل او په بوټو کې یې پټ کړل. رنبیر دوو کسانو ته لارښوونه وکړه چې ایستلې توره دهغوی پر سر ودریږی او بیا دې د نورو

مرستندویو سره بیرته د سیند څنډې په لور راوګرځید، چې له بندیانو څخه لږ رالرې شول. رنبیر خپلو مرسته کوونکو ته وکتل او ویې ویل:

زه ویریدم چې هغوی له تاسو څخه کوم یو ونه پیژني څکه ما ددوی د وراندې له تاسو سره خبرې مناسب ونه بللې. خو زه ستاسو د مخونو له لیدو پرته تهول پیژنم، تر دې وروسته رنبیر د خپلو کلیوالو نوم اخستلو او یو پر بل پسې به ورسره غیږ په غیږ شو. یوازې څلور تنه داسې وو چې دهغوی پرځای رنبیر د بل چا نوم اخستې و.

د تهولو په منځ کې هغه د شمبونات نوم واخست خو هغه ورسره د غاړه غړې کیدو پرځای غبرګ لاسونه اوچت ونیول او ویې ویل:

باداره! اوس د خبرو وخت نه دی، موږ باید د لمر ختو نه وړاندې په میلونو میلونو لرې ولاړ شو. ما آسونه له دې ځایه لږ لرې پریښي دي، راځئ!

رنبیر وویل: تر اوسه لا لږ کار پاتې دی تاسو تهول دلته اوسئ، زما سره یوازې دری کسان راشي.

شلمبوناته! ته هغو بندیانو ته ورشه داسې خبرې وکړه چې هغوی ته دا ثابته شي چې دغه کسان ددې کلي نه دي. بلکې له نندنه څخه له ماسره راغلي دي او کوم کسان له هغوی سره ولاړ دی هغوی ځانګړې وپوهوه چې ددوی د وراندې چوپ اوسي او له تاسو څخه یو څوک ولاړ شي هغه آسونه دلته راولي.

• • • • •

لږ څند وروسته رنبیر او درې نور ملګرې یې د سیند پر څنډه ناست وو او دوی ته نږدې کیدونکې کیښتۍ ته یې کتل. کښتۍ چې نږدې ورغله، نو د رنبیر ملګریو دده په اشاره مخونه بل لوری ته واړول، رنبیر جګ شو وړاندې ورغی او تر ګونډو پورې په اوبو کې کیناست، او چې کیښتۍ نوره هم نږدې شوه هغه مخ ته په لپه اوبه شیندلې، په کیښتۍ کې یوازې یو تن سپور و. کله چې کیښتۍ څلور - پنځه قدمه ورنږدې شوه. نو رنبیر یې په مخ کې ودریده. د کیښتۍ چلوونکي رنبیر وپیژاند او د خطر احساس یې وکړ غوښتل یې د کیښتۍ مخ واړوي. خو د سترګو په رپ کې رنبیر ورو ټوپ او دواړه لاسونه یې د پریشانه ماڼو پر ...

د رنبیر ملګری ورغلل او دهغه دواړه لاس او پښې یې د کیښتنې په پړی وتړل. رنبیر یې پګړی په خوله کې ورننه ویستله او بیا یې پرمخې څملاوه. وروسته بیا له کیښتنې نه را کوز شو او کیښتنې یې ډیرو اوبو ته ورټیل وهله.

د رنبیر نورو ملګریو چې لږ لری غلی وو اودغه ننداره یې لیدله. په منډه خانونه ور ورسول رنبیر تری وپوښتل: اوس به په ماڼۍ کې څومره پهره داران وي؟

یو عمر خوړلی سړی چې د رنبیر د پلار پخوانی نوکر و ځواب ورکړ: په ماڼۍ کې تر پنځلس شل تنو زیات نه وي. خو په کلی کې د جی کرشن تقریباً یو نیم سل تنه سپاهیان اوسي. جی کرشن په ماڼۍ د قبضې نه وروسته د کلی زیاتره خلك وشړل او کورونه یې خپلو سپاهیانو ته ورکړل. موږ یوازې ستا د ژغورنې په خاطر ددغه خطر جرئت وکړ. د بګوان په خاطر تاسو پر محل د حملې نیت پریږدئ او د ځان د ژغورنې فکر وکړئ. چې سهار شي جی کرشن به ددې سیمې لوېشت په لوېشت خاوره ولټوي.

رنبیر وویل: زه ستاسو ژوند په خطر کې نشم غورځولی خو زه وعده درسره کوم چې ډیر ژر به بیا راشم. اوس زه یوازې د خپل پلار او شکنتلا د احوال پوښتنه درڅخه کوم کلیوالو په خپګان یو بل ته کتل. رنبیر وویل:

ستاسو د پریشانۍ ضرورت نشته. د جی کرشن کسانو زما د پلار جان په اړه راته وویل چې هغه وژل شوی دی. خو زه د شکنتلا په اړه معلومات غواړم.

عمر خوړلی سړی ځواب ورکړ: ماښام نژدې و چې کله د جی کرشن کسانو په محل حمله وکړه څو کسان پر بام ولاړ وو او د بهرنی دیوال څخه په تیریدونکو کسانو یې غشي اورول. پاتې کسانو د ماڼۍ د دوو دروازو ساتنه کوله، شکنتلا توره په لاس کې د ماڼۍ د ننه له یوې ګوښې څخه بلې ته تله او سپاهیان یې جګړې ته هڅول، تر لمر لویدو پورې د ګوتو په شمار ساتونکو هغوی ایسار کړي وو، موږ هیله درلوده چې د کلي خلك به مرستې ته راشي، خو د جی کرشن د پوځ بوې برخې پر کلي هم حمله کړې وه او د کلي خلك چې ستا د پلار له وژل کیدو سره یې همت بایللی و. له معمولي مقابلې وروسته وسلې وغورځولې.

له لمر لویدو سره سم له څلورو خواو دښمن پر کلا حمله وروړه او په همغه لومړنی حمله کې یو شمیر کسان تر دیوال واوښتل او ماڼۍ ته ننوتل.
هغوی زموږ سپاهیان یوې خواته په شا کړل او لویه دروازه یې خلاصه کړه، یو شمیر سپاهیانو وسلې کیښودې ، خو نورو تر ډیره وخته لا مقاومت کاوه، د تیارې په زیاتیدو دخلکو په چیغو او کوکو کې کله کله د شکنتلا غږ هم اوریدل کیده، هغه کسان هم چې له بامه یې غشې ویشتل له موږ سره یو ځای شول، موږ په یوه زوروره حمله د دښمن پښې ولړزولې، خو شمیر مو ورو ورو کمیده، دښمن ډیر زر مو، مات کړو، زه چې تېښتې شوم ختیځ لوری دروازې ته مې منډه واخستله، هلته لا تردې وخته زموږ څو کسانو پښې خرلی وې او د دښمن ډلې چې ښایی په تیاره کې به یې له یرغل څخه ویره درلوده. له لری دې ته چیغې وهلې. زه په تیاره کې د دښمن له نظره غلی له خپلو ملګریو سره یوځای شوم. لږ ځنډ وروسته شکنتلا هم له دوو تنو سره د آم د ونو په منځ کې غلې هلته راغله. ما په تیاره کې د هغې غږ وپیژاند او لاس مې یې ونیو ومې پوهوله چې نوره باید بهر ته ووزې موږ لوبه بایللې ده . له دغه کونج څخه پرته نوره ماڼۍ دښمن نیولې وه . په دې کې د دښمن یوه تن په لوړ غږ وویل:
اوس ستاسو اتو - لسو تنو جګړه بې ګټې ده که ژوند غواړئ وسلې وغورځوئ. خو موږ د وسلو غورځولو په ځای دروازه خلاصه کړه او بهر ته ووتو.
له دروازې څخه بهر د دښمن څو تنه موږ ته په کمین کې ناست وو . هغوی پر موږ غشې واورول، څو ملګری مو ځای په ځای ولویدل. خو تر هغو وروسته دښمن په موږ پسې راتلل ضروری ونه بلل. زما باور دی چې شکنتلا له ما سره بهر ته راووتله ، خو له هغې وروسته ماته معلومه نه شوه چې هغه چیرته ولاړه.
لچهمن څوك ولیدل چې سیند ته یې ځان وغورځاوه. خو هغه په پوره باور داسې ویلی چې هغه شکنتلا وه. ته پوهیږی چې د هغې ښه لامبو زده وه. زما باور دی چې هغه به د سیند څخه پوری وتلی وي. زه د خپلو زخمونو په سبب تر بلې ورځې پورې د سیند په غاړه په بوټو کې غلی وم. له هغې وروسته د جی

کرشن کسانو زه ونیولم او هغه ته یې وروستم، هغه غوښتل ما ووژني. خو لور او میرمنې یې زما په بوډا توب زړه وسوځاوه د هغوی په سپارښتنه یې وبخښلم.

رنبیر پوښتنه وکړه: لچهمن چیرته دی؟

عمر خوړلی سړي ځواب ورکړ: هغه کلي پریښی او چیرته تللی دی.

رنبیر بیا وپوښتل: پلار جان مې په ماڼۍ له یرغل څخه د مخه وژل شوی و؟

: هوکې ، هغه یې له سیند څخه پورې غاړې د سردار انوپ چند په کلي کې وژلی و.

سردار انوپ چند هغه ته پیغام را استولی و چې د "اس" مذهبی پیشوا او دسیمې سرداران ورته راغلي دي. هغوی له تاسو سره ګوري. دده روغتیا هم ښه نه وه. خو بیا یې هم سهار وختی دوه تنه نوکران ورسره کړل او هلته ورغی. په هغو نوکرانو کې یو زما وراره دیال و. د انوپ چند په باغ کې د آس د مذهبی مشر او د سیمې د نورو سردارنو څخه پرته د بهر د څو کسانو په ډله کې جی کرشن هم و.

مذهبی پیشوا او د سیمې سردارانو ستا پلار جان د لوی راجه پر خلاف د شهزاده په دسیسه کې د شریکیدو لپاره وروباله. خو هغه انکار ترې وکړ او ځواب یې ورکړ: د مسلمانانو پر خلاف چې زموږ راجه څومره بې همتی کړې ده پر هغې زه خپه یم. خو د پلار پر خلاف د زوی په دسیسه کې زه ځان نه ورشریکوم

زه دا هم نشم زغملی چې د کالنجر او ګوالیار پوځونه دې زموږ پر وطن راوخیژي.

شهزاده که د خپل پلار پر تخت پر کیناستلو بریالی هم شی دا به دده بری نه . بلکې د کالنجر د راجه بری وي. شهزاده به د هغه د لاس آله وي. تاسو خپل راجه ته د بې همتی پیغور ورکولی شی. خو زه دا پوښتنه کوم چې کله مسلمانانو یرغل وکړ، نو د کالنجر او ګوالیار پوځونه چیرته پټ وو؟ که په هغوی کې زیات غیرت وای. نو په کور کې د کیناستلو او ننداري پر ځای زموږ د راجه مرستې ته ولې رانه غلل؟

ستا پلار دا هم وویل: اوس جي کرشن غوندي خلك هم ستاسو سره دي.
دی چي ما ولید. داسي معلومیږی چي د وطن د عزت او آزادی سودا شوی ده.
لومړی هغه د مهابن د راجه په لمسون په هیواد کي د بغاوت او اړو دوړ
هڅي کولي او اوس دي موږ د کالنجر او گوالیار د راجه گانو غلامان کوي.
جی کرشن چي دا واوریدل چوپ پاتي نه شو. هغه ستا پلار ته د بي همتی
پیغور ورکړ. ستا پلار په غوسه شو او توره یي وکښله، جی کرشن له پخوا
څخه تیار و؛ ستا پلار له لړ مقابلي وروسته ټپی شو او وغورځید او جی کرشن
هغه ته د بیا جګیدو فرصت ورنکړ. د انوپ چند په اشاره دهغه په نوکرانو د
هغوی سپاهیانو حمله وکړه، کالو ووژل شو. خو جی دیال پر آس سپور شو او
راوتښتید. له دي پیښي څخه اتلس ورځي وروسته موږ د لوی راجه د وژل
کیدو او دشهزاده پر تخت کیناستلو خبر واورید. او بیا لس ورځي هم نه وي
تیري شوی چي جی کرشن د نوی راجه څخه د خپل پخوانی جایداد د اخستلو
اجازه واخسته او زموږ پر کلی یي حمله وکړه.

رنبیر وپوښتل. ستا باور دی چي د جی کرشن کسان د شکنتلا په نیولو نه
دی بریالی شوي؟

بوډا سړی ځواب ورکړ: هوکي! جی کرشن چي د هغي له موندلو څخه
مایوس شو د هغي په موندلو یي انعام اعلان کړ. خو هیچا ته د هغي درك
معلوم نشو. بوډا کلیوال وویل: بادراه! اوس سهار ته لږ وخت پاتي دی. تاسو
بیړه وکړي.

رنبیر وویل: زه غواړم بندیان لږ لری له ځانه سره بوزم، هغوی باید په
داسي ځای کي پرینبودل شي چي دلته یي تر ډیره وخته څوك ونه موندلای
شي. په دي ډول به موږ ډیر فرصت ولرو، اوس له ما سره ستا غم دی، زه به د
بندیانو د وړاندي تاسو ته داسي هدایات درکوم چي هغوی ته داسي ښکاره
شي چي تاسو له ماسره راغلی وی او له ما سره به ځي، خو تاسو ته لازمه ده
چي له مانه رخصت شئ. نیغ خپلو کورونو ته ستانه شئ.
اوس له ماسره راځئ او آسونه هم هلته راولئ.

بیا د بندیانو ځای ته راغلل. رنبیر د خپل آس پړی خلاص کړ یو سر یې پر زین وتاړه او په دوهم یې دوه بندیان په لاسونو وتړل. دریم بندی یې د شمبونات د آس پر زین وتاړه
له هغې وروسته یې کلیوالو ته مخ واړاوه وېې ویل:
اوس تاسو ورځئ، پر خپلو آسونو سپاره شئ او له نور پوځ سره یو ځای شئ، دغه بندیان به یوه خوندی ځای ته رسوم او بیا به زه هم درسره یو ځای شم، او ګوری تر سرحد تیریدو پورې تاسو باید همداسې د کلیوالو په جامو کې وئ.
اوس ورځئ!
کلیوال په بوټو کې ورك شول. رنبیر او شمبونات پر آسونو سپاره شول، درې بندیانو له دوی سره سمې منډې وهلې، دهغوی مخه د سیند د ښنډې شمالی لوری ته وه.
پر ختیځ افق د سهار سترګه راختلې وه. دی خلکو دوه میله لاره وهلې وه کینې لوری ته په یوه ګڼ ځنګل کې له ونو سره رنبیر آس ودراوه او ترې پلی شو. بیا یې درې واړه بندیان یو یو له یو بل څخه لرې لرې وتړل.
بیا چې پر آس سپور شو هدف او منزل ورته معلوم نه و. هغه دومره پوهیده چې دسهار په رڼاکې دغه ځنګل تر بل هرځای ده ته زیات خوندی دی.
شمبونات وپوښتل: اوس موږ چیرته ځو؟
رنبیر د هغه د پوښتنې دخواب په ځای وویل:
تا د پلار او شکنتلا په باب خبرې واوریدې؟
: هوکې! ما هر څه واوریدل.
رنبیر وویل: اوس له شکنتلا پرته زما په ژوند کې بل هیڅ هدف نشته. زه به هغه په ځنګلونو. دښتو او غرونو کې لټوم، زه به یې په ښېرو. ماڼیو او درمسالونو کې ګورم، زه به تل د شکنتلا سلګۍ اورم، او هیڅکله به آرام نشم.
شمبونات وویل:
تاسو به زما یوه خبره ومنئ؟
- څه خبره؟

ګوره که شکنتلا شاوخوا چيرته وای، نو د سيمې خلکو به تر ننه پورې پيدا کړې وای. هغه خامخا لرې تللې ده. ته يې په ګاونډيو رياستونو کې چيرته ولټوه. له ټولو راجه ګانو او لويو لويو شهزادګانو او سردارانو څخه يې پوښتنه وکړئ. ستاسو پلار څوك نه پيژني؟

بيا تاسو پنځه کلونه د مسلمانانو په جيل کې تير کړل د هيواد د هر راجه او سردار په زړه کې به ستا عزت او درناوی وي، هغوی خامخا ستاسو مرسته کوي. امکان لري شکنتلا په دوی کې د کوم يوه په پناه کې وي؛ خو په قنوج او باری کې تاسو آرام نشی ګرځيدای د جی کرشن کسان به تل درپسې وي. زه به د يوه ملنګ "سادو" په بڼه هغه پخپل هيواد کې په بدله جامه کې ولټوم. پر ما څوك شك نه کوی .له دې ځنګل څخه مخکې يو کلی دی. هلته زما د ماما زوی اوسيږي. که مې د شکنتلا څه درك معلوم کړای شو. زه به هغه ته ځان راورسوم.

رنبير په مړاوی لهجه وويل: شمبوناته نور زما ماغزه کار نه کوي.

له ځنګل نه چې تير شول رنبير او شمبونات مخامخ يو وړوکی کلی ليده.
شمبونات وويل: هغه زما د ماما د زامنو کلی دی.

رنبير خپل آس ودراوه او وبې ويل: شمبوناته ته دې خپل آس هلته د بيولو پر ځای په دی ځنګل کې پريږده تاته دا غوره ده چې څو ورځې دخلکو له نظره غلی و اوسئ. زما باور دی چې جی کرشن به زموږ په لټه پسې دغه سيمې ټولې وګوري.

شمبونات وويل: تاسو ډاډه اوسئ ما په بدله جامه کې د خلکو دوکه کول زده کړی دي. زه يوازې ستا په اړه پريشانه يم.

رنبير وويل: زه نيغ سردار پورن چند ته ورځم. هغه زما د پلار جان پخوانی اشنا دی . که هغه نوره مرسته راسره ونکړه. نولږ تر لږه خو به د يوه تازه دمه اس له راکولو څخه انکار ونکړي. له هغې وروسته به زه ګواليار ته ولاړ شم. هلته د يوه سردار زوی د ننده نه په کلا کې له ماسره په جيل کې يوځای و. زما

امید دی چې د هغه په واسطه به د ګوالیار راجه پردې قانع کړم چې مرسته راسره وکړي

شمبونات وویل: نه وخت مه ضایع کوه. د پورن چند کلی له دې ځایه ډیر لری دی. او ستا آس خواب درکړی دی.

رنبیر او شمبونات له دې ځایه سره بیل شول او هر یو د خپل خپل منزل په لور روان او له خطر څخه لرې شول.

* * * * *

# لټون

جی کرشن د ماڼۍ په پراخه انګړ کې ولاړ و؛ د هغه په لاس کې د ولی یوه لښته وه. څو تنه نوکران یې په مخکې لاس په نامه ولاړ وو، جی کرشن له غوسې څخه په ډک نظر د هغوی څخه یوه ته وکتل او ویې ویل: تا هغوی په کلی کې هم ولټول؟

: هو باداره! د کلي یوه سړي هم هغوی نه دي لیدلي.

: که کیښتۍ هم په دې غاړه نشته ، نو معنی یې داده چې هغه خره تر اوسه پورې په همغه بله غاړه بې غمه ناست دي.

خو باداره! ماته په پوری غاړه هم کومه کیښتۍ نه ښکاري.

جی کرشن په چیغه وویل: نو کیښتۍ څه شوه؟

نوکر ځواب ورکړ: باداره! زما په ګومان چې هغوی بلې غاړې ته رسیدلي، ددې پر ځای چې کیښتۍ په څه شي پورې وتړي خلاصه یې پریښې ده او هغه اوبو ورسره وړې ده. ما له لاندې غاړې څخه د کلیوالو په کښتۍ کې یو سړی استولی دی هغه به اوس معلومات راوړي.

- تا خو به کلیوالو ته دا نه وي ویلي چې زما کسانو یو کس د وژلو لپاره پورې غاړې ته بیولی دی؟

- نه باداره!

- ربښتیا وایه!

- ربښتیا وایم باداره!

- ته پخپله پورې غاړې ته ولې نه ولاړې؟

- باداره تا امر کړی و چې همدغه غاړه وګوره او ژر بیرته راستون شه.

- کیښتۍ خو به ډوبه شوې نه وي؟

- باداره! ما همدا ویل، کیښتۍ خرابه وه. داتو-نهو کسانو سپریدل پکې له خطره خالي نه وو.

- هغه يې ولې ترميم کړې نه وه. ما پيارى لال ته ويلې وو چې کيښتى سمدستي جوړه کړي.

-باداره! هغه بړهى ته زما په مخکې وويل، خو تر اوسه پورې هغه هيڅ نه دى کړي.

- بړهى راوغواړه، ژر کوه!

نوکر په منډه بهر ته ووت او جى کرشن د انديښنې په حالت کې په قدم وهلو پيل وکړ، لږ ځنډ وروسته څلور نور نوکران ماڼى ته ور ننوتل، جى کرشن ته نژدې ودريدل، يوه نوکر وويل: باداره هغوى راغلل!

جى کرشن لښته په لاس کې څرخوله او نژدې ورتلو بيا يې په درانه غږ زيانه کړه: ته ولې دومره ناوخته شوې؟

يوه نوکر وويل: باداره موږ د سيند پورې غاړې ته په کيښتى....

جى کرشن يې خبره پوره کولو ته پرې نښوده او چيغه يې کړه:

بد معاشه! زه هم په دې پوهيږم چې تاسو په هغه کيښتى کې تللي وى. خو تاسو دومره ځنډ ولې وکړ او نور ملګرى دې څه شول؟

- نه پوهيږو باداره! موږ چې پورې وتلو. کيښتى مو پسې راواستوله.

-چيرته!

-دى غاړې ته باداره!

-دې غاړې ته، هغې غاړې نه دا څه جك وهى!

سپاهى وارخطا شو ويې ويل: باداره! موږ دوى ته کيښتى راواستوله او انتظار شوو، خو بګوان پوهيږى چې هغوى ولې را نه غلل او کيښتى چيرته ورکه شوه.

دا ځل جى کرشن د چيغې په ځاى شونډې وژوولې او وړاندې ورغى سپاهى يې دوې درې لښتې وواهه، بيا يې د هغه ملګريو ته وکتل او ويې ويل:

تاسو ماته په ړدو ړدو ولې ګورئ! ولې نه وايئ د چا انتظار مو کاوه او څوك رانه غلل؟

نورو په ويريدلى غږ وويل. باداره! چې د سيند غاړې ته ورسيدو پيارى لال فکر وکړ چې دتهولو خلکو په بوه پسې کې تلل ښه نه دي. ځکه خو هغه له بګت

رام سره څلور تنه لومړي واستولو موږ چې پوري غاړې ته ورسيدو بګت رام مو بيرته له کيښتي سره راواستولو ترڅو پاتې کسان راولي. خو هغوی زانه غلل، هغوی کيښتي هم بيرته راونه ليږله او موږ د سيند په پوري غاړې د هغوی د راتګ انتظار کاوه.
ډير ځنډ وروسته ما په دې غاړه د سيند غاړې ته نژدې څه شی وليدل چې په اوبو کې ښکته درومي، ما ملګريو ته وويل لکه چې زموږ کښتي اوبو يووړه، خو هغوی وويل چې هغه کيښتي نه وه، بل کوم شی و.
جی کرشن وپوښتل: بندی مو وژلی دی که نه؟
:باداره! بندی د پياری لال، جی چند او سيتارام سره په دې غاړه و.
: زه پوښتنه کوم چې بندی مو پردې غاړه له درې کسو سره پرېښود د څه لپاره پورې غاړه ته تلی؟
: باداره! دا د پياری لال امر و، او بندی په رسيو کلك تړل شوی و. دهغه څخه موږ ته هيڅ خطر هم نه و.
جی کرشن له غوسې څخه ريږديده او لښته يې په لاس کې ځرخوله ويې ويل: زه هيڅ نه پوهيږم تاسو ټول احمقان ياست.
زه به تاسو ټول په دار وځړوم. اوس ولې دلته راته ولاړ ياست! ورځئ هغوی د سيند په پوري راووزی غاړه وګورئ. کيدای شي چې رنبير ماښي ته له ننوتلو دمخه خپل څو تنه ملګري بهر درولي وی او راغلي وی او هغه يې اوس له پياری لال څخه ژغورلي او ورسره بيولي وي. که تاسو د رنبير مړی ونه موند، نو د پياری لال او دهغه د ملګريو مړی به خامخا ووينئ، ورځئ هغوی ولټوئ!
نوکران په منډه بهر ته ولاړل او جی کرشن بيا همغسې قدم وهل پيل کړل، د رنبير د خلاصيدو تصور د هغه انديښنه او غوسه په ويره بدلوله. لږ ځنډ وروسته بګت رام له ختيزې دروازې څخه وربښکاره شو، جی کرشن چې هغه وليد، وړاندې ورغی او چيغه يې وکړه: ګوپال چيرته دي، ته چيرته ورك شوی وې؟
هغه لاس په نامه ودريد او ويې ويل:

باداره! زه هغوی په پړی کلك وتړلم او په کېښتۍ کې يې واچولم زه بيا له دې ځايه درې څلور مېله کوز يوه شپانه له کېښتۍ څخه راوايستم.
- ته چا په کېښتۍ کې وتړلې او پرې يې ښودې؟
-باداره بندي!
-څه وخت. چېرته؟!
-باداره! ما لومړۍ هغه څلور کسان په کېښتۍ کې سپرول او بلې غاړې ته مې.....
جي کرشن د هغه خبره ورغوڅه کړه ويې ويل:
دغه پوچ پرچاو زه په وار وار نه غواړم واورم. ته يوازې د پوښتنې ځواب راکړه.
: زه ستا د پوښتنې ځواب درکوم باداره!
پياري لال راته وويل چې کېښتۍ خرابه ده ځکه لومړۍ....
جي کرشن خپل تندی نه تك ورکړ ويې ويل:
بګوان دې تا در په در کړي. ښه وايه!
بګت رام وويل: باداره! لومړۍ مې هغه څلور کسان پورې غاړې ته ورسول. بيا چې زه د پياري لال. سيتا رام . جي چند او بندي لپاره راغلم. نو هغوی زما لاسونه او پښې وتړل او کېښتۍ يې بيا ديرو اوبو ته ورټېل وهله.
- هغوی چا؟!
- باداره! لومړۍ پر ما بندي حمله وکړه. بيا هغوی هم مخونه په څادرونو کې پټ کړي وو. له بندي سره ملګري شول.
-څوك . پياري لال او ملګري يې؟
- هوکې باداره، هلته خو نور څوك نه وو، بندي په مزه مزه د سيند پر غاړه خپل مخ مينځلو او هغوی د سيند پر غاړه ورته ناست وو. کله چې بندي پر ما حمله وکړه هغوی هم په منډه راغلل، مخونه يې پټ وو. ما ونه ليدای شوای، خو باداره هغوی له پياري لال ، جي چند او سيتا رام څخه پرته نور څوك کيدای شي.
- ای نمك حرامو غوښې به مو سپيانو ته واچوم.

زما آس زین کړی او په کلی کی زما ټولو سپاهیانو ته امر وکړی چې زر تر زره له خپلو آسونو سره دلته راشی.

*****

جی کرشن له ماڼی څخه بهر د سپرو وړوکی ډلګی هر لوري ته واستولې اوپه خپله یې ډیرش تنه سپاره ورسره واخستل او دشمال لوری ته روان شو له کلی څخه کوم دوه نیم کیلو متره لری هغه پیاری لال او دهغه دوه تنه نور ملګری ولیدل چې ددوی په لور ور روان وو. جی کرشن خپلو ملګریو ته اشاره وکړه او هغوی د سترګو په رپ کې دریواړه راایسار کړل.

جی کرشن دوی ته نژدې آس ودراوه او ویې پوښتل:

بندی چیرته دي؟

- باداره! بندي تللی دی!

-چیرته!

- چیرته چې د هغه پوځ وي باداره!

جی کرشن له آس څخه پلی شو او د ولی په لبښته یې د پیاري لال په بې دریغه وهلو پیل وکړ. هغه چیغې وهلې:

باداره! رحم وکړه، موږ بې ګناه یو .له هغه سره پوره لښکر و. باداره! باداره! هغوی ډیر زیات وو هغوی پر کلی د برغل لپاره راغلی وو. وای مړ شوم! د بګوان لپاره مې وبخښه .باداره!له جی چنداوسیتا رام څخه وپوښته.

بیا جی کرشن پر جی چند او سیتا رام د وهلو پیل وکړ چې غوسه یې ښه سړه شوه، پیاری لال یې پر پښو ورپریوت او ویې ویل:

باداره! د سیند پر غاړه پر موږ د هغوی حمله دومره ناڅاپی وه چې موږ توری هم را ونه ایستلی شوای، موږ هغوی ونیوو او ځنګل ته یې بوتلو، هلته یې په ونو پورې وتړلو په خولو یې ټوټې راوتړلې چې چاته غږ ونکړای شو، دا اوس یو شپون هغې خواته راغی هغه موږ خلاص کړو.

: تـه دروغ وایی تاسو له هغوی سره ملګري شوي وی او د هغه د تښتولو نه وروسته اوس ماته دوکه راکوئ! زه به تاسو درې واړه ژوندي په ځمکه ښخ کړم. ربښتیا ووایئ تاسو بندی چیرته غلی کړی دی؟

: باداره! په بګوان سوګند، زه رښتیا وایم، تاسو له شپون څخه وپوښتی، هغه به تر اوسه همالته وي.
جی کرشن له لږ څنډ وروسته وپوښتل:
که تاسو رښتیا وایی، نو ووایه چې بندي کوم لوری ته تللی دی؟
: باداره! له هغوی سره آسونه وو، په ځنګل ننوتل، موږ یې چې ونیولو بیا یې خپلو ملګریو ته وویل چې په خپلو آسونو سپاره شئ او له پاتې پوځ سره یو ځای شئ. زه هم همالته ځان در رسوم. هغه او یوه بل سړی موږ پر آسونو وتړلو او ځنګل ته یې بوتلو.
باداره! که دهغه پوځ چیرته نه وی تللی، نو په ځنګل کې به وي، هغوی په دې سیمه کې د کلیوالو په جامو کې ګرځي، زه ویریږم چې کلکه ناڅاپی حمله رابانديې ونه کړي.
جی کرشن پوښتنه وکړه:
ستا په ګومان به د هغه سره څومره کسان وي؟
پیاری لال ځواب ورکړ:
باداره! موږ له اتو، لسو تنو زیات څوك نه دی لیدلي، خو د هغه له خبرو داسی معلومیده چې له هغو سره یو لوی لښکر وي.
جی کرشن چیغې کړې:
تاسو بالکل خره یاست، هغه به ستاسو د تیر ایستلو لپاره دا خبرې کړې وی، دا چیرې کیدای شی چې هغه دې له دومره لرې څخه لوی پوځ ورسره راوستلی وی اوله ننډنه څخه تر دې ځایه دې په لاره کې هیڅوك هم پرې خبر نه وي.
بیا که له هغه سره دومره لوی پوځ و، نو هغه پر مانۍ ولې حمله نه کوله، له هغه سره به همدومره کسان وو چې تاسو لیدلی دي.
یوه سپاره وویل: باداره! تاسو ډاډه اوسئ موږ به یې همدا اوس ولټوو او پیدا به یې کړو.
خو جی کرشن یوازې د خپل ځواك په اعتبار ځنګل ته ننوتلو ته چمتو نه و، هغه څو تنه شاوخوا سردارانو ته له دې پیغام سره واستول چې د محمود غزنوی څو تنه جاسوسان په ځنګل کې غلی شوی دي. څکه تاسو ټول له خپلو

خپلو پوځونو سره راشي. له دې وروسته يې پاتې کسانو ته مخ واړاوه او وې ويل: تاسو اوس د ځنګل شاوخوا پهرې کوئ، هغه کسان که تر اوسه له ځنګله نه وي راوتلي، نو د شپې څخه د مخه نه راوزي تر هغې پورې به د سيمې ټول لښکر دلته راټول شي. که موږ نن ماښام نه و، نو سبا له سپيده چاود سره په ځنګل کې د هغوی لټون پيلوو.

که ستاسو د کوم چا د غفلت په سبب دغه خلك پر تيښته بريالی شول، نو سخته سزا به درکړم، تاسو په ځنګل کې د هر شپانه او هر بزګر څخه دهغوی پوښتنه کوی، زه د احتياط لپاره د کلي او ماڼۍ د ساتنې بندوبست کوم او بيرته راځم. او پياری لاله!

ته زما خبرې په خلاصو غوږو واوره! که تا بيا څه کم عقلی وکړه، نو په همدې ځنګل کې به دې په کومه ونه راوځړوم. ته له چانه آس واخله او همدا اوس له دوو درې تنو سپرو سره د ځنګله بلې خواته ولاړ شه او شاوخوا کلي خبر کړه. هغوی ته ووایه چې زه به دهغه چا لمنی له سرو زرو ورډکې کړم چې رنبير او دهغه ملګری مړه او يا ژوندی راوسپاري.

*****

د ورځې له رابريدو سره پياری لال او بګت رام ځنګله ته نژدې په يوه پټي کې ناست وو او خبرې يې سره کولې. کيڼ لوری ته د کلی د خلکو وړې وړې ډلګۍ ګرځيدې.

پياری لال بګت رام ته وويل:

بګت رامه! زموږ د مصيبت بله شپه پيليدونکې ده.

بګت رام وويل: ياره دا شپه به هم تيره شي، خو زه يوازې له دې ويريږم چې که سبا ته هم د هغوی درك معلوم نه شي، نو څه به کيږي؟

- په دې کې زما څه ګناه ده، امکان لری هغوی په ځنګل کې نه وی ايسار شوي.

بګت رام وويل: کيدای شي هغوی د کليوالو په جامو کې ووزی او څوك شك پرې ونکړي آخر د شپې مهال خو د ځنګل څلورو واړو خواوو ته پهره کول آسانه خبره نه ده. ستا مطلب دادی چې په راتلونکې کې به

ددې سيمې دهر سړی د اشتباه سزا ماته راکول کيږي!

-یاره! خبره داده چې تا باید د سردار په مخکې د رنبیر د پوځ خبره نه وای کړې، اوس به ته دا ثابتوی چې له رنبیر سره په رښتیا پوځ و
پیاری لال د جی کرشن په نوکرانو کې تر ټولو زیات معتبر و. په عامو حالاتو کې به یې د نورو نوکرانو په داسې خبرو زغم نه کاوه. خو د تیرو شپږ یې خپله غوسه راقابو کړه، ویې ویل:
بګت رامه ته باید خوښ نه وې، تاته معلومه ده چې که سردار په ورځ کې شل کرته ماته بد رد ووایي نو یو اوه اته ځله خو به یې ته اورې. بګت رام چوپ شو، لږ ځنډ وروسته هغه یوه کلیوال ته غږ وکړ اوترې ویې پوښتل:
اې وروره! دلته اوبه شته که نه؟
کلیوال وړاندې ورغی، ځواب یې ورکړ:
داوبو لپاره تاسو باید خوړ ته ولاړ شی!
-خوړ څومره لرې دي؟
-ډیر لرې نه دی. زما په ګومان تر نیم میل هم لږ لاره ده.
پیاری لال جګ شو ویې ویل: یاره له تندی څخه زما هم وضعه بده ده راځه! دواړه په اسونو زر بیرته راستانه شو. تراوسه لاوخت شته که شپه شوه. بیا به ټوله شپه له دې ځایه دخوځیدو وخت نه مومو.
بګت رام جګ شو دخپل آس جلب یې سنبال کړ او کلیوال ته یې مخ واړاوه، ویې ویل:
ګوره ته بیدار اوسه که چا زموږ پوښتنه وکړه ورته ووایه چې هغوی له ځنګله راګرځي.
لږ ځنډ وروسته پیاری لال او بګت رام آسونه په تراټ وزغلول او دیوه وړوکی خوړ غاړې ته ورسیدل، دوی له آسونو پلي شول اوبه یې وڅښلې او بیرته سپاره شول، چې دمخامخ بوټو او ونو په منځ کې یې یو ناآشنا سړی ولید، هغه په یوه لاس د آس جلب نیولی و چې ډیر په زحمت یې په هغه پسې ګامونه اخستل. پیاری لال اوبګت رام د بیرته ستندو پرځای هماغلته ودریدل او ناآشنا سړی ته یې وکتل. دآس له وضعیت څخه داسې ښکاریده چې د تندې او ستومانی څخه له پښو لویدلی دی. چې خوړ ته

راورسید، څو کامه یې ګړندي واخستل او په اوبو یې خوله ورتیته کړه.

پیارې لال خپل ملګري ته په لاس اشاره وکړه اودواړو اسونه پونده کړل ترخوړ پرې وتل. پیارې لال نه آشنا سړي څخه وپوښتل:

- ته له کومه راغلې؟

- باداره! زه له ډېر لرې ځایه راغلی یم.

بګت رام وویل: ستا آس ډېر ستومانه دی؟

ناآشنا ځواب ورکړ: دا آس زما نه دی، په لاره کې مې پیدا کړی دی. دا ولوید اوسپاره یې په لاره کې پرېښود او ولاړ، ما فکر وکړ چې د شپې به یې ځناور وداړي او وبه یې وژني، ځکه مې ډېر په زحمت راسره راوست. تراوسه لا دوه میله نور هم باید وړاندې ولاړ شم.

پیارې لال وپوښتل: تا دغه آس له دې ځایه څومره لرې پیدا کړ؟

باداره! له دې ځایه نژدې اته میله لرې یوه غونډۍ ده، زه له هغې غونډۍ راکوزیدم چې لاندې مې یو سپور ولید چې را روان دی. دهغه آس په تلو کې ناڅاپه وغورځېد. سپاره بیا جګ کړ. خو چې هغه بیا پرې سپور شو په آس کې نور دتلو شیمه نه وه. سپور مجبور شو پلې روان شو. ما غږ پرې وکړ چې خپل آس پرېږدې چېرته ترې ځې. خو هغه هیڅ ځواب رانکړ.

پیارې لال پوښتنه وکړه:

ته دهغه سپاره څېره ښودلی شې؟

- هوکې! هغه یو ښکلی ځوان و، سپین رنګ، تر ما په قد لږ جګ، پراخه تندر داسې ښکاریده چې هغه له چا سره جګړه کړې ده او راغلی وي، دهغه د پګړۍ رنګ لکه چې ګلابي وٌ.

- تا له هغه سره نور څوك هم ولیدل؟

- نه!

- هغه دې څه دوخت ولید؟

- له ماسپښین څخه لږ وروسته.

- له هغې مخکې یا وروسته دې په لاره کې چیرته داسې څوك نه دی لیدلی چې مخونه یې دې پټ کړي وو؟

- نه!

بکت رام وویل:

نه دا ثابتولی شي چې نه پخپله له هغوی سره نه وې؟

نا آشنا سړی په دې پوښتنه پریشانه شو، هغه ته یې وکتل.

پیاري لال په درانه غږ وویل: که دې دسر ساتنه غواړې ووایه چې رنبیر چیرته دی؟

نا آشنا سړی لاوارخطا او حیران شو او ویې ویل:

څوك، رنبیر!!

پیاري لال بیا وپوښتل: د شپې مهال ته ورسره ملګرې وې، تا په خپل مخ نقاب راخپور کړې و، اوس ته موږ ته دوکه راکوې او کوم بل لورې ته مو استوې. تر څو هغه ځان وژغوری او ووزي، خو په یاد ولره! که هغه روغ رمټ ووتلو تا به ژوندی اورته وغورځوو:

ناآشنا سړی اوس داسې احساسوله چې د دوو لیونیو انسانانو په منځ کې راګیر دی او خبرې کول بنایي ګټه ونکړي. خو چې کله پیاري لال او بکت رام وربشکته شول او په پړې یې دهغه لاسونه تړل. نو چیغې یې کړې:

د بګوان په خاطر ما پریږدئ! ما تاسو ته څه بد رسولي دي؟ ما تاسو ته څه دروغ خبره نه ده کړې. زه له خپلو خسر خیلو څخه راستون شوې یم. زه ستاسو سره ترهغه ځایه تلوته تیار یم. دهغه کلی به شاهدی وایی چې زه سهار له هغه ځایه را روان شوی یم. ما یوازې پردې آس د زړه سوی غلطی کړې ده، ما وبخښي، پرې مې ږدې. که تاسو پر ما اعتماد نه کوی نو په خوښی درسره ځم، زما دتړلو ضرورت نشته.

خو هغوی دده د چیغو او فریاد پروا ونه کړه او لاسونه یې پرې وتړل، بګت رام پر آس سپور شو او پیاري لال نا آشنا سړی دهغه تر شا ورسره سپور کړ.

*****

دځنګل دکلابند کوونکو کسانو شمیر ورو ورو زیاتیده، دشاو خوا کلیو د سردارانو او ځمکه والو سرتیري د چې کرشن مرستې ته رارسیدل. جي کرشن دخپل محل دساتنې له بندو بست څخه وزګار شوی او بیرته راغلی و، دځینو سردارانو رایه داوه چې سمدستی دی په ځنګل کې د غلیو شویو کسانو لټون

پیل شي، خو جی کرشن له سیند څخه د پورې غاړې سردارانو اودهغوی دکسانو د راتلو انتظار کاوه، هغه دڅو با نفوذه سردارانو سره دځنګل په شاوخوا راګرځیده اوعامو خلکو ته یې دا لاړښونه کوله چې بیدار اوسي، ناڅاپه دوی پیاری لال او بګت رام ولیدل چې ورروان دي، هغوی آسونه ودرول ترې ویې پوښتل:تاسو چیرته تللي وی؟

پیاري لال له آس څخه پلې شو، بندی یې په بیړه دبګت رام له آس څخه را کش کړ، جی کرشن ته یې مخې ته ودراوه او ویې ویل:

بـاداره! مـوږ د هغـوی یـو ملګری نیـولی دی، خـو دی وایـی چې زه دهغوی ملګری نه یم.

جی کرشن ترې وپوښتل:

تاسو دې له کومه ځایه راوست؟

- باداره! دې موږ دخوړ په غاړه وموند.

جی کرشن چیغې کړې:

ماتاسو ته امر کړی و چې له ځایه مه خوځئ!

بګت رام ور وړاندې شو ویې ویل:

باداره! کـه مـوږ څـه غلطی کړی وي. تاسو موږ ته وروسته هم سزا راکولی شې. خو دغه سړی وایی چې رنبیر ده ته له دې ځایه اته- لس میله لرې په مخه ورغلی دی.امکان لري دی دروغ ووایي. خو که رښتیا وایي. نو په رنبیر پسې ورتلل ضروری دي.

پیاری لال وویل:

باداره! موږ دې تا تـه ځکه راوست چې تاسو به یې په رښتیا ویلو مجبور کړئ.

جی کرشن وویل: ته چوپ شه! بګت رام خبرو ته پریږده.

بګت رام په لنډ ډول کیسه تیره کړه، بیا جی کرشن بندی ته مخ واړاوه او ویې ویل:

ووایه رنبیر او دهغه ملګری چیرته دي؟ که ته رښتیا ووایی هیڅ هم نه درته وایم، که نه نو دلمر لویدو څخه مخکې به دې اورته واچوم.

بندی له ویرې څخه په ډک غږ وویل:

باداره! زه رنبير نه پيژنم.

بندي خپله کيسه اوروله چې څو نور سپاره هلته راتهول شول، په هغوی کې څو داسې سرداران او ځمکه وال هم وو چې د شاوخوا کليو څخه د جی کرشن دمرستې لپاره راغلي وو، يوه سردار هغه بندي وپيژاند، خپل آس يې ور وړاندې کړ، ويې ويل:

دا خو زموږ دکلي سړی دی.

جی کرشن، پياری لال او بګت رام ته وکتل اودوينو غوړپ يې تر ستونې تير کړ.

بګت رام وويل: باداره! موږ يو بې ګناه دسزا لپاره تاسو ته نه وراوستی، خو دهغه د خبرو له اوريدو وروسته به تاسو خامخا دا ومنی چې رنبير ډير لرې تللی دی او اوس له څه ځنډ پرته بايد په هغه پسې ورشو.

له بندي څخه جی کرشن څو پوښتنې نورې وکړې، بيا پريکړه پر دې وشوه چې څو تنه سپاره په رنبير پسې ورشی اونورپه ځنګل کې دهغه غلې ملګرې ولټوي. له پياري لال او بګت رام سره لس تنه سپاره دلويديځ لور ته روان شول. اوهماغه سړی چې دوی نيولی او راوستلی و ددوی د لارښوونې لپاره ورسره ملګری شو، هغه په وار وار له ځانه سره ويل چې کاشکي په هغه آس مې لاس نه وای وهلی.

*****

سردار پورن چند يو آرامي خوښوونکی اولټ سړی و. له لمرلويدو څخه لږ وروسته په کور کې کيناست او له خپل توتې سره يې سات تيراوه چې نوکر ورغی او ورته ويې ويل چې يو ميلمه راغلی دی او سمدستی له تاسره ليدل غواړي. پورن چند پر زړه زوږ راوړ او راجګ شو او دميلمستون په لور ولاړ، دده داند يښمن کيدو لپاره د نوکر همدا وويل بس و چې هغه سمدستی ورسره ليدل غواړي.

هغه چې رنبير وليد پوښتنه يې وکړه:

ته له کومه ځايه راغلی يې؟

رنبير ځواب ورکړ: زه دې ونه پيژندم! زه د سردار موهن چند زوی يم.

پورن چند چې دا واوريدل رنبير ته يې په ځير ځير وکتل او خپله پريشانی

يې را قابو کړه ويې ويل:

آه ته خو مې ونه پيژندې! ته خو ډير کمزوری شوې يې اوس له کومې خوا راغلی يې؟

دتيرو څو ورځو پيښو رنبير ډير محتاط کړی و، دبوډا سردار پر څيره يې چې د پريشانی کرښې وليدې پرشونډو يې مصنوعی موسکا خپره شوه ويې ويل:

له ننده نه څخه راغلی يم، ستا دکلي له څنګه تيريدم غوښتل مې يو ځل بيا تاسو هم ووينم.

- تا ډير ښه کار وکړ خو... بوډا سردار دخپلې خبرې دبشپړولو پرځای سترګې درنبير په څيره وګنډلې.

رنبير وويل: وبخښئ ما بې وخته تاسو ته زحمت درکړ، خو له دې ځايه لږ وراندې زما آس مړ شو، اوس زه يوه تازه نفسه آس ته اړتيا لرم.

سردار له لږ چوپتيا وروسته ځواب ورکړ:

آس به درته پيدا شي، خو ستاخپل کلي ته تګ مناسب نه دی.

- زما هم همدا اراده وه، چې زه د شپې مهال دسفر پرځای دشپې په وروستۍ برخه کې له دې ځايه روان شم، هسې هم د يوه اوږده سفر څخه وروسته زه ناتوانه شوی يم.

پورن چند ډير څه ويل غوښتل چې د لوړې اوستومانۍ څخه يې د رنبير څيره مړاوې وليده د څه ويلو اراده يې و ځنډوله او نوکرانو ته يې امر وکړ چې سمدستي ډوډۍ راوړي.

لږ ځنډ وروسته رنبير دخپل کوربه دهستوګنی په کور کې په يوه کوټه کې په درانه خوب ويده شوی و. او پورن چند په خپله بالاخانه کې خپلې ميرمنې ته ويل:

دبګوان شکر دی چې زموږ دنوکرانو څخه کوم يوه هغه ونه پيژاند. که نه جی کرشن ډير ذليل انسان دی. که هغه خبر شو چې دموهن چند زوی زموږ کره پاتې شوی دی، نو تر عمره به زموږ دښمن شي.

اوس زما سره ددې انديښنه ده چې زه هغه ته سهار څنګه ووايم چې کور دی برباد شوی دي، دډوډۍ پر وخت مې څو ځلې اراده وکړه، خو چې هغه ته

به مې وکتل جرئت به مې ونه کړ، زه پر دې هم ویرېږم چې که هغه له هرڅه خبر شي بیا به هم خپل کلي ته له تلو را ایسار نه شي.
کاشکې ما ورسره مرسته کولی شوای، خو د جي کرشن غونډې سړی دښمني اخستل له غره سره سرجنګول دي.
میرمنې یې ورته وویل: تاسو فکر مه کوئ، زه هغه پوهوم، چې غلی کوم بل لورې ته ووزي.
سهار وختي چې پورن سنګ او دهغه میرمن د رنبیر کوټې ته ورننوتل هغه په درانه خوب ویده و. دسردار میرمن وویل: دده لپاره آس تیار کړئ، زه به یې راویښ کړم او وبه یې پوهوم. پورن چند لاندې کوز شو او خلاص انګړ ته ووت، یوه نوکر چې ولید په منډه ورغې ورته ویې ویل: باداره! دشپې چې تاسو ویده شوی، یو سپور راغی هغه له موږ نه وپوښتل چې هغه میلمه چې ستاسو له سردار سره لیدو ته راغلی و څوك و. ما ورته وویل چې زه یې نه پیژنم، بیا هغه غوښتل له تاسره ویني، خو موږ مناسب ونه بلل چې تاسو له خوبه راپاڅی، له هغې وروسته هغه وویل چې زما اصلاً له دغه سړي سره کار دی چې دلته راغلی دی، ما ځواب ورکړ چې هغه د میلمستون په ځای دننه په کور کې ویده شوی دی، او زه اوس هلته نشم ورتلی. تاسو شپه له موږ سره تیره کړی سهار له هغه سره وګوری. خو هغه وویل چې زه ډیر لرې روان یم، کله چې هغه بهر ته ووت ماله دروازې پسې وکتل لرې ورانديې دوه تنه نور سپاره هم ولاړ وو، هغوی تر لږ ځنډه پخپلو کې سره وګړیدل او بیا یوې خواته ولاړل، زه پر هغوی شکمن شوم نورو نوکرانو ته مې هم لارښونه وکړه چې بیدار اوسی او بیا په کلي راوګرځیدم، کلیوالو ته مې هم وویل چې دشپې مهال باید بیدار وي، دکلي څو تنو راته وویل چې لږ ځنډ دمخه درې تنه سپاره راغلل له موږ څخه یې وپوښتل چې تاسو خو به یو نا آشنا سړی په دې کلي کې نه وي لیدلی؟
تاسو ډیر بد کړي دي، زه مو باید سمدستي خبر کړی وای ،اوس په بیړه له طویلې نه یو آس راولئ،پورن چند دا وویل او په منډه یې د رنبیر کوټې ته ځان ورساوه او ساه نیولی یې وویل:
رنبیره! ته سمدستي له دې ځایه ووځه دشپې مهال څو تنه سپاره ستا په

لمه دلته راغلي وو، تا ماته ولې ونه ويل چې هغوی درپسې دي؟ دسردار میرمن راوړاندې شوه، ویې ویل:
رنبیر ماته هرڅه وویل امکان لري د جي کرشن کسانو دی تعقیب کړي وي او ورپسې راغلې وي، خو اوس درنبیر د ژوند ساتل زموږ ذمه واري ده.
پورن چند رنبیر ته وکتل ویې ویل: ته دخپل کلي ته تللی وې؟
:هوکې! زه د مرګ له کومې راوتلی او راغلی یم، خو زما دا باور نه و چې دجي کرشن کسان به تردې ځایه په ما پسې راځي.
: که ته د جي کرشن له منګولو څخه راوتلی او راغلې وې،نو پردې پوه شه چې تر اوسه پورې به دهغه کسانو کلی کلابند کړی وی، که تاله راتګ سره ماته تول حال ویلی وای، ما به تراوسه پورې په میلونو لرې رسولی وې، اوس له ماسره راځه!

*****

رنبیر بې له دې چې څهووایي په سردار پسې روان شو، د طبیلې په مخکې نوکر یو آس ترجلب نیولی ولاړ و، رنبیر ور وړاندې شو، آس یې تر جلب ونیو او خپل کوربه ته یې وویل:
زه به دعمر ترپایه ستا ددې نیکی بدله درنکړای شم.
- زه دیوه نواب زاده ذمه واری ترسره کوم، د بګوان په خاطر نور ورځه دا دخبرو وخت نه دي. که په لاره کې چاپه تا پسې د درتلو هڅه کوله ، نو جنوب ختیځ لوری ته ځنګل ته دننوتلو هڅه وکړه.
رنبیر چې د آس پر رکاب پښه کیښوده دکلی سپیانو غپا پیل کړه او له دې سره سم د آسونو دپښو ترپهار هم پورته شو، یوسړی د پاټك له لوری په منډه راغی او ویې ویل:
باداره! وسله وال سپاره دمانۍ په شاوخوا راټول شول، څو کسان لویې دروازې ته راغلل او وایي چې دروازه خلاصه کړئ. ما دروازه خلاصه نه کړه داسې ښکاري چې دوی پر مانۍ دحملې اراده لري.
پورن چند په وارخطایی وویل: لکه چې هغوی راغلل، رنبیر بې له ځنډه توره راوکښله او آس یې پونده کړه. چې له مانۍ څخه ووت کیڼ لوري ته یې په یوه کوڅه کې څو تنه سپاره ولیدل. هغه خپل آس ښی لوری ته په یوه تنګه

کوڅه وربرابر کړ، سپرو چیغې کړې او په هغه پسې شول. لږ وړاندې په یوه ګرځندې کې دوی تنګې کوڅې راوتلې وې، زنبیر چې په یوه کوڅه کې د آسونو د پښو ترپهار واورید، نو په بیړه په دوهمه کوڅه ننوت، لږ ځنډ وروسته چې هغه له کوڅې څخه یوه خلاص ډګر ته ووت، مخامخ یې درې سپاره ولیدل چې غشې یې په لیندو کې برابر کړې وو، هغه پر زین ورخم شو او د غشیو څخه یې د ځان ساتلو هڅه وکړه، دوه غشې یې تر سر اوچت تیر شول او دریم یې دمت پوستکی ورسره څیرې کړ او تیر شو، بیا د سترګو په رپ کې یو سپور دده ترګوزار لاندې راغی، رنبیر په یوه ګوزار هغه له آس څخه لاندې وغورځاوه، د هغه دوو ملګریو لا توری ایستلې چې رنبیر وړاندې تیر شو چې بیا د کلې د کوڅو څخه تر دیرشو سپرو په هغه پسې اسونه ورپونده کړل، نژدې دوه میله مزل وروسته د رنبیر آس له هغوی څخه زیات وړاندی ولاړ، نژدې نیم میل وړاندې بنې او کیڼ لوری ته دوه وړوکی کلی وو او وړاندې ګڼ ځنګل، چې همدغه دده وروستۍ د تمې ځای و.

هغه د یوه کلي ترڅنګ تیریده چې ناڅاپه یې اته تنه سپاره ولیدل چې را ښکاره شول، رنبیر د خوړ لار پریښودله او غوښتل یې ځان یوې خواته وباسي، خو هغوی یې سمدستي لاره ونیوه، اوس په خلاص ډګر کې رنبیر ته له هغوی څخه ځان ژغورل ګران وو، ځکه خو هغه بیرته د کلي په لوری مخ واړاوه او دیوه ګڼ باغ څخه تیر شو او ځنګل ته ننوت، دسپرو نوی ډلګۍ تراوسه په هغه پسې وه او د ښې او کیڼ لوری څخه یې غوښتل را ایسار یې کړي، دځنګل هغه برخه چې رنبیر پکې پناه اخستلې شواي، لا لرې وه، دوو سپرو د رنبیر کیڼ لوری ته تر ده مخکې ځانونه وایستل او هغوی ناڅاپه مخونه راوګرځول او پرده یې حمله وکړه.

رنبیر یو سپور وواژه دوهم ووېریده او یوې خواته شو، په دې ځنډ کې پاتې شپږ سپاره هم راورسیدل او ترده را چاپیر شول، هر یوه د بل د وړاندې کیدو انتظار کاوه.

یوه سپاره وویل: ته نور نشی خلاصیدای توره دی وغورځوه.

- په تاسو کې ښایی ډیر لږ داسې کسان وی چې ما ووینی چې توره غورځوم. رنبیر دا وویل او سمدستي یې په یوه لوری حمله وکړه، دده تر برید

لاندې راغلي سپاره ځان يوې خواته کړ او رنبير څو ګامه مخکې ووت.
سپرو بيا يو بل ته کنځلې کولې او په هغه پسې شول، يوه سپاره چې ځان يې پر رنبير پسې ور رسولی وغوښتل يې پر نيزه پر هغه وار وکړي، خو مخامخ د ونو له منځه له کوم ځايه په يو شغ غشی راغې او دهغه سپاره په ټټر کې ونښت، وروسته بيا يو پر بل پسې درې نور غشي راغلل او درې تنه سپاره پرې سوري شول او وغورځېدل، پاتې سپرو دخپلو آسونو قيضې کلکې کړې او په چيغو بيرته په شا ولاړل، په دې ځنډ کې د جی کرشن پاتې لښکر هم ځنګل ته ورننژدې شو او پياري لال ددې لښکر د سالار په توګه داخبر ورکړ چې دښمن يوازې نه دی،، ددې ځنګل دهرې ونې ترشا دهغه يو غشي ويشتونکی پټ دی، رنبير خپل آس ودراوه او په حيرانۍ يې يوې اوبلې خواته کتل، په دې کې يو زلمی چې لينده يې په لاس کې وه ترې وپوښتل: په تاپسې نور څومره کسان دي؟
رنبير ځواب ورکړ: کوم ډيرش، خلويښت کسان به وي.
- زما په ګومان به پاتې کسان له ډېر فکر اوسوچ څخه وروسته ځنګل ته دننوتلو تکل کوي، ته په ما پسې راځه.
ناآشنا ځوان دا ووېل اوبيا يوې خواته روان شو. رنبير هم بې له دې چې څه پوښتنه وکړي، په هغه پسې روان شو، لږ وړاندې يوآس په يوه ونه پورې تړلی و، ځوان آس خلاص کړ او پښه يې پې واړوله.
ترنيم ميل مزله وروسته ناآشنا ځوان دآس وروکړ، رنبير ته يې مخ واړاوه وېې ويل: ستا آس ډېر ستومانه ښکاري، اوس يې آرام پرېږده.

# نوی ملګري

ماسپښين مهال رنبير او دهغه انډيوال له ځنګل څخه تر تيريدو وروسته د يوه وړوکي خوړ پر غاړه ناست وو او خبرې يې کولې. دهغوی آسونه چې له لوږې او ستوماني څخه بې حاله وو د خوړ پر غاړه په شنو وښو کې څريدل. نا آشنا ځوان چې د رنبير کيسه واوريده، ترې ويې پوښتل:

اوس غواړې چيرته ولاړ شې؟

رنبير ځواب ورکړ: زما کوم منزل نشته، يوازې دژوندی پاتې کيدو هيله ما ډير لرې بيول غواړي، ته به حيران شې چې ما ستا دليدو څخه وروسته پر دې دفکر کولو ضرورت احساس نه کړ چې زه چيرته ځم او که اوس هم تا له مانه دا پوښتنه نه وای کړې، نو زما په خيال کې دا خبره نه راتله، زه داسې احساسوم چې تقدير زما لاس ستا په لاس کې درکړی دی. او زه بايد بې له دې چې څه ووايم او پوښتنه وکړم بايد په تاپسې روان شم.

نا آشنا په ځير رنبير ته وکتل او ويې ويل:

عجيبه خبره ده، زه له ډيرو ورځو راسې داسې احساسوم چې په دنيا کې يو داسې څوک يم چې هيڅ منزل نه لري او هرڅه يې يوازې تر دې پورې محدود دی چې ژوندی پاتې شي. يوازې له مرګه ويره زما دايمي ملګرې ده او دژوند په ستومانه غمجنه او نه ختميدونکې لاره به زه هيڅ انډيوال اوملګری ونه لرم. په ځنګل کې چې کله ته له خپلو دښمنانو نه خلاص شوې او په ما پسې را روان شوې، ما ويل اوس به ودريږې او وبه وايې چې زه پلانی ښار او ياکلي ته ځم.

ستا څيره پر دې سربيره چې غمجنه ده پردې ګواهي ورکوی چې ستا دنيا زما له دنيا څخه بيله ده، ته د کوم لوی سړي زوی يې، په کومه شانداره ماڼۍ کې به ستا د ورتلو انتظار کيږي، دومره کسان دکوم معمولي سړي دښمنان

نشي کيداى، ستا د دښمنانو په خير به ستا دوستان هم ډير وي. په هر صورت، ستا په دغه ناڅاپي ملګرتيا کې هم ما يو خوند احساساوه، همدغه سبب و چې ما په لاره له تاڅخه دا پوښتنه نه کوله چې ته چيرته ځې، ما غوښتل چې ترڅه وخته نور هم زما سره ملګرى وې، اوس مې چې ستا کيسه واوريده زه غوارم ووايم چې زه ستا د لارښونې لايق نه يم، خو که ته کوم ملګري ته اړتيا لرې، نو زه درسره يم.

رنبير وويل: زه دغه يو له بل سره مخامخيدل هسې ناڅاپي نه ګڼم، ښايي تقدير د کوم نامعلوم هدف دترسره کولو په خاطر موږ له مختلفو لوريو څخه تيل وهلې وو او په يوه ځاى کې يې يو ځاى کړو، اوښايي موږ دخپل خپل منزل په لور د لارې په نخښې کولو څخه دمخه تر يوه وخته يوله بل سره ددوارو ملګرتيا ضرورى وي، آيا زه پوښتلى شم چې ته څوك يې ؟له کومه ځايه راغلې يې او کومې پيښې دى چې ته يې زما ملګرى کړې؟

نا آشنا د رنبير د پوښتنې په ځواب کې خپله کيسه واوروله.

*****

دغه ناآشنا رام نات و چې دخپل پلار د وژل کيدو په سبب په غوسه شو اوپه يوه داسې برهمن يې لاس اوچت کړې و چې د سومنات دنمانځونکي په توګه لويو لويو راجه ګانو ته ددرناوى وړ ګڼل کيده. رام نات چې له خپل کلى څخه راوتښتيد وپوهيده چې د سومنات دپالونکيو غضب چې دچا په برخه شي، هغه دديوتاګانو په سپيڅلې خاوره کې د پښې ځاى نه لرى د سومنات دعظمت ويره پخوا هم دخلکو په زړونو کې لږه نه وه، خو دمحمود غزنوى په لاسو دډيرو درمسالونو دنيول کيدو څخه وروسته دهيواد په ساره او اوږدو کې داخبره مشهوره شوې وه چې ددې درمسالونو د ماتې سبب دادى چې د سومنات ديوتا دنورو درمسالونوله ديوتاګانو څخه ناراضه شوى دى چې دهغه له خوشالولو پرته دهندوستان راجه ګانو او سردارانو ته دمحمود غزنوى ماتول ګران دي.

دګواليار دخلکو لپاره داخبره ډيره داندېښنى وړ وه چې يوه بې رحمه سپاهى د سومنات يوپالونکى وژلى دى، دګواليار راجه هم پردې ډير خفه و. هغه چې دا خبر واوريد دسومنات دلوى مذهبي پيشوا دغوسې څخه د

ژغورنې په خاطر يې هغه ته ډيرې ګرانبيه تحفې واستولې او دخپلو ګاونډيو رئيسانو دملامتۍ او خپل رعيت دغم او غوسې په خاطر يې اعلان وکړ چې د سومنات د پالونکي قاتل که چا ونيو او يا يې سر راوړ، ډير لوی انعام به ورکړل شي.

رام نات ته اته ورځې وروسته له خپل کلي څخه ډير ميله لرې په يوه وړوکې کلي کې دامعلومه شوه چې دسومنات دپالونکي دمرګ خبر په ټول هندوستان کې خپور شوی دی، اوس له ده سره سمدستي د ګوليار له سرحد څخه د وتلو فکر پيدا شو، ښارونو او کليو ته په نژدې کيدو ده هميشه ددې خطر احساس کاوه چې کوم پيژندوی ناڅاپه ورسره مخ نشي او چيغې نه کړي چې:

دا رام نات دی، زه يې پيژنم ويې نيسئ!

يوماښام سرحد ته نژدې يوه کلي ته دشپې تيريدلو لپاره وروګرځيد، دکلي په حجره کې څو تنه مساپر نور هم پراته وو، يوه ځوان چې له رام نات سره په پوځ کې يو ځای و، هغه وپيژاند او په حيرانۍ يې ورته وويل: ته دلته څنګه راغلې؟

رام نات هڅه وکړه چې خپله وارخطايي پټه کړي، ځواب يې ورکړ:

زه متهرا ته ځم، هلته ما دهنومان چې په درمسال کې نذر منلی دي.

ځوان وويل: عجيبه پيښه ده، زه هم هلته ځم، هلته زما څو خپلوان دي، د مسلمانانو له حملې وروسته دهغوی هيڅ خبر نه دی راغلی، ستاسو کلی دسومنات د واکمنۍ په ساحه کې دی که نه؟

رام نات په پريشانۍ ځواب ورکړ: هوکې!

- نو تا به داخبر اوريدلې وی چې چا هلته دسومنات کوم پالونکی وژلی دی.

رام نات نور هم انديښمن شو ويې ويل:

ما په لاره کې دا خبر اوريدلې دی.

ځوان په خندا ورته وويل:

چا خو به په تا شك نه وی کړي، زه خو په يوه کلي را ايسار شوم.

- زه دې په مطلب پوه نه شوم.

- زه له یوه وړوکي کلي څخه تیریدم چې یوه سړي چیغې کړې دا ونیسئ، دا دسومنات دپالونکی قاتل دی.
څو تنه پر ما راتول شول له نیکه مرغه په هغوی کې یو زموږ د پوځ سپاهي وو چې له مانه یوه ورځ مخکې په رخصتي راغلی و، هغه ډیر په زحمت خلك وپوهول او زه یې وژغورلم.
وروسته بیا ماته معلومه شوه چې ددغې سیمې سردار له سیمې څخه دهر تیریدونکی سړي د څارنې امر ورکړی دی، خلکو چې دهغه له خولې د وژونکی څیره کوم ډول وښودله هغه زما سره یو شان وه یوازې توپیر په دی کې و چې زما رنګ ډیر تور بخن دی.
رام نات وویل: ددې مطلب دادی چې که هغوی زه لیدلی وای، زیات به راباندې بدګومانه شوې وو، ځکه چې زما رنګ ډیر تور بخن نه دی.
ځوان په غور رام نات ته وکتل او ویې ویل:
هوکی ستا په لیدو به زیات شکمن شوې وو ځکه چې ستا تندې هم تر ما زیات پراخ او قد دې هم تر مالږ جګ دی او...
او زما نوم هم د قاتل نوم ته ورته دی او رام نات آس ته پونده ورکړه.
دغه شپه رام نات په ځنګله کې تیره کړه، سبا ته د جمنا له سیند څخه پورې ووت او قنوج ته داخل شو. اوس ده ته خطر یو څه لږ شوی و، خو ډاډ یې په نصیب نه و، د شپې به دبزګرانو او یا شپنو په کوم وړوکي کلي کې پاتې کیده او ورځ به یې تېوله په ویرانو او ځنګلونو کې په سرګرداني تیریدله، په دې ترخو ورځوشپو کې یوازې روپ وتی دده وروستي تکیه وه، په یوازې توب کې به یې زیاتره فکر کاوه چې د ژوند ددې هسکو ټیټو اوستونزمنو لارو له تیریدو وروسته به کومه ورځ له هغه سره یوځای شی او که نه، سمدستي دسومنات درمسال ته ځان رسول له خطره خالی نه دی، خو امکان لري څه موده وروسته خلك ددرمسال دپالونکي وژل کیدل هیر کړي او دی پر دې وتوانیږی چې هلته ورشي.
رام نات د همالیې په کوم لرې ریاست کې دپناه اخستو په نیت د شمال ختیځ په لور مخه کړه، یو ځل یوه ځنګل ته نژدې پرې شپه شوه او هغه دیوه شپانه په څپره کې ویده شو. سبا ته د ځنګل ترځنګ دختیځ په لور وخوځید

چې څو سپاره يې ولېدل چې په يوه بل سپاره پسې ورځي. هغه زر په ځنگل ننوت او د يوې ونې ترشا ودرېد، کله چې سپور ځنگله ته ننوت له آس څخه پلی شو، هغه يې په ونو پورې وتاړه، بيا بيرته ولاړ، دځنگله په څنډه کې په بوټو کې غلې کيناست.

دا درنبير نيکمرغی وه چې په ځنگله کې هغه ځای ته ورغې چې رام نات غلې و او چې کله پر هغه وروستی برید کيدونکی و، نو دهغه دښمن درام نات دغشيو تردم لاندې راغلی و، لومړی رام نات غوښتل غلی دهغو کسانو دجگړې ننداره وکړي، خو چې کله جگړه پريکنده پړاو ته ننوته، ناڅاپه يې په زړه کې وروگرځيدل چې زما په مرسته ديوه زړور ځوان ژوند ژغورل کيدای شی ځکه خو يې بې له دې چې د نتيجو په اړه فکر وکړي، دغشو په ويشتلو يې پيل وکړ.

د رام نات له کيسې اوريدو وروسته رنبير وويل: نو تا يوازې ددې لپاره زما مرسته وکړه چې زه يوازې وم اودښمن مې زيات!

:هوکې! خو ترډې هم زيات زه ستا له جرئت او همت څخه زيات اغيزمن شوم. که تا ددښمن په وينا وسله غورځولې وای، نو ما به ښايی ستا دمرستې پرځای، دخپل ځان د ژغورلو هڅه کوله. خو چې کله تا دډيرې مايوسی په حالت کې هم حوصله له لاسه ورنکړه او دمرگ او ژوند څخه بې پروادې پر دښمنانو حمله وکړه، نو ما احساس کړه چې ستا سره که مرسته ونه کړم، نو دا به ډيره بده بې همتي وي.

تا ديوه داسې چا ژوند وژغوره چې هيڅکله هم دچا نيکي نه هيروي، سر له ننه ته زما ورور يې، رنبير دا وويل او لاس يې رام نات ته ور وړاندې کړ، رام نات دهغه لاس په دواړو لاسو ونيو. ږويې ويل:

ستا کشری ورور!

دقنوج له شمالي سرحدڅخه چې تير شول، رنبير اورام نات څو ورځې يوه اوبله خوا سرگردانه گرځيدل.

کليوال خلك دبهرنيو يرغلونو په سبب دخپل وطن دهر پوځی په زړه ساتلو عادی شوې وو. ځکه دهر کلي سپين ږيرو ددوی هرکلی کاوه، رام نات په پوځ کې دخپلو وروستيو مياشتو خدمت د وخت له تنخواه څخه څو زرينې سکې

ورسره ساتلې وې چې دغه لړې پيسې تر اوسه ورسره وې، رنبير دشکنتلا دزيور له لاسه ورکولو وروسته تش لاس و.

*****

رنبير په وينښه او خوب کې او په ناسته اوولاړه تل دخپلې خور په خيالونو کې ورک و، يوه ورځ هغه د يوه وړوکي کلي ديوه خان ميلمه و، دشپې مهال چې په يوه وړوکی کوټه کې په چپرکټونو پريوتل، رام نات ترې وپوښتل: اوس مونږ دخطر له ساحې څخه ډير لرې راغلي يو، سهار ته ستا څه نيت دی؟

رنبير له لږ چوپتيا وروسته ناڅاپه جګ شو، کيناست او ځواب يې ورکړ: رام ناته!

حالاتو دواړه په يوه کښتی کې سپاره کړو، ته چې د چا په لټه کې وې هغه به له دې ځايه په سلګونو ميله لرې د سومنات په درمسال کې ستا انتظار کوي، خو ترڅو د يوه پالونکي دمرګ خبره هيره نشي، ته هلته نشی تلای، په دې ډول نه پوهيږم څومره موده ښايی تيره شي. خو ته بايد مايوس نه شې، مانيت کړې و چې ستا په ځای زه سومنات ته ولاړ شم او که ما روپ وتی له هغه ځايه رانه وستلی شوه هم دومره خو به معلومه کړم چې په راتلونکی کې ستا د بري چانس څومره او امکانات يې څه دي؟

خو زما وضع ددې پرخلاف ده، زما څلورو واړو خواو ته تيارې دي، زه د يوه داسې منزل لاروی يم چې لاره يې معلومه نه ده، کاشکی ماته يوازې دومره معلومه وای چې شکنتلا چيرته ده؟ تراوسه ما دا فکر کاوه چې هغه به د جی کرشن له ويرې دقنوج له حدودو څخه وتلې وي او هغه به په يوه نه يوه طريقه دکلی له حالاتو ځان خبروي، که زه بيرته خپل کلی او ماڼی ونيسم، نو دهغې درک معلومول راته ګران نه دي، که هغه ژوندی وی زما باور دی چې پخپله به هلته ځان راورسوي، ددې هدف لپاره جی کرشن اودهغه ملګری سرداران بايدمات شي، خو زما دغه اراده ديوه ليوني له خوبونو څخه پرته، بل څه نه ښکاري، دقنوج نوی واکمن د جی کرشن ترشا ولاړ دی، په دې صورت کې جی کرشن يوازې هغه ځواک ماتولی شی چې د قنوج دنوی حکومت تخت چپه کړای شي. نن زه تا ته يوه خاصه خبره کوم چې زما د روح فرياد او زما دزړه آواز دي. که يې ته واورې ښايی ووايې چې تا زه دوست او ورور ګڼلم اشتباه

دی کړې وه، زما وروستۍ امید محمود غزنوی دی.

رنبیر چې دغه خبره وکړه، چوپ شو. هغه ګومان کاوه چې اوس به رام نات ناڅاپه راجګ شی اودی به تر مرۍ ونیسي، خو چې هغه ډاډه پروت و ، نو رنبیر وویل:

ډیرې ورځې کیږی چې زما زړه شاهدي وایی چې هغه به خامخا راځي، قدرت چې هغه ته کوم کار سپارلې دی، هغه به پوره کوي. د کالنجر راجه چې کومه وضع راوستې ده دهغه په باب زه په باور سره دا نشم ویلی چې زما فریاد به هغه تر اغیزې لاندې راولي، خو دهغه په پوځ کې دعبدالواحد په څیر خلك دی چې زما ترې تمه ده چې خامخا به مرسته راسره کوي.

ته به داوایی چې زه له خپل وطن سره خیانت کوم. خو زما ضمیر ډاډه دی، د وطن تر دې ښه خدمت بل کوم دی چې د جی کرشن غوندې ځناورو څخه پاك شي، ته به ما د کلتور دښمن وبولې، خو زما په سترګو کې ددې تهذیب او کلتور طلسم هم مات شوی دی چې انسانان دلیوانو اوپسونو په ډلو ویشي.

رام ناته! زه دمحمود غزنوی دراتلو لارې څارم که زما داهیله ترسره شوه، نو زما باور دی چې د شکنتلا په موندلو کې به ځنډ رانشي، اویا به زه له تاسره سومنات ته د تلو وعده ترسره کوم، که زه د شکنتلا په موندلو کې مایوس شوم، هم سومنات ته به خامخا ځم ، خواوس زه تاپردې نه مجبوروم چې زما سره ملګری شې.

رام نات جګ شو، کیناست او ویې ویل:

کاشکی تاته دا معلومیدای چې ستا له خولې زما د زړه خبرې راوزي، محمود یوازې ستا نه، بلکې زما هم وروستۍ هیله او تکیه ده، زه سمدستي سومنات ته له دې څخه نه ویریدم چې زه له مرګه ویریږم، زما سره د ځان اوس هیڅ قیمت نشته، او بیا دا هم ضروری نه ده چې کوموپولونکیو د یوې شپې لپاره زه لیدلې یم ، نو هغوی مې که بیا ووینې، نو پیژنی به مې، زما د دوه زړه توب سبب بل دي، زه پر دې فکر کوم چې روپ وتی دهغو نجونو څخه نه ده چې سومنات ته په خوښه ورغلې وې او په خپله خوښه بیرته ترې ووزي.

هغه یې له زیږیدو څخه دمخه د سومنات په نامه نذر کړې وه، چې که دمذهبی پیشوا له اجازې پرته دهغه مور او پلار اکمن غواړی هغه د سومنات څخه

وباسي، نشي کولی، زما او روپ وتی ترمنځ دمذهبی مشر او ددرمسال نه ماتیدونکي دیوالونه دریدلي دي، پخوا ما فکر کاوه چې یو وخت به زه دلوی راجه دلښکرو سالار شم او دمذهبی پیشوا په وړاندی به د سرو زرو او جواهرو انبارونه وغورځوم او ورته وبه وایم چې د روپ وتی دآزادی بیه مې راوړې ده.

خو اوس زما وروستی تمه همدا ده چې د تقدیر نه لیدونکی او نه پیژندونکی ځواك به زما دلارې ستونزې لرې کړي، په کومه ورځ چې تاسو دواسدیو کیسه اورولمه، ما فکر کاوه چې آیا دا نشی کیدای چې دمحمود غزنوی لارښوونکی ځواك چې دوی یې دخدای په نامه پیژنی کومه ورځ دهغه د آس لوری د سومنات په لور وروګرځوي.

رنبیره! زه درسره ملګری یم.

# د رهت پر غاړه

دننده له ماتې وروسته راجه ترلوچن پال له خپل پاتې پوځ سره د شوالك په غره کې پړاو اچاوه، خو چې د سلطان محمود د پوځ خبر ور ورسید، دقنوج نوی واکمن چې هغه هم ترلوچن پال نومیده او د کالنجر او ګوالیار د راجه ګانو سره د یوه واحد محاذ د جوړولو په نیت د جنوب په لور وتښتید، سلطان محمود په ډیر حیرانوونکی ګړندی توب هغوی تعقیبول او د رهت دسیند څنډو ته ورسیدل، خوددې نه وړاندې ترلوچن پال له سینده پورې وتلې و. د شوالك له غرونو څخه د رهت تر سیند پورې په اوږده سفر کې هم هغه دخپل ځواك په اعتبار په کوم ډګر کې دمحمود له لښکرو سره مقابلې ته تیار نه و.

اوس دده دپوځ اودښمن ترمنځ سیند و او دې پردې ډاده و چې له څه خطر سره له مخکیدو پرته ترډیرو ورځو پورې دسیند څخه دمحمود د لښکرله پورې وتلو مخه نیولی شي، هغه دسیند له غاړې څخه لږ لرې پړاو واچاوه اوپه جنوب کې یې خپلو ملګریو راجه ګانو ته احوال ورکړ چې له دښمن سره د پریکنده مقابلې لپاره دغه ډیر مناسب ځای دی. او که دښمن له سیند څخه دپورې وتلو جرئت وکړي، نو دهغه په مخ کې به دسیند په غاړه دغشیو ویشتونکو او پیلانو نه ماتیدونکی دیوال دریدلی وی او که هغه همت وبایلی او بیرته وګرځي، بیا به هم بری زموږ وي، ددوی بیرته ستنیدل به زموږ په هیواد کې په خلکو کې نوی ولولې راوپاروی ذ ترلوچن پال دډاډ یو سبب داو چې سلطان محمود به ترسیندپورې وتلو دمخه - هغوی درارسیدو انتظار کوي. له ترلوچن پال سره نژدې شل زره تنه پوځ او درې سوه پیلان وو، په هغو دوی تر ډیرو ورځوله سیند څخه د سلطان دپوځ دپورې وتلو مخه نیولی شوای.

سلطان محمود پریوه سپین آس سپور ؤ او د رهت د سیند پرغاړه د یوې غونډۍ پر سر دریدلې و او شاوخوا یې په ځیر ځیر کتل،له غونډۍ څخه لاندې دده سپاهیانو خپل صفونه برابرول، څو تنه افسران او سپاهیان دغونډۍ له سرڅخه تر لاندې پوځ پورې ښې او کیڼ لورې ته په لنډه لنډه فاصله کې دریدلې وو او د سلطان فرمان به یې لښکر ته رساوه، سلطان به نژدې دریدلي کوم سالار ته امر وکړ او دسترګو په رپ کې به دغه امر دپوځ ښې یا کیڼ اویا دشا ډلګۍ ته ورسید. بیا به ناڅاپه دډیرو صفونو ترتیب بدل شو. اته زره سربښندویان د سیند دتوپاني څپو سره د لوبیدو لپاره د خپل لښکر د امیر اشارې ته منتظر وو.

د ترلوچن پال د پوځ سپاره به کله کله له خپل پړاوه راووتل، دسیند په بله غاړه به یې د سلطان لښکرو ته د مقابلې ټټر وواهه، هغوی ته به یې بلنه ورکړه چې په سیند کې ورپورې وزی او بیا به بیرته په ځنګل کې ورك شول.

د سلطان پرشونډو یوې پیکه موسکا خپلو سربښندویانو ته د برې زیرې ورکاوه، د هغه په ځیره کې داډ ؤ دیوه سمندر په ځیر سکون اوډاډ، چې غرنی ځروبی او له شور او زوږه ډك خوړونه په خپله سینه کې ورسره واخلی او چوپ روان وي.

له تیرو دیرشو کلونو څخه را په دې خوا هغه دډیرو غرونو د لوړوالي اوډیرو سیندونو د ژوروالي او ډیرو دښتو دپراخۍ په وړاندې دانسان نه ماتیدونکی اراده او همت څرګند کړې ؤ. په پنځوس کلنۍ کې دهغه ځیره دسمندر دهغه کمره په ځیر وه چې بې شمیره څپې ورسره لګیدلې وې، خو په سترګو کې یې تر اوسه پورې دشاهین دګرندی والی او د زمری هیبت ؤ.

ترلوچن پال ته دا معلومه نه وه چې غواړۍ هغه پوځ د سیند څخه پورې ایسار کړی چې هر سپاهي یې دا اراده کړې ده چې راتلونکی شپه به د سیند په پورې غاړه تیروي.

سلطان خپل یوه افسر ته وویل: موږ باید د ماسپښین لمنځونه د سیند په پورې غاړه ادا کړو، او بیا د سترګو په رپ کې دغه الفاظ دلښکر دهر افسر او سپاهي تر غوږه ورسیدل.

*****

دترکمنو دډلې اته تنه سر تیري بیله دی چې د حملې لپاره د سلطان دحکم انتظار وکړي، په مشکونو سپاره شول او دسیند ګرداب ته ورسیدل. د دښمن یوې ډلې چې په بله غاړه دښار لپاره ګومارل شوې وه پر هغوی د غیشو باران وکړ، سلطان چې څومره د زړورتیا قدر کاوه، هومره دحکم څخه په غاړه غړولو کې سخت و.

خو په دې مهال هغه دغیر معمولي حوصلې څخه کار واخست خپلو شاوخوا افسرانو ته یې وکتل او په لوړ غږ یې وویل: وړاندې ولاړ شئ! دسترګو په رپ کې ځینې پوځیان له مشکونو سره او ځینې نور پر آسونو سپاره پر سیند ورګډ شول، سلطان هم له غونډۍ څخه راکوز شو اوآس یې سیند ته ور وغورځاوه.

اته تنه سرتیري چې په مشکونوله نورو څخه مخکې شوې وو ددښمن دغیشو تردم لاندې راغلل، خو ناڅاپه دوه سپاره چې ظاهراً دهندی پوځ سپاهیان ښکاریدل، له یوې وړوکې غونډۍ څخه راښکاره شول، هغوی په سیند کې د ورتلونکو تُرکمنو سپاهیانو پر ځای پر غیشې ویشتونکو حمله وکړه او پنځه تنه یې ووژل، پاتې نور یې په ډیره وار خطایی وتښتیدل. دهندی سپرو څو نورې ډلې چې د سیند او پړاو تر منځ تیت او پرك وې وړاندې راغلې، خو له سیند څخه دتیریدونکو سپاهیانو جرئت او همت وویرول او له مقابلې پرته په شا ولاړل.

اتو تُرکمن ځوانانو چې له سیند څخه پورې وتل، دخپلو هندی ملاتړ کوونکو په شاو خوا راټول شول، له هغوی څخه یوه له خپل سره د پوستکي خولۍ راواخسته یوه سپاره ته یې ونیوه او په ماته ګوډه فارسی او هندی یې وویل: موږ نه پوهیږو چې تاسو څوك یاست، خوستاسو مننه کوو، زه ویریږم چې زموږ ملګري به تاسو ونه پیژني ځکه خو د خپلو پګړیو پرځای دغه خولۍ پر سر کړه!

یوه بل تُرکمن دهغه په تقلید خپله خولۍ دوهم سپاره ته ورکړه.

هغه دواړه رنبیر او رام نات وو، دترکمنو خولۍ یې چې پر سر کړې، له سیند څخه پورې وتونکې پوځ ته یې کتل. رام نات خپل ملګري ته وویل: په بګوان سوګند دا انسانان نه دي. ته نن نه وروسته که ماته څوك ووایی

چې يو لښکر د سيند پر مخ په منډه بل هيواد ته تير شو، نو زه به تعجب ونه کړم.

د سيند پر غاړه په ګڼ ځنګله کې دآسونو شپږسنهار د پيلانو کريږو او دانسانانو کوکارو داسې ښودله چې د ترلوچن پال ټول لښکر ددغه نه اټکل کيدونکې وضعې سره د مقابلې لپاره خوځيدلی دی، خو په دې ځنډ کې دسلطان دلښکر ډيرې ډلګۍ له سيند څخه پورې وتلې وې.

رنبير له شانه نژدې د ونو له شا څخه دپنځو پيلانو يوه ډله وليدله چې راغلل، دپيلانو مخ درنبير ښي لاس ته د سپاهيانو هغه ډله وه چې له سيند څخه راپورې وتلو وروسته يې تراوسه پورې د پښوټينګولو فرصت نه و ترلاسه کړی، ځينې سپاهيان يوې او بلې خواته سره تيت شول او ځينو دسيند پر څنډه دډبرو ترشا سنګر ونيوه او په پيلانو يې غشې اورول پيل کړل. دوه پيلان وويريدل او بيرته شا ته وګرځيدل اودشا څخه ورپسې غيشې ويشتونکې يې تر پښو لاندې غوبل کړل او تير شول، خو درې پيلان همدغسې په مخ روان وو. يو پيل دډبرو ترشا پټو سپاهيانو ته نژدې ورسيد. څو سپاهيان په شا ولاړل او په سيند کې يې ځانونه وغورځول، او نور يوې او بلې خواته وتښتيدل، خو درې کسان چې له ټولو څخه مخکې وو له خپلو ځايونو ونه خوځيدل. هغوی په غيشو يو پيل زخمی کړ چې هغه په غوسه شو خړتوم يې اوچت کړ او رمباړې يې پيل کړې. يو تن ناڅاپه دډبرو له شا نه راووت اوتوره يې وکښله او دپيل په مخ کې ودريد. رنبير چې دهغه وژل کيدل حتمي وبلل ناڅاپه يې نيزه اوچته کړه او آس يې پونده کړ، دهغه نيزه دپيل په خړتوم کې ننوته او بنده شوه، پيل يوه زړه بوږنوونکې کريږه وکړه او پر رنبير يې حمله وکړه، رنبير يوې خواته د آس دمخ اړولو هڅه وکړه، خو واخطا آس په دوو پښو ودريد او بيا وغورځيد، رنبير يوې خواته ورغړيد او دآس نه لاندې کيدو څخه وژغورل شو، خو هغه لا راجګ شوې او سنبال شوې نه و چې بيا دپيل تر حملې لاندې راغی. رام نات غوښتل دهغه د ژغورنې لپاره حمله وکړي، خو دده نه وړاندې يوه بل سپاهي دتورې په ګوزار دپيل خړتوم ترې غوڅ کړ. بيا د رام نات نيزه هم دهغه پر سترګه وربرابره شوه چې بيرته وګرځيد او وتښتيد، په دې ځنډ کې ترکمن سپاهيان ور وړاندې شول او ددوو پاتې پيلانو مخونه

یې اړولې وو.

دترلوچن پال په پوځ کې نژدې درې سوه پیلان وو، خو تر څو هغوی جګړې ته چمتو کیدل او پوځ یې سنبالاوه، دسلطان پوځ له سیند څخه پورې وتلې و، دپیلانو تیت او پرك ډلې په ټول پوځ کې کرځیدې او هغوی ددښمن پرځای، پخپله ددوی په پوځ کې تباهی ګډه کړې وه.

دسلطان پوځ د سترګو په رپ کې په پوره نظم پر دښمن حمله ور وړه، دسلطان تر قوماندې لاندې د پښتنو اوترکانو د سپرو څو ټولی دسیلۍ دتوندې څپې په څیر د دښمن دپوځ په منځ کې تیر شول اوشاته یې ورسیدل. له دې سره سم پاتې پوځ د ترلوچن پال دپوځونو په ښی او کیڼ اړخ ورپریوتل، د سلطان دپوځ هندی ټولې د شپیتو پیلانو دیوه کتار مخې ته راغلل، دهر پیل په هودج (کجاوه) کې دوه دوه تنه غشې ویشتونکي ناست وو چې بې دریغه غشې یې اورول، رنبیر او رام نات دسلطان دپوځ هندی ټولیو کې شامل شوې وو، د پیلانو کتار چې دهغو ټولیو په لوری ور روان و، دومره منظم ؤ چې له مخې نه په هغوی حمله کول اودهغوی مخه اړول له امکان څخه لرې وو.

هندی ټولي د غشو ویشتو په حال کې د سیند په لوری په شاتلې. دهغو قوماندان امر وکړ چې ښي لوری ته ځانونه ورټول کړی اودسیند له غاړې لرې شي. پیل وانو چې هغوی ولیدل هغوی هم غوښتل چې پیلان همغسې ورپسې کاږه کړي، خو دهندی ټولیو سالار ناڅاپه په یوه واړه چکر ځانونه کیڼ لوریو ته ورسول او د پیلانو ترشا په راروانو پوځونو یې حمله وکړه چې له کوم کلك مقاومت پرته یې هغوی تیت پرك کړل. له هغې وروسته هندی ټولیو له درې لوری پیلان دسیند په لور ورټیل وهل، رنبیر چې دهغوی سالار ته وکتل، زړه یې له خوښیو په ټوپونو شو، هغه عبدالواحد و، رنبیر آس پونده کړ او عبدالواحد ته نژدې ورغی، دهغه په زغره کې نښتی غشی یې ویوست چې دهغه پام یې ور واړاوه.

عبدالواحد موسکی شو او ویې ویل:

زما دوسته، مالیدلی یې.

دجګړې د ډګر په نورو برخو کې هم د ترلوچن پال پوځ ګډوډ شوی او تیت

پرك شوې و، ترلوچن پال له تېي کيدو وروسته وتښتيد او د سلطان څو ډلګيو دهغه پړاو ونيو، په دې جګړه کې غنيمت شوې پيلان دوه سوه اويا وو.

*****

لږ ځنډ وروسته دسلطان پوځ د سيند پرغاړه دماسپښين لمونځ ادا کاوه اورنبير او رام نات لږ لرې تر يوې ونې لاندې ناست وو او يو له بل سره غږېدل، عبدالواحد چې له لمانځه نه وزګار شو دوی ته نژدې ورغی او کيناست ، رنبير، رام نات ته هغه وروپيژاند اوبيا يې د عبدالواحد د پوښتنو په ځواب کې په لنډ ډول خپل او دملګری داستان ورته تير کړ.

عبدالواحد له رنبير نه څو نورې پوښتنې هم وکړې بيا يې په لاس ديوه بالښت په اندازه ځمکه پاکه کړه او پر هغو يې دخنجر په څوکه کرښې کش کړې او ويې ويل:

دا د قنوج نخچه ده تاسو راته ووايئ چې کلی مو چيرته دی؟

رنبير په يوه ځای ګوته کيښودله او ويې ويل: تقريباً دلته!

عبدالواحد وويل: دا ځای به زموږ له لارې څخه ډير لرې نه وي، که نن مابښام ماته دا فرصت برابرشو، چې دښاغلي سلطان په حضور مشرف شم، نو امکان لري چې له ويده کيدو دمخه کوم ښه خبر درته واوروم. سمدستي تاسو ډاډه اوسئ چې که اوس نه وي، نو ددې عملياتو له پای ته رسيدو وروسته به خامخا ستاسو کلي ته ولاړ شو.

رنبير ته دعبدالواحد د خيرې اخلاص دهغه تر الفاظو زيات اغيزمن و.

عبدالواحد رام نات ته وکتل او ويې پوښتل:

امکان لری چې محترم سلطان تا هم خپل حضور ته ور وغواړی او د ګواليار، کالنجر او قنوج د پوځی ځواك په باب درڅخه پوښتنې وکړې، که تاته دکومې پوښتنې ځواب دخپل ضمير خلاف ښکاري ، نو ځواب مه ورکوه، تا نه مجبوروي چې خامخا ځواب ورکړي، خو غلط ځواب مه ورکوه، ځکه چې دسلطان معلومات به ستا څخه خامخا زيات وي. زه ددې لپاره دا درته وايم چې ته د رنبير دوست يې ،رام نات وويل:

د رنبير د دوست په حيث زه هم ستاسو په کيښتۍ کې سپور شوم، خو زه ويريږم چې سلطان زما په رښتيا ويلو خپه نه شي، فرض کړی که زه ووايم چې

يوازې د کالنجر راجه ستاسو دهر سپاهي په مقابل کې لس تنه سپاهيان ډګر ته راوستلی شي او که سلطان له قنوج څخه وروسته کالنجر لورته مخه کوي، نو دهغه هر ګام به د فتحې پر ځای، دتباهۍ په لور وي، نوددې ملاقات څخه وروسته به ماته څومره دژوندي پاتې کيدو اجازه راکړې؟

عبدالواحد موسکی شو ويې ويل:

په دې اړه ته انديښنه مه کوه، ما وويل چې د سلطان معلومات به ستا ترمعلوماتو زيات وي، د يوه پر لس نسبت سلطان نشي پريشان کولی، بازچې يو ځل الوت ته وزرونه وغوړوي ، نو هغه بيا دهيليو او کوترو له شمير څخه نه ويريږي. وبخښئ، زه هندي پوځيان سپك نه ګڼم، زه د راجپوت نوابزاده ګانو پر ميړانه اعتراف کوم، خو زموږ دبري راز داصولو برلاسی دي، چې د زمانې پر ټولو اصولو بر دي، موږ تر خپلو تورواودخپلو متو په ځواك زيات دخپلو ضميرونو په پاکوالی او روښانتيا باوري يو او د بريو ضامن يې ګڼو. زموږ د ځواك سرچينه اسلام دي، ترڅو زموږ هدف زموږ له نظره پټ نه شي زموږ هرګام به د بری په لور وي، کوم خلك چې پرون زموږ په مخه کې ولاړ وو نن زموږ تر بيرغ لاندې جګړه کوي، څوك ويلی شي چې سبا ته به د قنوج، کالنجر او ګواليار سرتيري زموږ ملګري نه وي؟

د عبدالواحد دخبرو اترو په وخت کې د پوځ څو تنه افسران پر دوی شاوخوا راټول شول، يوه ترکی جنرال له څو افسرانو سره خبرې کولې او ددوی خوا ته ورغلل چې عبدالواحد يې وليد ، ګړندی دهغه لور ته ورغی، يوه منصبدار دهغه پام دجنرال لور ته ور واړاوه. او هغه جګ شو په خپل ځای ودريد.

تُرکی جنرال له څه مقدمې پرته وويل:

زه دې له څنډه لټون کوم،ماته معلومه شوې ده چې هغه دوه سپاره چې زموږ اته تنه سرتيرې يې د سيند څخه تر تيريدو وروسته د دښمن د غيشو ويشتونکو څخه وژغورل هندوان وو، يوه ځوان زه دپيل په پښو کې دغوبل کيدو څخه وژغورلم، ښايي هغوی تاته معلوم وي، زه غواړم مننه ترې وکړم، بيا يې ناڅاپه پر رنبير سترګې ونښتې او ويې ويل:

که زه غلط شوې نه يم هغه ته وې؟

تُرکی جنرال د رنبير ځواب ته ونه کتل اولاس يې وروړاندې کړ او له تاوده

روغبړ وروسته يې رام نات ته وکتل ويې ويل:
ښه دا ستا ملګري دي!
بيا يې عبدالواحد ته وکتل ويې ويل: ماته نه وه معلومه چې تادغه ځوانان زموږ څخه وړاندې له سيند څخه پورې غاړې ته را استولي دي.
عبدالواحد ځواب ورکړ:
دوی زما دټوليو نه دي، دوی يو د قنوج اوسيدونکی دی او بل له ګواليار څخه راغلی دی ،حالاتو هغوی زموږ ملګري کړي دي.
بيا خو زه ددوی څخه زياته مننه کوم. دا يې وويل او جنرال رنبير او رام نات ته بيا لاس ورکړ او بيا د خپلې خيمې په لور روان شو.
عبدالواحد دوی ته وويل: اوس بيرته راځم او بيا ګړندی ورغی له ترکی جنرال سره ملګری شو.

*****

سبا سهار ته رام نات او رنبير د سلطان دخيمې په مخکې ولاړ وو، عبدالواحد دشپې دوی ته ويلې وو چې د سهار له لمانځه يې وروسته دسترو منصبدارانو غونډه را بللې ده او چې له هغوی څخه وزګار شی بيا به له تاسو سره ګوری . رنبير او رام نات تر ځنډه بهر ولاړ وو، بالآخره داميرانو غونډه پای ته ورسيده، او هغوی د سلطان له خيمې څخه ووتل او خپلو خپلو خيمو خواته روان شول . يو افسر چې له خيمې څخه را ووت. نيغ رنبير او رام نات دوی ته ورغی او ورته ويې ويل: لوی سلطان به اوس تاسو ليدو ته ور وغواړي، عبدالواحد تراوسه دننه په خيمه کې دي.
دا هماغه ترکي جنرال و چې يوه ورځ وړاندې يې رنبير اورام نات ته د دوستۍ لپاره لاس ور اوږد کړی و، رنبير لههغه سره خبرې کولې چې عبدالواحد له خيمې څخه بهر راووت او نژدې ورغی ويې ويل: راځئ!
رنبير او رام نات په عبدالواحد پسې خيمې ته ننوتل،سلطان دخيمې په مينځ کې ولاړ و، دهغه ښي خواته په قالينه يو کاتب ناست و څه يې ليکل، رنبير او رام نات دهندوانو له رواج سره سم لاس په نامه ودريدل او ددرناوی مراتب يې ادا کړل اوبيا ځوړند سرونه ودريدل، عبدالواحد په فارسی ژبه وويل:عالی جنابه! دا رنبير او هغه رام نات دی، ما ددوی دواړو په باب په

حضور کې عرض کړی و.
سلطان رنبیر ته اشاره وکړه ویې ویل:
دا همغه ځوان دی چې زموږ سره بندی و؟
- هوکی عالی جنابه!
عبدالواحد ځواب ورکړ.
بیا یې زیاته کړه: دبند په وخت کې یې فارسی ژبه زده کړې ده.
سلطان نیغ رنبیر مخاطب کړ ویې ویل: ځوانه! ماستا کیسه اوریدلې ده او ستا د خور لټون موږ په خپله ذمه واری کې شامل کړ.
رنبیر دمننې تر احساساتو لاندې سلطان ته وکتل، بیا یې سر ښکته واچاوه او ویې ویل:
جنابه! زما همدا تمه وه.
سلطان بیا عبدالواحد ته وکتل او ویې ویل:
عبدالواحده! که ستا باور وی چې زر به دې له خپل کار څخه ځان وزګار کړی او له موږ سره به یو ځای شې. نو همدا اوس روان شه! پاتې پوځ به هم را ورسیږی او زه به بیله ځنډه د قنوج په لور مخه وکړم.
عبدالواحد ځواب ورکړ: جنابه! تاسو به ما په لار کې منتظر وګوری!
سلطان رام نات ته مخ واړاوه ترې ویې پوښتل:
زه ستا له پاره څه کولی شم؟
د رام نات پر چوپتیا عبدالواحد د ترجمان ذمه واری ترسره کړه ویې ویل:
عالی جنابه! دې دلته تر راتلو دمخه دګوالیار د راجه په پوځ کې سرتیرې و.
پلار یې دسومنات پالونکیو وژلی دی او ده یو پنډت وژلی دی، او ددې هیواد هر هندو یې د ځان دښمن کړی دی.
دسومنات دنامه په اوریدو سلطان، رام نات ته په مینه وکتل او بیا یې ترې وپوښتل :
-تا د سومنات درمسال لیدلی دی ؟
رام نات ځواب ورکړ: نه جنابه! زموږ کلی په ګوالیار کې د سومنات دجایداد برخه دی. د سومنات پالونکیو زما پلار د قلنګ نه ورکولو په ګناه وژلی دی.

سلطان وویل: ما اوریدلی دی چې د نورو ریاستونو واکمنو هم زیاتې سیمې سومنات ته وربخښلې دي.

- هوکی جناب عالي! سومنات یو درمسال نه دي، بلکې یوه پاچاهی ده، دهندوستان ترټولو لویه پاچاهي، د سومنات مذهبي مشر دهندوستان له هر واکمن څخه خراج اخلي، واکمن او ټولواکان دهغه په پښو کې سرونه ږدي.

سلطان وپوښتل: ددې سبب څه دی؟

- ددې سبب د سومنات د پالونکیو دولت او زور دی، اوموږ ته یې ددولت او زور عبادت او پالنه را زده کړې ده.

سلطان وموسکل ویې ویل: ما اوریدلی دی چې د سومنات پالونکی دا وایی چې زما دبریو سبب دادی چې د نورو درمسالونو له بُتانو او دهغوی له پالونکیو څخه د سومنات بوت خپه دی؟

- هوکی جناب عالي! هغوی دا هم وایی چې که ته د سومنات په لور په بدنیت او اراده ور وړاندې شي، نو ستا هرګام به د بري او فتحې پر ځای دتباهی پر لور وي.

- ما دا هم اوریدلی دی چې دا راته بلنه ده، خو آیا د سومنات دپالونکیو دغه پر ځان اعتماد ددې لپاره نه دی چې هغوی له مانه ډیر لرې دي؟

رام نات ځواب ورکړ: عالی جنابه! که تاسو نه خپه کیږي،نو زه خو وایم چې ددوی ددې اعتماد سبب یوازې دانه دی، که دوی یوازې دخپل ځواك په متهو سومنات نه فتحه کیدونکی ګڼي، نو دا ددوی ساده ګی او احمق توب مه ګڼی، دهغوی پردې باور دی چې دسومنات د بوت دساتنې لپاره به د ګنګا او جمنا له دښتو څخه د جنوبي هندوستان تر وروستی ځنډې پورې ټول راجه ګان او سرداران راټول شي. د سومنات د دیوتا په سبب دفتحې امید په لکونو انسانان ددرمسال تردیوالونو لاندې سر ورکولو ته تیار کړي.

سلطان وویل: او هغه ورځ به د کانو پربتانو دانسان داعتماد وروستی ورځ وي، بیا به د سومنات له کنډوالو څخه هغه انسانیت راښکاره شي چې خپل رښتینی معبود به پیژني. سومنات دکفر د تیارو وروستی هستوګنځای دی او دتیارو په غیږه کې سترګې غړوونکی به خامخا دهغه د ساتنې لپاره راشی خو هغوی زموږ لاره نشی بندولی، زه دهغې ورځې لپاره ژوندی پاتې

کیدل غوارم او ښایي هغه ورځ ډېره لرې نه وي . سلطان ظاهراً رام نات ته مخاطب و، خو داسې ښکارېده چې هغه له ځانه سره غږېږي. عبدالواحد په دې مرحله کې د ژباړن د ذمه وارۍ ادا کولو اړتیا حس نه کړه.

- سومنات د بُتانو وروستی هستوګنځای ،سومنات دتیارو وروستی پړاو.

سلطان له لږ ځنډ وروسته دغه الفاظ تکرار کړل او بیا یې عبدالواحد ته مخ واړاوه ورته ویې ویل:

عبدالواحده ته تلای شې! او ګوره تر څو دغه ځوانان زموږ میلمانه دي، دهغه پوره خیال کوه، له خیمې چې راووتل رنبیر له عبدالواحد څخه وپوښتل: ته د کوم مهم کار لپارهٔ درومې؟

هغه ځواب ورکړ: تاته معلومه نه ده؟

- ستا مطلب دی چې ته....

- هوکې!عبدالواحد هغه پر اوږه وټپاوه او بیا یې زیاته کړه موږ ستاسو کلي ته ځو.

# د رنبیر بیرته راستیندل

د لمر ختو سره سم شپنو خپلې رمې او بزګرانو خپل کار سامان په فصلونو کې پرېښودل او کلي خواته یې منډې وهلې. هغوی دا خبر اوراوه چې د ځنګل له لوري یو پوځ را روان دی، لږ ځنډ وروسته رنبیر او عبدالواحد له پنځه سوه سپاهیانو سره کلي ته ننوتل، د جي کرشن پوځیانو د خرپ پرځای، ترپ غوره وباله او وتښتیدل او رنبیر پر ته له یو ځاځکي وینو تویولو خپل کلی ونیو، دکلي شپانه او بزګران زیات وویریدل او دخپلو کورونو دروازې یې ورپسې بندې کړې، ځینې نور په یوه او بله خوا تښتیدل. یرغل راوړونکو څو تنه ونیول او رنبیر ته یې راوستل، په هغوی کې ځینو رنبیر وپیژاند. رنبیر هغوی ته تسلي ورکړه ویې ویل: تاسو ته هیڅ خطر نشته، زما هدف دادی چې تاسو د جي کرشن له ظلم څخه وژغورم، تاسو ورشئ او نور کسان له تیښتې څخه منع کړئ.

وروسته بیا پوځ دماڼۍ په لور مخه کړه، دماڼۍ پهره داران هم زیاتره دسلطان محمود دپوځ دراتلو له آوازې سره تښتیدلي وو، څو تنه د دروازو په ساتنه ولاړ وو، خو چې حمله کوونکي پردیوال ور واوښتل او د ننه ورغلل، هغوی هم مقابله بې ګټې وبلله وسلې یې وغورځولې.

عبدالواحد پاتې پوځ ته امر وکړ چې بهر اوسي اوپخپله له رنبیر، رام نات او څو تنو نورو افسرانو سره ماڼۍ ته ننوت، هغه ویریدلیو پهره دارانو ته تسلي ورکړه ویې ویل:

دوسلې له اېښودلو سره اوس نور تاسو زموږ په پناه کې یاست. زه وعده درسره کوم چې پر تاسو به هیڅ زحمت نه وي، موږ یوازې ستاسو د سردار لټون کوو، هغه چیرته دی؟

:سردار دلته نشته، هغه له دې ځایه اته میله لرې یوه بل کلي ته تللی دی.

عبدالواحد رنبیر ته وکتل ویې ویل: ته خپل داډ حاصل کړه.
رنبیر له پهره دارڅخه وپوښتل: په کور کې دننه څو تنه دي؟
- دننه د سردار پر میرمن او لور برسیره یوازې ددوی نوکرانې دی او بس.
رنبیر وویل: زه اوس بیرته راځم او بیا د هستوګنې دکوټو لور ته روان شو.
عبدالواحد رام نات او درې نوروسپاهیانو ته په لاس اشاره وکړه، هغوی
هم په رنبیر پسې ورغلل.

دلاندینې پوړ ټولې خونې تشې وې، د پاسنې پوړ زینو دروازه تړلې وه،
رنبیر څو ځلې دروازې ته ډیکه ورکړه او چیغې یې وکړې، خو چې هیڅ ځواب
یې وانهورید، خپلو ملګریو ته یې د دروازې دماتولو امر وکړ، څلورو کسانو
چې دروازې پر پله زور ور وړ، ناڅاپه دننه زنځیر وشلید، او پله په یوه درز
خلاصه شوه، رنبیر په منډه پر زینو پاس وخوت، رام نات او درې نور کسان
هم ورپسې وو، دپاسنې پوړ د یوه کونج د کوټې دروازه دننه لخوا بنده وه،
رنبیر په زور دروازه وټکوله او ویې ویل: دروازه خلاصه کړئ، که نه نو موږ به
یې ماته کړو!

ناڅاپه دننه د ښځو چیغې اوفریادونه واوریدل شول، یوې ښځې په زوره
چیغې کړې.

نرملا دبګوان له پاره داسې مه کوه! را ویې نیسی تاسو ولې ورته ګورئ!
د بلې ښځې غږونه اوچت شول: نه نه! هغوی یوازې زما مړی ته لاس
وروړی شي. ما پریږدئ، ما پریږدئ چې مړه شم!
: نرملا لوری را په سدشه، دبګوان په خاطر داسې مه کوه!
د رنبیر په اشاره دهغه ملګریو دروازې ته ډیکه ورکړه او ماته یې کړه.
رنبیر په منډه دننه ورغی، هغه دښځو د چیغو او فریاد پر سبب زر وپوهیده،
یوې پیغلې نجلۍ له کړکۍ څخه لاندې دځان غورځولو هڅه کوله اودرې نورو
هغه تر مټو را نیولې وه او دننه یې را کشوله. رنبیر چې دننه ورغی، هغې
نجلۍ یو لاس خلاص کړ اود بل دخلاصولو هڅه یې کوله. رنبیر په منډه
ورغی نجلۍ یې تر مټ ونیوه اودننه یې را کش کړه، د ښځو چیغې اوفریاد
ناڅاپه چوپ شو، پیغله نجلۍ څو شیبې دځان خلاصولو له هڅو وروسته د
رنبیر په اوسپنیزو مټو کې بې وسه شوه.

رنبیر وویل: ته په هر انسان د جی کرشن گومان کولو اشتباه مه کوه، ددې کور په څلور دیوالې کې ښځو ته هیڅ خطر نشته.
نجلۍ سر پورته کړ او سترګې یې د رنبیر په ځیره ښځې پاتې شوې په خپ غږ یې وویل:
ته! ... رنبیر!
رنبیر بیا هغه خوشې کړه او ځواب یې ورکړ:
هوکې زه!
عمر خوړلې ښځه وړاندې ورغله ویې ویل: د بګوان په روی پر موږ ورحمیږه! زما لور تاته هیڅ تاوان نه دی رسولی
که مو نشی بخښلی،نو په خپل لاس مو ووژنه، خو پردیو ته مو په لاس مه ورکوه!
-تاسو زما په پناه کې یاست! زه وعده کوم چې تاسو ته به هیڅ خطر نه وي، د کور دې برخې ته به ستاسو له اجازې پرته هیڅوک نه راځي، رنبیر چې دا وویل له کوټې څخه ووت.

*****

د رهت په جګړه کې د ترلوچن پال ماته او دقنوج په لور د سلطان محمود د وړاندې تګ خبر دهیوادپه ساره او اوږدو کې خپور شوې و.
درنبیر دوی له کلي څخه کوم اته، لس میله لرې دسیمې ټول سرداران دمذهبی پیشوا په کلي کې راټول شول او د ځانونو د ساتنې او راجه سره د مرستې په باب یې بحث سره کاوه.
د سردارانو دغه غونډه د یوه لوی درمسال په مخکې په یوه میدان کې وه، مذهبی مشر پر دې خبره ټینګار کاوه چې هر سردار دې خپل پوځ په درې برخو وویشي، یوه برخه دی دسیمې د ساتنې لپاره پریږدي، یوه برخه دې ددې درمسال د ساتنې لپاره راواستوی او دپاتې سپاهیانو څخه دې یو پوځ سمدستی راجه ته د مرستې لپاره واستول شي.
جی کرشن ددې وړاندیز مخالفت وکړ ویې ویل چې موږ باید خپل ځواك دغسې سره تیت پرك نه کړو،موږ باید دخپل ټول پوځ دریمه برخه سمدستی راجه ته واستوو، که سرحدونه خوندی وي، نو دغه درمسال اوزموږ کلیو ته

هیڅ خطر نشته، که ددښمن څو ډلې له سرحده راتیرې شی اودې لورې ته راووتی بیا به موږ په څو برخو وویشل شو او دهغوی لاره به ونه نړلی شي، څرنګه چې دښمن یوازې له شمال څخه راتلای شي، نو ځکه خو پاتې ټول ځواك باید پر سرحد راټول کړو.

یو بوډا سردار جګ شو ویې ویل:

ته دغه مشوره ددې لپاره ورکوی چې ستا کلی سرحد ته ډیر نژدې دي،ستا دا هیله ده چې موږ باید نه ددې درمسال غم وخورو او نه دخپلو کورونو، بلکې هرڅه پرېږدو اوستاسو دکلی دساتنې لپاره راټول شو.

موږ ټول پردې پوهیږو چې د دښمن ترټولو لومړی هدف دباری او قنوج نیول دي، او زموږ سیمه له هغې لارې څخه ډیره لرې ده، د قنوج او باری د ژغورنې لپاره دا ضروری ده چې موږ دپوځ ټول سپاهیان راجه ته ورواستوو. که زموږ راجه روغ و، نو زموږ کورونو ته هیڅ خطر نشته، که هغه ماته وخوړه، نوموږبه هر څه وبایلو. ځکه خو زه دا وړاندیز کوم چې موږ باید له خپلو ټولو پوځونو سره دراجه مرستې ته ورشو.

چې کرشن له غوسې څخه په ریږدیدلی لهجه ځواب ورکړ: په تاسو کې هیڅوك هم ماته د بې همتۍ پیغور نشی راکولې او نه دا دعوه کولی شی چې هغوی له مانه زیات د راجه وفادار دي، زما هدف یوازې داو چې موږ باید دخپل ټول پوځ داستولو څخه دمخه باید دا معلومه کړو چې ددښمن دپوځ مخه کوم لوری ده، کله چې دا راته معلومه شي، چې د دښمن لښکر خامخا باری او قنوج ته روان دی اودهغه د پوځ دکومې برخې هم دی لورې ته د راتلو امکان نشته، نو موږ به د پاتې سپاهیانو مخه هم د هغوی په لور ور واړوو، زما باور دی چې که دښمن دا ځل هغو ښارونو ته مخه وکړه ، نو زموږ راجه به یوازې نه وي، د کالنجر ، ګوالیار او شاوخوا ټولو راجه ګانو پوځ به دهغه مرستې ته رسیدلې وي.

عمر خوړلي سردار جګ شو ځواب یې ورکړ: مګر موږ څو ورځې انتظار ولې وکړو؟

تاسو ولې داسې فکر کوئ چې ددښمن د پوځ یوه برخه ښایی دې لوری ته راشي، ددې سبب خو به دا نه وی چې د سردار موهن چند د زوی او دهغه دنه

لیدل شوی پوځ ویره تر اوسه ستا په زړه خپره ده؟
څو لویو لویو سردارانو پر دې خبره وخندل. خو په حاضرو کسانو کې زیات داسې وو چې د یوې کرسندی خندا په بدل کې یې د ټول عمر لپاره د جی کرشن له ملامتی څخه ځانونه ساتل، په داسو حالاتو کې جی کرشن د دغسې ټوکې د زغملو سره روږدی نه و، خو اوس وضعه بدله وه، هغه سره له دې چې ډیر بیړنی "عجول" و، خو چاته د کنځلوله ځواب ورکولو څخه د مخه دهغه دقوت په اټکل عادت شوی و او دغه بوډا سردار چې په ډك مجلس کې دده د مسخره کولو هڅه کړې وه په ټوله سیمه کې دډیر نفوذ او رسوخ څښتن و.
جی کرشن له ډیرې حوصلې څخه کار واخست وې ویل: تاسو په عمر کې له مانه مشریاست، ځکه ستا دهرې کنځلې حوصله لرم، خو زه دا باور درکوم چې کله تاسو د خپل ټول پوځ سره د راجه مرستې ته روان شي، نو په هر پړاو کې به ما ووینې.
ناڅاپه له کومې خوا دڅو آسونو دپښو ترپهار اوچت شو او په مجلس کې شریکو کسانو یوې اوبلې خواته کتل.
لږ ځنډ وروسته د درمسال په مخ کې اته تنه سپاره راښکاره شول، جی کرشن چې هغوی ولیدل وې پیژندل، داټول دده نوکران وو.
پیاری لال له ټولو وړاندې و. هغه آس ودراوه اوخپل سردار ته یې وکتل چیغې یې کړې:
باداره! ټکه راپریوته! دمسلمانانو پوځ زموږ کلی ونیو او رنبیر هم ورسره دی. د مجلس حاضر کسان ترڅو شیبو پورې هك پك وو او یو بل ته یې کتل، بیا یې ورو ورو ژبې وخوځیدې، څو کسان جګ شول پیاری لال اودهغه په ملګرو ورټول شول.
هغوی کله راغلل، څومره دي؟ تاسو پخپلو سترګو هغوی ولیدل، چا به له تاسو سره ټوکه کړې وي، دا څنګه کیدای شي، دا امکان نه لري؟!
او پیاری لال خپلو ملګرو ته دڅه ویلو دفرصت پرځای، په زوره زوره چیغې وهلې: تاسو ټول په ما ملنډې وهی، اوس هغوی راغلل، هغوی به اوس څوك ژوندي پرې نږدي، د هغوی د پوځ شمیر هیڅ نشی کیدای.

شاوخوا ټول کلی تشی شوې دي، تر لږ ځنډ وروسته به هغوی دلته هم را ورسیږي، ددې هیواد هیڅ کونج هم له هغوی څخه خوندی نه دی.

جې کرشن حیران دریان ولاړ و، دهغه دمخ رنګ تبتیدلی و، د سترګو په رپ کې له هغه ځایه ټولو سردارانو پښې سپکې کړې، پیاری لال له خپل آس څخه پلې شو او وړاندې ورغی دجی کرشن مټ یې وځانډه او چیغه یې پرې وکړه:

باداره! ځان دې ژغوره! رنبیرله هغوی سره دی ما پخپلو سترګو هغه لیدلی دی، هغوی مانۍ ونیوله.

باداره! بیړه کوه!

*****

د ورځې په دریمه برخه کې د کلي نژدې دوه نیم سوه تنه دمانۍ په دروازه کې راټول شوې وو، دشاوخوا وړوکو کلیو خلکو هم چې د رنبیر دراتلو خبر اوریده، ډله ډله دده د مانۍ په لور را روان شول.

رنبیر چې له عبدالواحد سره دمانۍ له دروازې بهر ته راووت دهغه دپلار پخواني وفادار خدمتګار ولیدل، هغه وړاندې ورغی او پښې یې وربښکل کړې، په هغو خلکو کې هغه ځوانان هم وو چې څو میاشتې وړاندې یې د رنبیر ژوند ژغورلی و. رنبیر یو پربل پسې له هغوی سره غاړه غړې کیده، د رنبیر د پلار ځینو سر ښندویانو دا وړاندیز وکړ چې باید دشکنتلا بدل د جی کرشن له لور او میرمن څخه واخلي، خو رنبیر هغوی پر دی چوپ کړل چې د جی کرشن د ګناهونو سزا دهغه میرمن او لور ته نشی ورکول. کیدای او زه هغه څوك چې پر بې وسه تور سریو د لاس اوچتولو مشوره راکوي خپل دوستان نه بولم، هغوی زماپه پناه کې دی اوساتنه یې زما ذمه واري ده.

عبدالواحد وویل: زما دوسته! نور دلته زماکار پای ته رسیدلی دی اوبې له ځنډه نورله دې ځایه کوچ کول غواړم، لومړی مې فکر کاوه چې خپل څو کسان له تاسره پریږدم، خو اوس زه داسې احساسوم چې تاته زما د زیاتې مرستې اړتیا نشته.

زماامید دی چې دشاوخوا سرداران هم ستا په شاوخوا راټول شي، ته دوی ته ویلی شی چې ددې عملیاتو څخه له وزګاریدو وروسته به د سلطان ټول

پوځ په دې لاره تیر شي، کوم کسان چې ستا دوستان وی له هغوی سره به زمونږ چلن هم دوستانه وي، زه له رخصتیدو دمخه یو ځل بیا دا مشوره درکوم چې بخښنه او تیریدنه تر کسات غوره ده.

زه له تاسره د بیالیدو په تمه خدای پاماني کوم.

عبدالواحد رنبیر ته له لاس ورکولو وروسته رام نات ته مخ واړاوه او ویې ویل: تراوسه ستا منزل لرې دی، زه په هغو ستونزو پوهیږم چې ستا په مخکې دي، خو زه تا مایوسی ته نه پریږدم، دامید لمن کلکه کړه او دمناسب وخت راتلو انتظار کوه.

لږ ځنډ وروسته عبدالواحد او له هغه سره راغلي سپاره د جنوب په لورو خوځیدل، رنبیر اورام نات دکلیوالو په ګڼه ګوڼه کې راووتل او هغوی یې لیدل چې په ګردونو کې ورکیدل، دکلی خلکو ویل: ددې پوځ مشر خو دیوتا ښکاریدو.

*****

دعبدالواحد اټکل سهی و، څو ورځې نه وې تیرې چې د سیمې دښمنو او بزګرانو په څیر د سیمې سرداران پر رنبیر راټول شول، دغه خبر تر لرې لرې ورسید چې سلطان محمود د رنبیر ترشا ولاړ دی او چې بیرته راستنیدونکی د سلطان پوځ له دې سیمې څخه تیریږي یوازې هماغه خلک به خوندی او په امن وی چې د رنبیر په نظر د رحم وړ وي، ځکه خو درنبیر دوستی هغوی دسلطان د رحم ضمانت وبلله او ټولو دده په راتګ په خوښۍ کې له یو بل سره سیالي کوله. هر سردار به د جي کرشن پر خلاف دکرکې اظهار کاوه ځینو سردارانو رنبیر ته له راتلو څخه د مخه دخپلې وفادارۍ او اخلاص د عملي ثبوت وړاندې کولو په دود ټوندې هڅې کولې چې جی کرشن پیداکړي، هغوی د هغه دنیولو لپاره انعامونه هم اعلان کړل، پردې سربیره په ټوله سیمه کې د رنبیر د خور شکنتلا لټون هم پیل شوی و.

هغه سرداران چې د جی کرشن په دوستی کې ډیر بدنام شوي وو او له رنبیر څخه یې دښه سلوک تمه نه درلوده له سرحده واوښتل او په نورو ریاستونو کې یې پناه واخسته.

رنبیر ته چې کوم کسان راتلل، دی په ظاهراً په ورین تندې ورسره مخ

کيده، خو چې کله به له رام نات سره يوازې دخبرو فرصت ورته برابر شو، زياتره به يې ويل: رام ناته! زه پر دوی يوه هم نه تيروزم، داټول دهر راختونکی لمر پالونکي دي. زما پلار د همدغو خلکو په مخ کې ووژل شو، او چې کله په ما مصيبت راغی، نو همدغه خلك دجی کرشن دخوښی په خاطر زما په لټون کې سرگردان وو، نن دوی ټول زما دوستان دي، ددې يوازينی سبب دادی چې جی کرشن لوبه بايللې ده.

د شکنتلا په باب د رنبير ناکراري ورځ په ورځ زياتيدله ، هغه به هر سهار له ځو تنو سپرو سره ووت او په ميلونو ميلونو به يوې او بلې خواته گرځيده، په لاره کې به دکلی خلك ورسره ملگری شول، ماښام به يې ستړي ستومانه زړه ته دا تسلي ورکوله او بيرته به کور ته ستنيده چې شکنتلا د کلی له نويو حالاتو ځخه خبره شی پخپله به د کلی په لور مخه کړي، امکان لری همدا نن چې زه کور ته ورسيږم ، نو هغه به په دروازه کې زما په انتظار ولاړه وي.

خو چې په ماڼی به يې دننه پښه کيښوده زړه به يې وغورځيد ، په عام ډول به هره ورځ د سيمې درې ځلور کسه د رسوخ خاوندان دده په ميلمستون کې وو او هغوی به داسې ځانونه ښکارول چې د شکنتلا په اړه ډير انديښمن دي.

د جی کرشن دلور نرملا په باب د رنبير چلن د سيمې د هر سړی د هيلې خلاف و ، د حملې په لومړی ورځ له هغوی سره دده له ملاقات نه وروسته بيا ده دهغوی د ليدو هڅه ونه کړه، دهستوگنې کور دوهم پوړ دهغوی لپاره وقف واو له بللو پر ته هيڅ نوکر ته هم هلته د ورتلو اجازه نه وه، رنبير اورام نات دلاندې پوړ په يوه کونج کې په دوو کوټو کې اوسيدل او کوټو ته دتنگ راتگ لپاره دوی دننه دهليز پرځای بهر د برنډې خواته دروازې لاره غوره کړې وه.

د انگړ خواته ټولې دروازې معمولاً تړل شوې وې، په دې ډول رنبير له دوو کوټو ځخه پرته نور ټول محل نرملا دهغې مور او نوکرانو ته خوشی کړې و.

ميلمستون او دميلمنو کوټې د ماڼی ځخه په جلا انگړ کې دانگړ جنوبي لوری ته وې.

دکلي له نيولو ځخه اته ورځې وروسته چې يوماښام رنبير له يوې اوبلې خوا گرځيدو ، وروسته راستون شو د ماڼی په دروازه کې يې يو ملنگ وليد، رنبير چې ورنژدې شو ويی پيژاند، هغه شمبونات و. رنبير دخپل زړه په درزا د

راقابو کیدو هڅه وکړه ،پوښتنه یې وکړه:
دشکنتلا څه درك معلوم شو؟
شمبو نات په غمجن نظر ده ته وکتل او د ځواب پرځای یې سر وخوځاوه.

*****

نرملا تل له ځانه سره پردې فکر کاوه چې زما پلار چیرته دی؟ زما دمور پای به څنګه شي؟ ددې په مخکې له تیارو پرته هیڅ نه وو، کله کله به د رنبیر څیره ددې سترګو ته ودریده او دامید تتې ډیوې به یې ولیدې، د یوې ښځې د ذکاوت دحس په سبب دې د رنبیر کړه وړه دهغه د څیرې په لیدو لیدلي وو، په لومړۍ ځل چې هغه د یوه ناآشنا په بڼه ددې کوټې ته ورغلی و، نو دې د غله ګومان پرې وکړ او وویریده، خو په همغو نا اټکل شویو حالاتو کې د رنبیر بڼې او څیرې دی ته دا ډاډ ورکړ چې هغه غل نه دی، بیاچې کله د رنبیر له خبرو څخه پر دې وپوهیده چې هغه د موهن چند زوی دی، نو دهغې ډاډ په ویره بدل شو او دډیرې اندیښنې په حال کې یې پردې فکر کاوه چې دې بې خبره دی خو که ورته معلومه شی چې زما پلار دده پلار وژلی دی، نو زما سره به څه وضعه کړي، خو په هغه موقع کې یې هم چې د رنبیر څیره ولیدله دا یې محسوسوله چې دغه ځوان په ژوند کې له ډیرو پیښو سره له مخ کیدو سره بیا هم پر ښځه لاس نشی اوچتولی. رنبیر ددې په نظریو شریف اوباوقاره دښمن و. ځکه خو چې هغه کله ونیول شو،دې یې پلار ته زاری وکړې چې پرې یې ږدي، او چې هغه یې بیا د وژلو لپاره بوتلو، نو دی په خپل ژوند کې د لومړي ځل لپاره د زړه له کومې وژړل، دا دخپل پلار دیوه دښمن په مرګ خپه نه وه ، بلکې دیوه داسې سړی په مرګ خپه وه چې د لومړي ځل لپاره یې له دومره نژدې څخه لیدلی و.

له هغې وروسته چې کله دا خبره شوه چې هغه تښتیدلی ، نو دخپل پلار پر اندیښنې او ویرې برسیره دا خوشاله وه، کله چې د جی کرشن کسانو د رنبیر لټون کاوه، نو دا به دمحل په یوه کونج کې د بوت په مخکې ولاړ وه او دهغه د سلامتی دعاګانې به یې کولې.

سبا ته دې ته معلومه شوه چې ددې دعاګانې قبولې شوی دي، رنبیر خلاص شوې او وتلی و، دا پوهیده چې هغه د تل لپاره ولاړ او دې غوښتل هم

همدغسې ، خو د رنبیر یو تت غونډي تصور ددی پر زړه ځو نه لرې کیدونکی خاپونه پریښی وو، کله کله به دغه خاپونه ددې دزړه ترتل پورې ورسیدل او دې به فکر کاوه چې که هغه دموهن چند زوی نه وای اودغسې یوې پیښې دوی یوبل ته دځو شیبو لپاره سره نژدې کړې وای، نو څه به کیدل؟ بیا به یې پخپله خپل ځان ملامت کړ.

اوس دا د رنبیر رحم او کرم ته اړه وه او دغه ماڼۍ ددې لپاره دیوه پاخه جیل په څیر وه.

ددې مور به ویل چې رنبیر به د خپلې خور په بدل کې دوی تل په جیل کې وساتی ، د رنبیر به پردې خبره هم باور وی چې ستا پلار به زمونږ په خاطر خامخا ده ته راشي اودې به بیا د خپل پلار بدل واخستلی شي، خو د نرملا خیال له خپلې مور سره یو شان نه وو؟

دې منله چې دپلار لپاره یې د رنبیر په زړه کې د رحم ځای نشته، خو دی منلو ته تیاره نه وه چې د بدل په جوش کې هغه د خپل دښمن لور او میرمن هم د رحم وړ نه بولي، دی داسې احساسوله چې که رنبیر ددې دعزت وړ نه وي، نو د رحم وړ یې خامخا ګڼي.

درنبیر کړو وړو هم د نرملا خیال تاییداوه. هغه له دوو کوټو څخه پرته ټول کور هغوی ته پریښی و، دهغه نوکرانو ددوی خیال ساته اونیغ یې له دوی سره د خبرو پرځای نوکراني دروازې ته ورغوښتې او له هغوی نه به یې پوښتل چې دځه شی اړتیا خو به نه وي؟ دوی ته یې چې دخوراك ځښاك لپاره کوم شیان استول هغه به تل ددوی له اړتیا څخه زیات وو ، د ماڼۍ په یوه کوټه کې د جی کرشن دشتمنۍ صندوق کولپ ایښې و، پر هغې د چالاس هم نه ولګیدلی.

دې ټولو حالاتو نرملا ته دا احساس ورکاوه چې ددوی معامله له یوه داسې دښمن سره ده چې دډیرې غوسې په حالت کې هم دشرافت لمن له لاسه نه پریږدي، دیوې ښځې په توګه نرملا درنبیر پرعظمت اعتراف کولوته مجبوره وه

خو د جی کرشن دلور په حیث یې دخپل پلار دډیر بددښمن برۍ ښه نه ایسیده، د داسې انسان سره د نژدې کیدلو تصور هم دی نشو کولی چې ددې

دپلار په لاس دی دومره تیی شوی وي، دی غوښتل وتښتي، په گوالیار کې یې ماما اوسیده او دا پوهیده چې پلار به یې هم هلته ورغلی وي، کله کله به یې فکر کاوه چې که زه له خپلې مور سره هلته دتلو اراده ښکاره کړم، نو رنبیر ښایی زموږ د ایسارولو هڅه ونه کړي، امکان لري چې هغه دا دومره ورځی ددې لپاره دلته ساتلې وو چې زموږ پلار ورك دی او موږ دپناه ځای نه لرو.

یوه شپه دې تر ډېره چورتونه وهل سهار وختی یې یوې نوکرې ته ټوله گانه ورکړه او رنبیر ته یې واستوله ،دا هماغه گانه وه چې رنبیر له نیول کیدو څخه دمخه له نرملا سره پرېښې وه.

نوکره چې له رنبیر سره له لیدو وروسته بیرته راستنه شوه، ویې ویل:

هغه د گانې "زیور" له اخستلو څخه انکار وکړ، ویې ویل چې بخښنل شوی شی څوك بیرته نه اخلي، چې ما ډیر ټینگار وکړ، هغه له کوټې څخه ووت او ویې ویل چې د بگوان په روی مامه تنگوه!

نرملا یو ځل دا احساس کړه چې دا د رنبیر دخیالونو له نړۍ څخه په میلونومیلونو لرې ده ،دکوم چا په مخکې چې دی د خپلې کرکې ښکارول ضروری بلل، هغه ددې د وجود له منلو څخه منکر و.

د نرملا دمور وضعه تردې ډیره درحم وړ وه، هغه دخپل خاوند اودخپلې لور د راتلونکی په غم کې ویلیده، دې درنبیر څخه د ځه ښه سلوك هیله نه درلوده، رنبیر ددې په نظر کې ددې د خاوند دوینو تږی او دهندي کلتور څخه باغی او دخپل وطن دښمن و ددې وروستی هیله دا وه چې د کومو کسانو په ملاتړ رنبیر ددې پر خاوند بری موندلی و، هغوی به بالآخره د قنوج او دهغوی د گاونډیو راجه گانو په وړاندې ماتې وخوري اوددې خاوند به د قنوج دراجه په مرسته بیا پردې کلي حمله وکړی او وبه یې نیسي، ځکه خو دې سهار او ماښام بگوان او دیوتاگانو ته دمسلمانانو دماتې زارۍ او دعاگانې کولې، ورو ورو نرملا هم دخپلې مور سره په یوه خیال شوه، له خپل دین او وطن څخه دبغاوت په گناه ددې په نظر رنبیر د لویې سزا وړ و.

یوه ورځ دنرملا مور په تخت پرته وه، نرملا ته یې وویل لورې زما باور دی چې د مسلمانانو پوځ به ماته وخوري، ستا پلار به دراجه پوځ ورسره راولي خو زه بنایي د موهن چند د زوی دوروستي پای دلیدو لپاره ژوندی نه یم.

نرملا ددې پر تندی لاس کیښود ویې ویل: نه مور جانې داسې خبرې مه کوه ته به ډېر زر روغه شې.

مور یې وویل:

لورجانې! ته به داسې فکر کوی چې پلار دی مور ددښمن په واك کې پریښودو او ده بې غیرتی وکړه او وتښتید. خو ته پوهیږې چې هغه یوازې له دومره کسانو سره جګړه نشوای کولی، هغه به د مناسب وخت په انتظار وي، یوه نوکره په منډه کوټې ته ورغله او ویې ویل:

دمانۍ څخه بهر د کلي خلك راټول شوي دي او د رنبیر سپاهیان پر آسونو زینونه برابروي او بهر ته وزي د رنبیر یوه نوکر وویل چې دوی چیرته لرې روان دي.

د سیمې نور سرداران هم له خپل خپل پوځ سره له دوی سره روان دي، ما درته ویلی وو چې نن سهار د سیمې څو سرداران د رنبیر لیدو ته راغلې وو.

نرملا وویل مورې! داسې ښکاری چې بګوان ستا دعاګانې اوریدلې دي. زما باور دی چې مسلمانانو ماته خوړلې ده او رنبیر اوس غواړی چې وتښتي او کومو سردارانو چې دده دخوښولو لپاره راجه ته د مرستې لپاره دپوځ له استولو ډډه کړې وه، هغوی هم اوس د راجه دبدل له ویرې ورسره درومي.

دوهمه نوکره چې د کلی طبیب ته دنرملا د مور لپاره د دوا راوړو لپاره ورغلې وه، ساه نیولې اووارخطا ورغله او ویې ویل:

تاسو خبر یاست؟ دمسلمانانو لښکر باری ونیو اوراجه وتښتید، اوس د مسلمانانو پوځ پر کالنجر حمله کوی او رنبیر دسیمې له زیاتو سردارانو سره دهغوی مرستې ته ور روان دی.

نرملا اودهغې مور په حیرانۍ دخدمتګارې خولې ته کتل، ناڅاپه یوې

نوکرې وويل:

نرملا! نرملا پرهغې څه وشول؟

نرملا دخپلې مور مټ ونيو او ويې خوځوله ،چيغې يې کړې،موري! موري! خو له سترګو پرته دهغې دبدن په هيڅ غړي کې د ژوند نخښه نه وه، لږ ځنډ وروسته شمبونات دکلي ډاکټر راوست، هغه وويل چې پر ناروغه فلج حمله راوړې. لس ورځې وروسته چې د نرملا مور دژوند وروستۍ ساه ګانې پوره کولې دهغې سترګې دخپلې لور پر مخ ښخې وې ، دهغې په سترګو کې نرملا ته يو نه هيريدونکی پيغام و، له مرګ وروسته نرملا دمور پر سينه سر کيښود او ويل يې: موري! زه بهٔ ستا بدل واخلم، زه به ستا دښمن هيڅکله هم ونه بخښم، پر بګوان مې سوګند، پر ديوتاګانو مې سوګند!!

Bawar.net

# یو بل بری

د کالنجر واکمن راجه ګنډا پر تخت ناست و، دکالنجر دنفوذ خاوندانو پر سردارانو برسیره د ګاونډیو ریاستونو واکمن چې دده باج ورکوونکی وو ترتخت لاندې ښي اوکیڼ لور ته په دوو کتارونو کې دخپلو منصبونو په ترتیب پر کرسیو ناست وو.

دوهمه درجه سرداران اومنصبداران دکرسیو ترشا دریدلي وو، عبدالواحد او د غزنی دپوځ نور څلور تنه افسران دتخت په مخکې دریدلي وو.

راجه تر څه ځنده په چوپه خوله خپلو درباریانو ته کتل. بیا یې ناڅاپه په باوقاره انداز وویل:

زه دخپلې پریکړې له اورولو څخه دمخه غواړم چې ددښمن دسولې دشرطونو په باب ستاسو نظر اورایه معلومه کړم.

د ګاونډیو راجه ګانو په نمایندګۍ د هغوی دترجمان په توګه دګوالیار راجه ارجن جګ شو، ځواب یې ورکړ:

موږ به پردې شرطونو تر سولې مرګ غوره وبولو. دښمن به یوازې زموږ پر مړیو پښې ږدی او مخ کې تلای شي، یو بل راجه جګ شو ویې ویل:

تولواکه! دښمن داسې شرطونه ایښې دی چې ددې هیواد دملیونونو اوسیدونکو سپکاوی یې وکړ، ددې سپکاوي بدل یوازې داکیدای شی چې موږ ددې هیواد هر بچی ددوی په مقابل کې راپورته کړو. اوداسې ماته ورکړو چې بیا دی هیواد ته دراکتو جرئت ونه کړي.

څو نورو راجه ګانو دجګړې په پلوي یوپر بل پسې خبرې وکړې. په هغوی پسې د سردارانو نوبت شو. هغوی هم همدغسې جوش اواحساسات ښکاره کړل، دکالنجر یوه سردار چې له راجه نه وروسته د پاچهۍ ترټولو زیات د

رسوخ خاوند ګڼل کېده، یوه احساساتي وینا وکړه ویې ویل:
ټولواکه! ددښمن ددې جرئت ځواب یوازې په توره ورکولی شو، ستا یوې اشارې ته اړتیا ده، دکالنجر هرماشوم، ځوان اوبوډا به ثابته کړو چې د کالنجر دنواب زاده ګانو وینې وچې نه دی او موږ د شمال د راجه ګانو په څېر بې غیرته نه یو چې دخپلو سرونو د ساتنې په خاطر یې خپل ملي غرور او عزت قربان کړ، زموږ تورې، تیارې دي.
راجه ګنډا وویل: آیا داسې څوك هم شته چې ددې شرطونو دمنلو په حق کې رایه ورکړي؟
حاضرو کسانو په یوه غږ ځواب ورکړ: ټولواکه! هیڅوك نشته! هیڅوك نشته.
راجه د پلاوي غړو ته وکتل ویې ویل:
تاسو زموږ ځواب واورید. دهندوستان د بچیانو دیوتا چې ستاسو د پاچا د ګناه دبدل لپاره دکوم وخت انتظار کاوه، هغه رارسیدلی دی اوس هغه زموږ د دیوتاګانو له عذابه ځان نشي ژغورلی، ورشئ هغه ته زموږ له لوری داپیغام ورکړئ چې مرګ دده انتظار کوي او زموږ تورې زموږ د دیوتاګانو د سپکاوي د بدل اخستلو لپاره ناکرارې دي.
عبدالواحد خپلو ملګریو ته د راجه د خبرو مطلب په فارسي ژبه واوراوه. اوبیا یې راجه ته مخ واړاوه ویې ویل:
زه د وروستي ځل لپاره وایم چې که د قنوج ټولواك له تدبیر څخه کار واخلي، د زیاتو انسانانو د بې هدفه وینو تویېدو مخه به ونیول شي. دشګو دیوال دسمندرونو دسیلاو مخه نشي نیولی. ستاسو دیوتا هغه درنې ډبرې دي چې تر بار لاندې یې له پېړیو پېړیو راسې انسانان دل شوی دي، دغه ډبرې به دهغه د پښې له یوه ګوزار سره ټوټه ټوټه شي.
هغه به راشي اود بې شمیره بې ګناهو سرګردانه ارواوې به یې هرکلی کوي، دپېړیو ترپښو لاندې شوی او ځپل شوی انسانیت به دهغه په غاړه کې د ګلونو امیلونه ور واچوي، کوم کسان به چې هغه ته لاس ورکړي، سرخرویه به وی او چې څوك یې لاره ډب کړي، داغزیو په څېر به ومروړل شي.
دحاضرینو له اخلاصه ډك احتجاج عبدالواحد پرېښنبود چې خپلې خبرې

پای ته ورسوي، څو سردارانو توری وکښلې او په هغه را چاپېر شول، راجه په لوړ غږ وویل:

ودرېږئ! پر مجلس یو ځل بیا چوپتیا خپره شوه، راجه له لږ ځنډ چوپتیا وروسته عبدالواحدته وکتل ویې ویل:

تا دیوه استازي له حدودو څخه پښه واړوله، ورځه له دې ځایه زر ووزه!

عبدالواحدبې له دې چې څه ووایي، له خپلو ملګريو سره بهر ته ووت.

*****

راجه ګنډاپه خلاص ډګر کې له مسلمانانو سره دمقابلې په نیت دخپلې واکمنۍ څخه څو میله شمال لور ته پړاو واچاوه، دهغه پوځ له یو لك او پنځه څلویښت زرو پلیو، دیرش زره سپرو او شپږ سوه او څلویښت جنګی پیلانو څخه جوړ شوی و. سلطان محمود د جمنا له سیند څخه پورې ووت او خپل لښکر ته یې د دښمن له پړاو څخه پنځه میله لرې ددریدو امر وکړ.

له خپلو جاسوسانو څخه یې د دښمن دپوځی ځواك په اړه معلومات واوریدل. وروسته یې د یوه عادی سپاهی په بڼه دخپلو یو شمیر افسرانو سره یو ځای د دښمن د پړاو په لور مخه کړه، د لمر لویدو څخه لږ وړاندې یې د لویدیځ په لور د یوه اوږده چکر څخه وروسته، له لرې ددښمن دپړاو ننداره وکړه، ددښمن دپوځ خیمې تر میلونو میلونو پورې غځیدلې وې، له هر لوری څخه د راجه ګنډا دباج ورکوونکو لښکرې راتلې، سلطان تر اوسه دومره له زغم څخه وتلې ننداره په خپل ژوند کې نه وه لیدلې.او هغه د لومړۍ ځل لپاره دا احساس کړه چې له غزنی څخه ډیر لرې راوتلې دي، په داسې نازك پړاو کې ده ته دمرستې وررسیدو امید نه و.

دماتې او یاشاته تګ په صورت کې دده د لښکر بشپړه تباهي یقیني وه.

دلمر لویدو سره دپړاو په ساره او اوږدو کې دپیلانو کریږې، دآسونو شیشنهار او دانسانانو چیغې او کوکې دناقوس په زنګونو کې ډوب او خپ شول، سلطان خپلو ملګریو ته د بیرته ستنیدو امروکړ، لږ وړاندې یو ځای پلې ښول اودماښام لمنځونه یې ادا کړل او بیرته یې پر خپلو آسونو پښې واړولې خپل پړاو ته راغلل.

د شپې په دریمه برخه کې سلطان په خپله خیمه کې ستر رب ته سر په

سجده کښېښود او دُعا يې وکړه چې:

يه رب العزته! په دې ازموېښت کې مې پښې کلکې کړه، دښمن دخپل تې شمير پوځ او زيات شمير ديوتاګانو په مرسته تکيه لري. خو زه يوازې ستا د رحمت په تکيه دلته راغلی يم. ما او زما سپاهيانو ته همت راکړه چې ځانونه ستا د رحمت وړثابت کړای شو. ته همت راکړه چې ددښمن غشيو او نيزو ته خپل تټر سپر کړو. موږ ته دخپلو غازيانو او شهيدانو پر لار دتلو توان راکړه. موږ په مرګ او ژوند يوازې ستا رضا غواړو.

مهربانه مولا! دچا سرونه چې ستا په درکې ټيټيږي، هغه دې د بل چا دمقام اوجلال په مخکې خم نه شي. موږ ته د همدغسې ژوند او همدغسې مرګ هيله راکړه چې ستا د حبيب د غلامانو له شان سره لګيږي. د دُعا په پای کې دسلطان پر خوله دالفاظو پر ځای، يوازې سلګۍ اوريدل کيدې.

ناڅاپه يې دخپل پړاو په يوه ګوښه کې دخپلو پهره دارانو شور او زوږ واوريد چې ورسره جوخت په پړاو کې دنغارو غږ اوچت شو.

سلطان دعاپای ته ورسوله اوله خپلې خيمې راووت. د پوځ څو تنه افسران دده د خيمې په مخ کې ولاړ وو، نورو خپل خپل ټولې دځه غير معمولی حالت سره د مقابلې لپاره تيارول.

سلطان ددې شور او هنګامې د سبب پوښتنه وکړه؟ يوه افسر په ځواب کې ورته وويل:

معظم ټولواکه! د پړاو په شمال ختيځ لوری کې ناڅاپه پهره دارانو شور ماشور جوړ کړ پوځ دهرډول پيښې د مقابلې لپاره تيار دی، خو اوس دنغارې مطلب دادی چې له دې لوری څخه ددښمن دشواخون امکان نشته،داسې ښکاری چې کوم جاسوس نيول شوی دی، اوس به ټوله خبره رامعلومه شي.

سلطان امر وکړ: زما آس راولئ! لږ ځنډ وروسته سلطان له څو تنو افسرانو سره د کمپ جنوب ختيځ لوری ته روان شو، دوی لاڅ يات نه وو تللې چې مخامخ څو تنه مشالونه په لاس کې راښکاره شول. دسلطان دملګريو څخه يوه تن آس وزغلاوه، دهغوی په مخه کې ودريد او غږ يې پرې وکړ: ودريږئ! پهره داران ودريدل اوددوی يوه ملګری وويل:

موږ دمعظم سلطان حضور ته ورځو!

دسلطان یوه بل ملګري پرې غږ وکړ:
پهره دارانو یو ځوان سلطان ته ورووست او هغه چې ورانده ورغی، ورته وېې ویل:
معظم پاچا! زما نوم رنبیر دی، ستا دپوځ هندی سالار عبدالواحد مې پیژني، د رهت له جګړې څخه وروسته زه ستا پر حضور مشرف شوی یم.
سلطان آس ور وزغلاوه، دهغه خبره یې غوځه کړه ویې ویل: زه پوهېږم، ووایه څه وایې؟
عالیمقامه! زما سره زموږ د وطن پنځلس تنه سرداران له دوه زره تنو سپاهیانو سره ستاسو دمرستې لپاره راغلو، ماښام مهال موږ له دې ځایه تقریباً لس میله لرې له یوه ځنګل څخه راتیریدو چې یو ځای مو د آسونو شیشنیدا وورېده، ما خپلو ملګریو ته دشمال لور ته په شا تلو مشوره ورکړه اوپخپله دې لوری ته راروان شوم. په ګڼ ځنګل کې د کالنجر د پوځ څو ټولګي وو چې اړولې یې وو. ما خپل آس په یوه ونه پورې وتاړه او د شپې په تیاره کې دهغوی سره یو ځای شوم، هلته دسرتیرو له خبرو څخه وپوهیدم چې هغه کسان ختیځ لوری ته په ځنګل کې غواړي یوه اوږده دوره ووهي او ستاسو پر پړاو دحملې لپاره هلته راټول شوي دي. ماته دهغو خلکو له خبرو څخه دا هم معلومه شوه چې هغوی به دشپې په تیاره کې ورانده راځي، بیا به سپاره لږ لرې پاتې شي او پلې سپاهیان به پړاو ته نژدې کیږي. او چې سهار شي، دوی به پر پړاو حمله راوړي.
چې دسپرو ټولګی به یې هم مرستې ته رارسیږي بیا به له دې وروسته دکالنجر پوځ عامه حمله پیلوي، زه له هغه ځایه په منډه ولاړم او ځان مې خپلو ملګریو ته ورساوه ، هغوی ته مې مشوره ورکړه چې د دښمن دپوځ تر شا تم شي. بیا ستا دپوځ د پړاو په لور راغلم، زما څه وخت ستاسو د پهره دارانو پر قانع کولو هم تیر شو. چې زه جاسوس نه یم.
سلطان پوښتنه وکړه: دهغوی دشمیر په باب ستا اټکل څه دی؟
: زما په خیال به هغوی ترشل زره تنو زیات وي د سپرو شمیر به یې څلور زره په شاو خواکې وي، نور یې پلي دي.
په دې ځنډ کې د سلطان دپوځ وتلي افسران هلته راټول شول، سلطان

دمخکیني پوځ نامتو جنرال ابو عبدالله محمد ته امر وکړ چې له اته زره تنو سره سمدستي روان شي.

له هغې وروسته یې د پاتې پوځ افسرانو ته مخ واړاوه ویې ویل:

زما امید دی چې راجه به ترسهاره خپله اراده بدله کړي. بیا هم تاسو ددفاع لپاره ځانونه چمتو کړئ، که دښمن پر موږ حمله ونه کړه، نو دابو عبدالله له بري وروسته به موږ د دښمن له وارخطایی څخه ګټه او چته کړو، عبدالواحد ته له څو هوښیارو کسانو سره ددښمن له وارخطایی څخه ګټه اوچته کړو. عبدالواحده ته له څو هوښیارو کسانو سره د دښمن دېړاو په لور ولاړ شه اوموږ ته یې دخوځېدو اودرېدو احوال راکوه.

لږ ځنډ وروسته دابو عبدالله په قومانده پنځه زره سپاره او درې زره پلي پوځ د ختیځ په لور وخوځید، رنبیر دهغوی لارښوونکی و. له څو میله مزله وروسته رنبیر ابو عبدالله ته وویل: زما په ګومان دښمن نور ډېر لرې نه دي.

ابو عبدالله پوځ ته د درېدو امر وکړ او دپلیو سپاهیانو افسر ته یې وویل: ته په پوره احتیاط وړاندې ورځه. موږ به دښمن له ښی او کیڼ لوری تر کلابندکولو وروسته هڅه کوو چې دهغوی شاته ځانونه ورسوو، که د رنبیر اټکل سهی وي، نو دښمن به تر لمر ختو دمخه ستاسو د غشیو تر دَم لاندې وي، اوموږ به یې له شا او یوه او بل اړخ څخه مخامخ تېل وهو، که دښمن ستاسوذ لیکو دماتولو او ځان ایستلو هڅه کوله، نو دسپرو څو ټولي به ستاسو مرستې ته دروررسیږي.

* * * * *

پر ختیځ اُفق د سهار سترګه په راختو وه، راجه ګنډا دخپل پیل په زرینه کجاوه کې ناست و اود خپل پوځ دځواك اوشان اوشوکت نندارہ یې کوله، دهغه ښي او کیڼ لوری اودهغه شاته د آسونو یو اوږد کتار و، پلیو سپاهیانو صفونه جوړ کړی او ولاړ وو. ناقوس غږوونکی او جنګی ترانې غږوونکی برهمنان د سپاهیانو په لیکو کې ګرځېدل. فضا د "بګوان دې ژوندی وي، دیوتاګان دی ژوندي وي او راجه دی ژوندی وي". شعارونو پر سر اخستې وه، داسې ښکاریدله چې د هندوستان ټول دفاعی ځواك همدې یوې سیمې ته راټول شوی وي، راجه خپلو هغو باج ورکوونکیو واکمنو ته وکتل چې پر

پیلانو سپاره او دده ښې او کیڼ لورېته دریدلې وو او په لوړ آواز یې وویل:

په بګوان سوګند زه له دې لښکر سره ددنیا تر وروستي کونجه په دښمن پسې تلای شم.

د راجه سرښندونکو په یوه غږ چیغې کړې:

ټولواك دې ژوندی وي.

یو سردار آس وزغلاوه، راجه ته نژدې ورغی او وې ویل:

ټولواکه! هغه دی سهار کیږي!

راجه ځواب ورکړ: نه تر څو د شهزاده لخوا موږ ته کوم خبر نه وي راغلی موږ مخکې نه ځو دهغه له حملې څخه دمخه دښمن بیدارول زموږ لپاره تاوان دی، موږ به داسې وخت وررسیږو چې راجکمار ددښمن ټول پام په خپل لوری ور اړولی وي.

راجه ته نژدې یوسردار چې دخپل پیل په کجاوه کې دریدلې و او یوه او بل لوری ته یې کتل، مخامخ اشاره وکړه او په لوړ غږ یې وویل:

ټولواکه! هلته وګوره لکه چې څوك دشهزاده له پیغام سره راغلل.

راجه حیران مخامخ کتل.دسهار په تته رڼا کې په یوه واټن کې آسونه ښکاریدل چې ګړندی ور روان وو، لږ ځنډ وروسته یو سپور دپیلانو دکتار په مخکې تیر شو او د راجه په مخ کې ودرید دا دکالنجر شهزاده "ولی عهد" و.

او چې پاچا پخپله ولید، زړه یې وښوئید وې ویل:

څه وشول، ته پخپله ولې راغلې! د بګوان په خاطر ووایه پوځ دې چیرې دی؟

شهزاده راجکمار خپل پلار ته په ړډو ړډو کتل وې ویل:

ټولواکه! موږ چې له ځنګله راووتو، دښمن کلابند کړو، ماته نه وه معلومه چې سیمه ټوله ددوی په خلکو ډکه ده، زموږ ډیر لږ کسان به ژوندی ځانونه راخلاص کړای شي.

دښمن لومړی زموږ پر ښي او کیڼ اړخ حمله وکړه، موږ شاته ولاړو او بیرته ځنګله ته په شا کیدو اړ شوو، خو د ځنګل هغه برخه ددښمن په کسانو ډکه شوې وه.

داخل موږ مخکې راغلو، خو د دښمن غشي ویشتونکی مخامخ راته

ناست وو، که ستاسو خبرول ضروري نه وای، نو ما به د کلابندی ترماتولو اوبهر ته تري راوتلو دا غوره بللي وه چي مقابله مي کړي وای، چي وژل شوي واي. زموږ کسان بشپړ د دښمن په ولکه کي راګیر دي او د سهار له رڼا سره به يي ختم کړي. تر اوسه ښايي... راجه د شهزاده خبري غوځي کړي او ويي ويل: ددي مطلب دا دی چي د دښمن پړاو به خالي وي، او موږ بي له ځنډه باید حمله وکړو.

شهزاده وويل:

نه زه چي د دښمن له کلابندی را ووتم ،ددوی له پړاو سره نژدي راتیر شوم، په پړاو کي هغوی ډاډه دخپلو ليکو په برابرولو بوخت وو. ماته داسي ښکاريدله چي هغوی د وړاندي تګ لپاره دسهار د رڼا انتظار کاوه. او هغه پوځ چي پر موږ يي حمله کړي وه، له کوم بل لوری راغلي و، امکان لري دا ددښمن مرستندوی کنډکونه وي چي خپل پړاو ته به تلل ، خو موږ يي په لاره کي ليدلي يو.

دا هم کیدای شي چي دښمن زموږ د دوکه کولو لپاره دخپل پوځ زیاته برخه چیرته شاته پريښي وي، په هرصورت، داباوري وه چي ددښمن د پوځ شمیر زموږ له اټکل څخه ډیر زیات دي. دراجه ګندا تول زغم اواحساسات په مایوسی او ویره بدل شول، لږ ځنډ د مخه هغه د فتحي په چورتونو کي ډوب و، خواوس يي په خیال کي د دښمن بي شمیره پوځ لیده او وارخطا کیده، هغه پریکړه نشوای کولي چي څه وکړي.

هغه په خپ غږ وپوښتل:اوس موږ باید څه وکړو؟

شهزاده ځواب ورکړ: تولواکه! موږ د وړاندي تلو پرځای باید د ځان ددفاع فکر وکړو.

يو سردار چي له خپل پیل څخه پلی شوی او پاچا ته نژدي شوی و،لاسونه يي په درناوی جوړه ونیول ، ويي ويل:

تولواکه! که موږ په شاولاړو، نو ددښمن سپاره به دتوپان په څیر زموږ په هیواد رانئوزي، ځکه خو باید دخپل هیواد څه غم وخورو.لږ ځنډ وروسته دشاوخوا رياستونو واکمن او سرداران هم پر راجه ګندا راتول شوي وو، ځيني د سمدستی حملي پلويان وو ، خو د زیاترو رایه داوه چي د بیړي څخه باید

کار وانه خلو، ناڅا په مخامخ کوم دیرش، څلویښت تنه سپاره راښکاره شول اونژدې دوه سوه قدمه لنډراغلل ودریدل څو شیبې یې راجه وکتل او بیا بیرته وګرځېدل. یوه سردار وویل:

ټولواکه! دښمن دحملې کولو په حال کې دی.داسې ښکاري چې دهغوی پوځ نژدې راغلی دی، تاسو له پیل څخه پلي شی او په آس سپور شی.

راجه ګنډا له لږ دوه زړه توب وروسته له پیل څخه پلی او په آس سپور شو، د پوځ وتلیو سردارانو دده په خیر پر آسونو ښې واړولې، په یوه ساعت کې دننه په پوځ کې ګډوډی خپره شوه، دناقوس اوسرود غږونه دانسانانو په کریږو کې ورك شول، دراجه لوی په وسلو سنبال پوځ په ډیرې بدې ګډوډۍ اوتیت پرك حالت په شاروان شو، دهر سپاهي پر زړه دتورو دشرنګا او د غشو د شړاڅخه زیات د نالیدلي دښمن ویره ناسته وه.

له لمر ختو نه لږ وړاندې سلطان محمود له دغه ځایه پنځه میله لرې په خپله خیمه کې دغه حیرانونکی خبر اوریده چې دښمن له میدان څخه تښتیدلی دی، د لوی خدای حضور ته پر خولو دعا وی او په سترګو کې د شکرانې اوښکې وې، دپوځ دقرار ګاه په ساره اواوږدو کې دالله اکبر غږونو ازانګې کولې،سلطان پوځ ته د وړاندې تلو امروکړ اوتر ماسپښین پورې پر دښمن پسې ورغلل، له هغې وروسته هغوی بیرته خپل پړاو ته راستانه شول. تر ماښامه پورې پنځه سوه پیلان د سلطان د پوځ په واك کې لویدلي وو.

له دغې فتحې څخه څو ورځې وروسته دسلطان پوځ بیرته دغزني په لور راوخوځید.

رنبیر اود سیمې هغه سرداران چې ورسره راغلي وو،له سلطان سره ملګری وو، سلطان عبدالواحد ته امر وکړ چې دهندي پوځ سره قنوج ته ستون شه اوزما تر راتګ پورې همالته اوسه.

# د جي کرشن لور

دخپلې مور له وفات څخه وروسته ،نرملا په ماڼۍ کې ډېر د بې وسۍ ژوند تېراوه.

د رنبير په اړه ددې په زړه کې اوس له کرکې او سپکاوي پرته ، بل هېڅ نه وو.

د رنبير په غير حاضرۍ کې ددوی سرپرستي د شمبو نات پر غاړه وه،د شمبو نات سلوك دې ته دا خبره روښانه کړې وه چې دا له يوه بندي پرته، بل څه حيثيت نه لري. دې ته يې لومړۍ ځل دمور دمړی دسوځولو لپاره له ماڼۍ څخه بهر ته د وتلو اجازه ورکړه، خو هلته هم شمبونات او څو تنه نور نوکران ددې پر سر ولاړ وو. له هغې وروسته هم دې ته کله کله د نورو نوکرانو په پهره کې دخپلې مور د سوځيدو دځای دليدو اجازه وه. په ځانګړې ډول شمبونات دسيورې په څير له دې سره ملګرې و. له دغو پابنديو سره ددې په زړه کې د تيښتې هيله پيدا شوه، ځکه خو يې يوه ورځ سهار وختی دخپلې نوکرۍ جامې واغوستې تيکرۍ يې پر سر کړ او له کور څخه بهر ته راووته.خوشمبو نات په تګ وپيژندله ، وړاندې ورغی اولاره يې ونيوه ورته ويې ويل:

تاسو په دې وخت کې چيرته ځې؟

دا وويريده اوپه بنده ژبه يې ځواب ورکړ:... زه ... زه نرملا ته دوا راوړم. د هغې تبه ده.

شمبونات ځواب ورکړ: تاسو زحمت مه باسئ، زه دوا راغواړم.

هغې وويل: په کلي کې زما يو بل کار هم دی.

شمبونات وويل: ما ګستاخی ته مه مجبوروئ، زه پوهيږم چې ته څوك يې!

نرملا تيکرۍ وغورځاوه له غوسې يې شونډې چيچلې ، ويې ويل: ستا مطلب دادی چې زه ستاسو بندي يم!

شمبونات ځواب ورکړ:
ترڅو زموږ سردار بیرته رانشي، تاسوله دې ماڼۍ څخه یوازې نشې وتلې، هغه ستا د ساتنې ذمه واري ماته راسپارلې ده.
نرملا په سپکه غونډې لهجه وویل. زما ساتنه!
ته ولې داسې نه وایې چې دخپلې مور په څیر به یوازې په مرګ زه له دې جیل څخه خلاصه شم، خوپه یاد لره چې یوه ورځ به ستا سردار پښیمانه شي.
شمبو نات وویل: کله چې هغه دلته و، تاسو له کوره د وتلو اراده ونه کړه، دهغه دا ګومان و چې په خوښۍ دلته غواړې پاتې شې. که تاسو هغه ته ویلي وای چې تاسو غواړئ چیرته ولاړه شئ، هغه به هیڅکله هم ستا د راایسارولو هڅه نه وه کړې.
خو اوس دهغه په غیاب کې موږ تاته دتلو اجازه نشو درکولی.
- زه تردې مرګ غوره بولم چې دخپلې مور قاتل خپل دښمن او دخپل قوم او وطن ددښمنانو دوست خپل ساتونکی وبولم.
شمبونات وویل: زه ستا دخبرو ځواب نشم درکولی د سردار لخوا موږ ته امر شوی دی چې ستا عزت وکړو.
نرملا بیله دې چې نور څه ووایي، بیرته راوګرځیده . خو هغې په زړه کې په وار وار دا تکراروله چې : ته به پښېمانه شې. رنبیر بایدزما له کسات څخه وویرېږی . زه به یې ژوندۍ پرې نږدم.

*****

یوه ورځ د نرملا نوکرۍ داخبر راووړ چې له رنبیر سره کوم کسان تللې وو ، هغوی بیرته راستانه شوی دی او د سلطان محمود پوځ له دې ځایه درې میله لرې اړولي دي.
کوم سپاهیان چې بیرته راستانه شوی دي، هغوی وایی چې سلطان محمود پر هغوټولو سردارانو خلعتونه ویشتلې دی چې له رنبیر سره د کالنجر په جګړه کې ملګری وو او د سلطان په مخکې ټولو سردارانو رنبیر خپل لوی سردار منلی دی. د مسلمانانو لښکر به سبا ته روانیږی اورنبیر به دهغو له رخصتولو څخه وروسته راستون شي. سپاهیانو ویل چې دسلطان پوځ به دې کلی ته نژدې تیرېږي.

سبا تـه دورځې نرملا اونوکرانو يې د بالاخانې له بامه دمسلمانانو د پوځ دتيريدو ننداره کوله. ماسپښين نږدې و چې شمبونات راغی او ويې ويل: زه سردار تاسو تـه رااستولی يم، هغـه چې ستـا د مور د مرګ خبر واوريد، خپه شو غواړی له تاسره ووينې، که ستااجازه وي، هغه همدا اوس تاسو ته راځي.

نرملا ځواب ورکړ: هغه ته ديوه بندی دليدولپاره داجازې څه ضرورت دی.

چې شمبونات ولاړ، نرملا خپلو نوکرانو ته وويل: هغه چې راغی زما کوټې ته يې پريږدی اوچې تر څو ما غږ نه وی درته کړی، يوه هم هلته رانشي.

نرملا خپلې کوټې تـه ولاړه او يو صندوق يې خلاص کړ، يو ځليدونکی خنجر يې را وکيښ او پـه خپـل لستوڼي کې يې پټ کړ، بيا يې د انديښنې په حالت کې په کوټه کې قدم واهه. لږ ځنډ وروسته يې په برنډه کې د چا د پښو غږ واوريـد ، زړه يـې پـه درزيـدو شـو او پـه بيړه ولاړه دخپـل پالـنګ ترڅنګ ودريده، رنبير چې دننه ورغی او نرملا يې پر څيره يو ځل نظر وزغلاوه ، په بدن کې يې لړزه احساس کړه.

رنبير د کوټې پـه منځ کې ودريـد اويوه شيبه يې نرملا ته وکتل اوبيا يې سترګې ښکته کړې، ويـې ويـل: اوس ستـا د مور پـه بـاب خبر شوم. زه ډير خپه شوم.

نرملاڅه ځواب ورنکړ. رنبير يوه شيبه بياهغې ته وکتل اوبيا په اضطراری حالت ولاړ بهر ته دخلاصې کړکۍ څخه يې وکتل او ويې ويل:

ښايی زمـا پر خبرو ستاباور رانشي، خو که زه دلته وای، هڅه به مې کړې وای چې د هغې ژوندوژغـورل شی . زه ستـا پـلار نشـم بخښـلی، خـو لـه يـوې ښځې سره زما هيڅ دښمنی نه وه.

نـرملا لږ ور وړانـدې شـوه او پـه خپـله ويره يـې د را قـابو کيدو هڅه وکړه، ويې ويل:

• زما له تاڅخه هيڅ ګيله نشته.

رنبير مخ دې ته ور واړاوه، خو بې له دې چې ورته وګوري، ويې ويل:

دغه کور ماته يو درمسال ښکاری اودلته د چا مرګ ماته ګران دی.

نرملا يو ګام نوره هم ور وړاندې شوه، ويې ويل:

په دې کوټه کې ستـا خور اوسيدله.

رنبیر په ژړه غوني آواز وویل: هو! په هغه شپه ما همداسې ګڼله چې شکنتلا دلته ده، په ننداره کې ماته معلومه شوه چې هغه زما په انتظار ټوله شپه ډیوې بلوي. خو زه حیران یم چې هغه نه وه تاته د ډیوې بلولو خیال څنګه ورپیدا شو؟

ماته دکلي خلکو وویل چې شکنتلا بې درکه شوه هم دغه کوټه به ټوله شپه رڼاوه.

- تا ښایي شکنتلا بالکل لیدلې نه وي، خو که دې یو ځل لیدلې وای بیا به دې زه ددې ټولنې او کلتور پر خلاف په توره اوچتولو کې حق په جانب بللی وای، کاشکی ماته څوك دا ووایي چې شکنتلا چیرته ده؟

رنبیر بې له دې چې نرملا ته وګوري، خبرې یې کولې، دهغه سترګې پر هغه ونه ګنډلې وې چې له ورڅخه به ده د زینو کارترې اخیست. هغه له دې څخه بې خبره نه و، چې نرملا ده ته ډېره ورنژدې شوې ده، خو دغه احساس چې دی د شکنتلا ورور او د موهن چند زوی دی دده د نظر په مخکې دیوال و، غیرت یې دسترګو په مخکې پهره درولې وه، دشکنتلا په باب زیاتیدونکی مایوسۍ دی د خسو په تکیه مجبور کړی و. ده ګومان کاوه چې نرملا خامخا دشکنتلا په باب خبره ده ځکه خو هغه نن په دې تمه راغلی و چې که د نرملا زړه نرم شي او د هغې په اړه څه ورته ووایي.

نرملا د رنبیر دخبرو په وخت کې دوه ځله لاس اوچت کړ چې وار وکړي. خو هرځل یې همت ځواب ورکړ، او چې دریم ځل یې لاس اوچت کړ، رنبیر مخ ور واړاوه او لاس یې ونیو. د نرملا له لاسه خنجر ولوید، رنبیر ور ټیټ شو خنجر یې اوچت کړ او نرملا ته یې وړاندې کړ ویې ویل: ته مانه شې وژلی.

نرملا په منډه ولاړه پر خپله بستره پړ مخې ولویده په سلګیو شوه ویې ویل: کاشکی ماته وژلی شوای، کاشکی ته مې دښمن بللی شوی.

رنبیر وروړاندې شو، هغه یې ترمټ ونیوه اوغوښتل یې راپورته یې کړي، خو دده ریږدیدونکی لاس لږ د نرملا ترمټ پورې ور ورسید اوبیا ودرید. د یوه اسویلي سره بیرته شاته شو ویې ویل:

شمبونات ماته ویلي وو چې تا غوښتل چیرته ولاړه شې، زه ستا دا بدګمانی لرې کوم چې ته زموږ په جیل کې یې، که ستا خوښه نه وي چې

دلته واوسې،نوتلای شې، اوریدلي مې دي چې ستاخپلوان په ګوالیار کې دي. که دې خوښه وي، نو زه به دې هغه ځای ته د رسولو بندوبست وکړم، دشکنتلا ورور د کومې نجلۍ په سترګو کې اوښکې نشي لیدای، زه د لومړي او وروستي ځل لپاره د خپلې خور په باب درڅخه پوښتنه کوم، که ته ما د لږ خواخوږۍ حقدار بولې دهغې په باب څه راته ووایه، که نه نو زه تا پر ځواب راکولو نشم مجبوروللی، زه یوازې غواړم وپوهیږم چې شکنتلا چیرته ده؟ هغه ژوندۍ ده که مړه شوې ده؟

نرملا جګه شوه کیناسته اوښکې یې پاکې کړې او ویې ویل: که زه د شکنتلا په باب خبره وای، نو ستا له پوښتنلو پرته به مې درته ویلې وو، ته زما پر خبرو باور نشي کولی خو بګوان پوهیږي چې دهغې په اړه زما پلار هم خبر نه دی،پلار جان مې هغه هر ځای ولټوله ، خو هیڅ درك یې معلوم نشو.

- زما باور دی چې ته دروغ نشي ویلی، زه به له دې وروسته هیڅکله هم له تانه دا پوښتنه بیا ونه کړم. خو آیا دا هسې یو تصادف دی چې دغه کوټه د شکنتلا له بې درکه کیدو څخه وروسته هم ټوله شپه روښانه کیده؟

آیا تاته معلومه وه چې زه مانۍ ته راننوزم نیغ به همدې کوټې ته راځم ستا یوې نوکرې هم ویل چې دې مانۍ ته له راتلو وروسته تا یوه شپه هم په دې کوټه کې دډیوی د چوپولو اجازه نه وه کړې.

نرملا ځواب ورکړ: دا هسې تصادفي نه وه. ماته د کلي ښځو ویل چې د شپې مهال دشکنتلا کوټې ته لکشمي دیوی راتله اودې د هغې په انتظار هره شپه کوټه روښانه کوله. ځکه خو ما هم داوسیدو لپاره همدا کوټه خوښه کړه او دخوب په وخت کې مې هم روښانه پریښودله. دا زما په خیال او تصور کې هم نه راتلل چې زما دا کار به یوه ورځ تا دوکه کوي، زه ربښتیا وایم ، ما شکنتلا نه ده لیدلې، زه دهغې له بې درکه کیدو څخه څو شپې وروسته دلته راغلم، خو که ماهغه لیدلې وای، نو د پلار جان دخپګان ویرې به هم زه دهغې له ملاتړ څخه نه وم ایساره کړې.

خو زه افسوس کوم چې دهغې په ښه رانه غلم. زه دا خبره ستا د خواخوږۍ جلبولو لپاره نه کوم. بلکې دا د یوې ښځې په اړه د بلې ښځې جذبات او احساسات دي.

زه د خپل پلار له دښمن څخه د رحم سوال نه کوم. موږ دواړه یو د بل دښمن یو، زه د جی کرشن لور یم او ته د موهن چند زوی. اوس که زما همت ځواب نه وای راکړی، ته به مې وژلی وې.

د شکنتلا سره پر خواخوږی برسیره ستا وژل زما ذمه واري ده،ته هم خپل فرض بایدترسره کړې.

رنبیر بې حرکته ولاړ و، هغه نرملا ته د سترګو وراړولو جرئت نه درلود، دهغه په مخکې یوازې نجلۍ وه، یوه داسې نجلۍ چې تتی موسکا یې په بې روحه کانو کې هم نغمې راوینبولی شوای، چې اوښکو یې د یوه جلاد په سینه کې هم ټکانونه را بیدارولی شوای. د جی کرشن لور د عذر کولو لپاره نه بلکې د حکم چلولو لپاره پیدا شوې وه.

رنبیر وویل: ښایی موږ دواړه ټول عمر په همدې بدګومانۍ کې دپاتې کیدو لپاره پیدا شوې یو، چې دواړه یو د بل دښمن یو. دا زموږ وروستي لیدل دي، نور دا پریکړه ،ستا کار دی چې ته څه وخت او چیرته تلل غواړې؟

- زه همدا اوس د تلو لپاره تیاره یم.

- چیرته ؟

- ګوالیار ته د خپل ماما کره!

- ستا پلار جان به هلته وي؟

- امکان لري.

- اوس ماښام کیدونکی دی، زه به سهار وختی تاسو له دې ځایه روان کړم، شمبونات به درسره ولاړ شي، رنبیر دا وویل او بهر ته ووت.

*****

د شپې تر ډیره رنبیر په انګړ کې قدم واهه، رنبیر چې نیمه شپه خپلې کوټې ته ستون شو او د ویده کیدو هڅه یې وکړه،خو خوب ورنغې، د نرملا خیال یې په زړه او مغزو پنجې ښخې کړې وې، د شپې دریمه برخه د رام نات کوټې ته ورغی هغه یې راوینښ کړ، بیا یې ورسره ملګرې کړ او دسیند لور ته ولاړل. ماښام یې رام نات ته ویلې وو چې نرملا سهار وختی ګوالیار ته روانیږی اودی یې د رخصتولو په مهال غواړې لرې وي، رام نات دهغه له څیرې څخه دزړه د حالت اندازه لګولې وه.

دوی تر لږ لرې پورې د سیند پر غاړه چوپه خوله روان وو. بیا یو ځای کیناستل رام نات وویل: ما اوریدلې دی هغه ډیره ښایسته ده.
رنبیر ځواب ورکړ: ماته نه ده معلومه، زه یوازې دومره پوهیږم چې په ځیر یې مخ ته د کتلو جرئت نشم کولی، نرملا یوازې یوه ښځه نه ده، بلکې د ورانولو، ویجاړولو او ورسره وړلو ځواك هم دی، دلیدونکي سترګې دهغې پرځیره د میخ کیدو پرځای یوې اوبلې خواته ښوئیږي.
رام ناته! ته یو شاعر یې او ښایی پردې خبرو ته ترماښامه وپوهیږې.
رام نات وویل: که هغه د جی کرشن لور نه وای، نو تا به څه کول؟
- نه پوهیږم، خو ښایی زما لپاره دهغې تلل ګران او زحمت وای.
- ستا باور دی چې اوس یې په تلو خپه او پریشانه نه یې؟ ته ټوله شپه نه یې ویده شوی، اوس هم له مانې څخه لرې راتلل دا ښیی چې له یوه ترخه حقیقت سره د مخ کیدو همت نه لرې.
- ما پرون دا پریکړه کړې وه چې بیا به ورسره دمخامخ نه شم.
- اوته دې پردې پریکړه غواړې چې ودریږې؟
- : هوکې! زما باور دی چې که د بې همتی ثبوت ورکړم هم زموږ لارې بیا هیڅکله هم یو پر بل نه ورځي.
رام نات وپوښتل: هغه ستا په باب څه ګومان کوي؟
- زما هیر شول غوښتل مې درته ووایم چې هغې زما د وژلو هڅه وکړه.
- نو بیا دهغې وضعه ستا څخه هم زیاته د رحم وړ ده.
- هغه څنګه؟
- هغه ستا سره مینه کوي.
- ته رښتیا شاعر یې اوس څه بله خبره وکړه.
له لمر ختو سره چې رنبیر کورته ستون شو، ورته معلومه شوه چې نرملا تللې وه، لږ څنډ وروسته هغه په خپله کوټه کې ناست و چې چا د بهرني انګړ دروازه وټکوله.
رنبیر وویل: څوك یې؟
د نرملا یوې خدمتګارې دروازه خلاصه کړه اودننه ورغله، دهغې په لاس کې یوه کڅوړه وه. هغې وویل: دغه کڅوړه نرملا راکړې وه. هغې ویلې وو

چې تاته يې ورسوم، په دې کې هماغه ګاڼه ده چې تا په هغه ورځ ددې له بيرته اخستلو څخه انکار وکړ.

رنبير وويل: تا ولې ترې واخستله؟

- ما هغې ته وويل چې ته به پرې خپه شې، خو هغې کښوره وغورځوله او ولاړه.

- ډير ښه ته يې له ځانه سره وساته.

نوکرې وويل: مور ته څه حُکم کوې؟

- دڅه شي حکم؟

-.دلته زمور د اوسيدو په باب؟

- که تاسو دلته اوسی نو زه به خوښ شم.

- خدمتګارې دُعاګانې ورته کولې او له کوټې ووته.

# نوی پړاوونه

څو ورځې وروسته دماسپښین پر وخت، رام نات او رنبیر د ماڼۍ په بهرنۍ انګړ کې د یوې ونې لاندې ناست وو، رام نات ورو ورو سندره زمزمه کوله.

رنبیر ورته وویل: رام ناته! لږ یې په لوړ آواز ووایه!

رام نات ځواب ورکړ: سندره چیرته اوس خو غږ له ستونې نه راوزي.

تر لږ ځنډه دواړه چوپ وو، بیا رنبیر رام نات ته وویل: زه غواړم چې ته دلته و اوسې او زه سومنات ته ولاړ شم.

- ته به هلته یوازې څه وکړې؟

- امکان لري زه ستا او د روپ وتی دلیدو څه لاره معلومه کړم.

رام نات ځواب ورکړ: داکار ډیر ګران دي، خو که داسې لاره پیدا شی هم نو دا چیرته کیدای شی چې زه د سرله ویرې تا هلته پریږدم؟ په اوسنی وضع کې ترهر څه دمخه ته باید خپله خور ولټوي.

رنبیر په غمجنه لهجه وویل:

زما خور که د قنوج په شاوخوا کې وای، نو تراوسه به یې خامخا ماته درک معلوم شوې وای، ما ته تراوسه دا معلومه نه شوه چې هغه ژوندۍ ده او که نه؟

رام نات درشل ته اشاره وکړه ویې ویل:

وګوره شمبونات راغې.

رنبیر تکان وخوړ، د درشل لور ته یې وکتل، مخامخ شمبونات را روان ؤ.

شمبونات لاڅو ګامه لرې ؤ چې رنبیر ترې وپوښتل:

شمبو کاکا!! هغوی دې ورسول؟

- هغه لاس په نامه ونیول وړاندې راغې او ویې ویل: هو باداره!

- په لاره کې خو به په تکلیف شوې نه وې؟
- نه باداره!
- له جی کرشن سره دې ولیدل؟
- نه ، هغه چیرته بهر تـه وتلې وْ. د هغې ماما په کور کې وْ او ویل یې چې که زه نـاروغ نـه واي، ستاسو د سردار د پښو ښکلولو لپاره به درغلی وای.
دهغه له خبرو داسې معلومیده چې د جی کرشن ښخه یې کرکه کوله، نرملا ستا په نامه یو لیك راکړی دی، شمبونات دا وویل اوبیا یې لاس په جیب کې دننه کړ، یو لیك یې را ویوست. رنبیر ته یې وړاندې کړ، رنبیر لیك پرانیست او ویې لوست، نرملا لیکلې وو:
"ماما جان مې امر راتـه وکړ چې لیك درته ولیکم او ستا مننه وکړم، که مې پلار جان دلته واي، نو ښایی دغه لیك یې پر هغه لیکلی وای، تا چې له ماسره کوم غوره سلوك وکړ، زما باور دی چې بګوان بـه یې بدلـه ضرور درکوي. ښنګه چې زه دماما کره را ورسیدم ، دغسې به یوه ورځ ستا خور تاته در ورسیږي. تاسو د هغې لټون ته دوام ورکړی، زه یو ځل بیا تاته په باور وایم چې ستا دخور په بې درکه کیدو کې زما د پلار هیڅ لاس نشته.
زما اوستا دکورنی ترمنځ چې د کینی او کرکې کوم خلیج رامنځته شوې دی ، له هغې ښخه تیریدل زما له وسه بهر دي، خو پردې سر بیره زه بګوان ته تل دا دُعا کوم چې ستا خور زر درته پیدا شي".

"نرملا"

رنبیر چې لیك ولوست ،رام نات ته یې ورکړ او پخپله په ژورو سوچونو کې ډوب شو.
لږ ځنډ وروسته رام نات لیك بیرته ورکړ او ویې ویل: اشنا ددې لیك هره کلمه دا وایی چې دهغې له تاسره مینه ده.
رنبیر لږ په احساساتو راغی ویې ویل: نه رام ناته! هغه په دې بد ګمانی کې ده چې زه بـه ددې دخبرو تر اغیزې لاندې راشم او دخپل پلار قاتل به هیر کړم. د جی کرشن غوندې سخت زړي انسان په باب زه ښنګه دا تصور کولی شم چې که زما خور دهغه په لاس کې لویدلې وای، نو هغه به په شرافت ورسره چلن کړې وْ. زه هغه مهال چیرته هیرولی شم چې دهغه لاس زما شارګ ته

رسیدلې وې، جی کرشن چې په کومه څمکه ازغی کرلي دي، زه هلته ګلان څنګه ولتوم، ته زما په وړاندې د مینې خبرې مه کوه، پر دې زما غیرت تپی کیږي، ما چې له نرملا سره کوم سلوك کړی دی، ددې معنی دا نه ده چې زه دهغې پلار ته ددوستۍ لپاره لاس ور وړاندې کول غواړم.

رام نات پښیمانه شو ويې ویل:

وبخښه زما نه اشتباه وشوه.

رنبیر شمبونات ته وکتل ، ويې ویل: شمبو کاکا!

ورځه اوس آرام وکړه، شمبو نات ولاړ، رنبیر اورام نات څه شیبه چوپ ناست وو، بالآخره رام نات وویل:

اوس ستا اراده څه ده؟

رنبیر ځواب ورکړ:

زما اراده داده چې د قنوج په جنوبی او ختیزو سیمو کې شکنتلا یو ځل بیا وګورم او بیا په بدله جامه کې کالنجر ته ولاړ شم. امکان لری چې هلته یې په کوم درمسال او عبادتځای کې پناه اخستې وي.

*****

سبا ته رنبیر او رام نات له څو نوکرانو سره د قنوج د ختیزو سرحدونو په لور روان شول، په درې اونیو کې دوی ډیر کلی او ښارونه چاڼ کړل، خو د شکنتلا هیڅ درك معلوم نه شو، په څلورمه اونۍ یې د جنوبی سرحد دښارونو او کلیو دوره کوله چې رام نات ناروغ شو، رنبیر هغه په کلی کې ایسار کړاو شمبونات یې ورسره پریښود، پخپله وړاندې ولاړ، تر پنځلسو ورځو پورې رنبیر پراخې سیمې ګز او پل کړې او بیرته راستون شو. اوس د رام نات تبه شکیدلې وه، هغه د کالنجر د سفر لپاره له رنبیر سره تلو ته ځان تیار کړ، خو رنبیر هغه وپوهاوه چې:

رام ناته! ته ډیر کمزوری شوی یې ، زما دغه سفر ډیر سخت او ګران دی. زه هلته د یوه ملنګ په جامه کې ځم، هره ورځ باید په میلونو میلونو پلې سفر وکړم، زه له شمبونات پرته ، بل نوکر هم له ځان سره نه بیایم، ته له نورو نوکرانو سره بیرته ستون شه، څو ورځې زموږ په کور کې استراحت وکړه، زه چې بیرته راستون شم، سومنات ته به ولاړ شم،رام نات ټینګار وکړ چې ورسره

ملګرې شي، خو رنبیر هغه مجبور کړ چې له نورو نوکرانو سره بیرته ولاړ شي.

نژدې یوه نیمه میاشت رنبیر او شمبونات د ملنګانو په بڼه کې د کالنجر په مختلفو ښارونو کې وګرځېدل، هغوی د کالنجر ټول مشهور درمسالونه او عبادتځایونه ولیدل، خو د شکنتلا هیڅ درک معلوم نه شو، له هغې وروسته چې کله دوی دواړه کلی ته ورسیدل، رنبیر ته د خپلو نوکرانو له خولې معلومه شوه چې رام نات شل ورځې د مخه چیرته تللې دی او د هغه په نامه یې یو لیک پرېښی دی، رنبیر زر لیك پرانیست، رام نات لیکلي وو:

"زما دوسته!

زه ستاله اجازې پرته ځم! او تاته ددې ویلو ضرورت نشته چې زما هدف کوم دی؟

ما ته دابنه نه ښکاریده چې ته دې د خپلې خور لټون پرېږدې او هلته ولاړ شې.

له تا څخه هیله کوم چې راپسې رانه شې، زه ویرېږم چې هلته به تر ما ستا پیژندوی زیات وي، امکان لری ددې سیمې ډېر کسان هلته رسیدلي وي او که ته جامه بدله کړې هم، ددوی نظر به دوکه نکړای شي. زه یو معمولی سړی یم او د انسانانو په بیروبار کې ځان ورکولی شم. که بیا چا ولیدم هم له روپ وتی پرته زما د ژوند هیڅ ارځښت نشته، که ژوندی وم. نو یو وخت به خامخا راشم." ستا رام نات"."

*****

عبدالواحد د قنوج په کلاکې حاکم و، یوه ورځ په خپل دفتر کې ناست و چې یو سپاهی دننه ورغی او په ادب یې له سلام کولو وروسته وویل:

جنابه! سردار رنبیر ستا په خدمت کې د حاضرېدو اجازه غواړي.

عبدالواحد ټکان وخوړ، ځواب یې ورکړ: هغه سمدستي دلته راوله.

لږځنډ وروسته رنبیر کوټې ته ورننوت، عبدالواحد جګ شو او تاوده سترې مشی یې ورسره وکړه، نژدې یې ځانته په کرسۍ کیناوه، ویې ویل: ښه وشول چې ته راغلې.

که نه ما ستا کلی ته د درتلو اراده کړې وه، دخور دې څه درك معلوم شو؟

رنبیر د مایوسی په حالت کې ورمېږ ښکته کړ او ویې ویل: نه! ما قنوج لویشت په لویشت ولټاوه ، خو هیڅ درك یې معلوم نه شو.

عبدالواحد وویل: زه ډېر افسوس کوم. ما هم ډېره هڅه وکړه، په دې اړه د قنوج هر سردار مرسته راسره کړې ده، خو داسې معلومېږي چې هغه په قنوج کې نشته.

رنبیر وویل: زه د یوه ملنګ په جامه کې کالنجر ته تللې وم، خو هلته هم له څو هفتو یوې او بلې خوا سرګردانۍ هیڅ ونه شول. دمقامي حکومت له مرستې پرته ماته د هر کور دروازه ټکول ممکن نه وو.

عبدالواحد وویل: ته باید مایوس نه شې، هغه ورځ لرې نه ده چې ددې ټولو ریاستونو حکومتونه ستا د خور لټون خپل اولنی مسؤولیت وبولي. دخدای جل جلاله په رحمت تکیه وکړه، که هغه ژوندۍ وي، نو یوه ورځ به خامخا درسره مخ شي، هو! ستا هغه دوست رام نات چیرته دی؟

- رام نات سومنات ته تللی دی، اواوس زه هم هلته دتلو اراده لرم. کله کله په خیال کې راشی چې شکنتلا هم هلته تللې وي،له یوې مودې راسې ددې هیواد خلکو خپلې ټولې هیلې په سومنات پورې تړلې دي، په کومو ورځو کې چې په قنوج ستاسو د حملې اندیښنه وه، زیاتو سردارانو خپلې خورلنې او لوڼې سومنات ته استولې وې، امکان لری شکنتلا هم ترڅه مودې یوې او بلې خواته سرګردانۍ وروسته له کومې قافلې سره سومنات ته تللې وي، دهغې له ماشومتوبه دسومنات درمسال د لیدو مینه وه.

زموږ د یوه ګاونډي سردار لور ددې خورلڼه وه ، دهغې پلار هغه د زده کړې لپاره هلته استولې وه، یو کال وروسته چې هغه بیرته راغله، په نڅا او سندرو کې دکمال په سبب دشاوخوا ټولو نجونو ته یو مثال وه، څو ورځې وراندې چې ما دخپلې خور له دغې ملګرې سره ولیدل، هغې هم ماته همدا خبره وکړه، چې له شکنتلا سره رښتیا هم د سومنات دلیدو ډیره مینه وه، پلار جان هم له دې سره دا ژمنه کړې وه چې زه له جیل نه راخلاص شم اوبیرته راشم، نو ټول به دسومنات دزیارت لپاره ځو، اوس زه فکر کوم چې خور به مې د سومنات دزیارت کوونکو له کومې قافلې سره هلته رسیدلې وي.

عبدالواحد له لږ او ډېر فکر څخه وروسته وویل: زما په ګومان د هغې هلته رسیدل امکان نه لري، له تاسره د بیا لیدو په تمه به دې ته دا ښه نه ایسیدل چې دومره لري ولاړه شي.

رنبیر وویل:

زه پخپله هم دا احساسوم چې زه ځان دوکه کوم، خو دغه دوکه زما د ژوند یوه تکیه ده، ما سومنات ته د تلو پریکړه کړې ده او ددې پریکړې لوی سبب رام نات دی، ته خبر یې چې هغې د سومنات یو لوی پالونکی وژلی دی، ځکه خو ما هڅه کوله چې دده پرځای هلته ولاړ شم، خو هغه له کالنجر څخه زما دراستنیدو انتظار ونه کړ او تللې وه.

اوس څلور میاشتې وشوې چې هغه تللې دی او ماته یې هیڅ خبر نه دی راغلې، زه ویریږم چې هغه په کوم مصیبت نه وی اوښتې، ځکه خو زما ژر تر ژره هلته ورتګ ضروری دی. د شکنتلا لټون خو زړه ته د تسلی یوه پلمه ده.

عبدالواحد وویل:

رنبیره! کله کله داسې هم کیږی چې تقدیر دخپل هدف له ښکارولو پرته ځینې کسان په یوه کار ګوماري، سومنات ته ته ځې نه، بلکې استول کیږې. سومنات دهغو تیارو وروستی دپناه ځای دی چې موږ ورسره په جګړه یو. ته چې هلته ولاړشې، ښایی دا احساس کړې چې د سومنات فتح سلطان ته ددې هیواد د نورو ځایونوله نیولو څخه زیات مهم او ارځښتناك وي. د سلطان په زړه کې دسومنات دنیولو او فتحې د عزم را وینښولو لپاره دا بس دی چې ددې هیواد برهمنانو مشهوره کړې ده چې سومنات نشی فتح کیدای، زه تاته دا نشم ویلی چې سلطان به کله د سومنات په لور مخه کړي، خو که وضعې مهلت ورکړ، نو یوه ورځ به خامخا هلته ورځي. سمدستی دهغه ځای له وضعې زموږ خبریدل ضروری وي، ته به هلته داسې څوك ووینې چې له کلونو راسې د سلطان لار څاری او دهغوی په مرسته به ته هلته ډیر کارونه سرته ورسولی شې، په ګجرات کې د عربو د مسلمانو سوداګرو څو کلی وو، خو اوس د سومنات دپالونکیو دظلمونوله لاسه دهغه ځای مسلمانانو مالابار اوسند ته پناه وړې ده، او کوم مسلمانان چې تر اوسه پورې هلته پاتې دي، هغوی له ټیټ ذاتو څخه زیات بدژوند تیروي، سلطان دهغو خلکو دمظلومیت

کیسې اوریدلې دي، په تیرو څو کلونو کې څو پلاوی ده ته راغلی دی، دګجرات یو له اسرارو ډك سړی ددغو خلکو لارښوونه کوي، هغه د یوه ملنګ په بڼه له ښار څخه بهر دکب نیوونکو په یوه وړوکې کلی کې اوسیږي. اصلی نوم یې عبدالله دی، خو په خلکو کې په بګوان داس مشهور دی، دتانیسر دکلابندی په دوران کې چې کله هغه له یوه پلاوی سره سلطان ته راغلې وُ ما ورسره ولیدل، دهغه دملګریو څخه څو تنه دبیرته ستنیدو پرځای، زموږ له پوځ سره ملګرې شول. او په هغوی کې یو د اسلام دمُبلغ په توګه دلته اوسی هغه به د عبدالله په باب ټول معلومات درکړي، زما باوردی چې عبدالله به ستا لپاره ډیر ښه مرستندوی شي. که ستا نه وي، نو ښایی هغه رام نات ته په ښه ورشي، که دی د خپلې هستوګنې پر وخت دسومنات د ساتونکیو په اړه سهی شمیره برابره کړه، نو دا به دې ډیر لوی خدمت وي، زه به د عبدالله په واسطه له تاسره د اړیکو ساتلو هڅه کوم، ستا په غیاب کې به دلته ستا دخور په لټون کې موږ هیڅ لټی ونه کړو، زه هیله من یم چې سلطان دشمال له ستونزو نه را وزګار شي، نو دګوالیار او کالنجر په لور به مخه کوی چې دهغو ریاستونوله نیولو څخه وروسته به زه دځایی خلکو او سردارانو په مرسته ستا دخور لټون کوم.

رنبیر وویل: زه خوښ یم چې تا زما د سفر هدفونه پراخه کړل، خو زما پر زړه یو بوج دی او له تلو دمخه له تاسره یو څو خبرې ضروری بولم.

- څه وایې؟

-زه پر دې خبره ځوریږم چې.وایم دسلطان له فتحو څخه تر اوسه پورې هغه نتیجې نه دی ترلاسه شوی چې زما ترې هیله ده. هغه د ظلم شړیدلې مانۍ ضرور را نسکوری کړې، خو تراوسه یې پر ځای هغه ودانۍ نه دې جوړې شوې چې په هغو کې د دایمی سولې، عدل او امن غوښتونکی او مینه وال پناه واخلي. هغه ازغی غوبل کړل، خو مړاوی ګلونه یې اوبه نه کړل.

هغه فتحې وکړې، خو ددې هیواد خلك تراوسه پورې ددې فتحو له نعمتونو څخه محروم دي. آیا دا ریښتیا نه ده چې په دې هیوادکې چې دسلطان له راتلو سره کوم انقلاب راغلی دی اغیزې یې سرسری او لنډمهالې دي.

هغه ددې هیواد د ویروونکو تیارو لپاره د یوه نوی سهار لمر نه دی، بلکې یو داسې ستورې دی چې له آسمان څخه لویږی او د لیدونکو سترګې د څو شیبو لپاره له اختسلو وروسته بیرته ورکیږي؟!

تاسو به له دې حقیقت څخه انکار ونه کړی چې د قنوج د راجه له ماتې سره تراوسه پورې ددې ځای اوسیدونکی د ظلم له نظام څخه نه دې ژغورل شوي. د سلطان ویرې چې کوم سرداران دهغه په اطاعت مجبور کړی دي، هغوی پر خلکو همدغسې مسلط دی او کله چې د سلطان ویره لرې شوه، نو په خلکو چې دعدل او انصاف کومې دروازې تاسې خلاصې کړی دي، هغه به بیرته وتړل شی او برهمنان به یو ځل بیا دخلکو پر ورمیږونو ورسپاره شي. تاسو به له دې حقیقت څخه ناخبره نه یاست چې د قنوج څو سرداران چې تاسو پرې اعتماد درلوده، بیرته له راجه ګندا سره په سازش او دسیسو لګیا دي؟

عبدالواحد ځواب ورکړ:

ماته هرڅه معلوم دي،خو زه پدې خبرواندیښمن نه یم،کوم کار چې تقدیر سلطان ته سپارلې هغه پوره کیږی هغه داسې حالات جوړ کړل چې د یوه نوی نظام لپاره مناسب دي، ددغو حالاتو څخه ګټه پورته کول زما او ستا کار دی. هغه دظلم کلاوې رنګې کړې چې ددې هیواد معماران د یوه نوی نظام دمانۍ تاداو پرې کیږدي، هغه د ظلم بیرغ رانسکور کړ، چې دعدل، برابرۍ او انصاف جنډې ورپیږي،هغه د ذلت او پستۍ په لور دانسان ور تیل وهونکو دیوتاګانو بوتان مات کړی دی چې موږ د انسانیت شعار اوچت کړای شو.

هغه د سیلاب دڅپې په څیر دی چې سیندونو او خوړونو ته داوبو لارې تیروي، ته به وګورې چې دظلم پرمانیو به دهغه ګوزار وروستۍ نه وی ، هغه چې کومه لاره هواره کړه، هغه به ډیر نور فاتحان دې هیواد ته راوبولي، دغزنی او هندوستان په منځ کې به دهغه د پښو خاپونه یوه ورځ د یوې داسې لویې لارې کار ورکړی چې په هغو به زموږ راتلونکې نسلونه نوی قافلې ووینې، دهغو مساپرو قافلې چې په لاسونو کې به یې دتورو پر ځای، د لارښوونې دنور مشالونه وي. دغه خلك به ستا غوندې انسانانو سره په ملګرتیا هغه ودانۍ بشپړوي چې د بنسټ د کیندلو کارې خدای جل جلاله سلطان محمود ته سپارلی دي.

Bawar.net

اوس هم دافغانستان د غرونو او دګنګا د دښتو تر منځ په سلګونو داسلام ددین بلونکی په پوره آزادۍ تبلیغ کوی او هغوی ددې هیواد په زرګونو زړونو برۍ موندلی دی. دهغوی د سوله ییزو بریو اغیزې تردغو بریاو ډیرې زیاتې دی چې سلطان د توری په زور تر لاسه کړی دي. له هندوستان څخه بهر د اسلامی هیوادونو تاریخ لیکونکی ښایی سلطان دیوه باعزمه فاتح په توګه یاد کړي، خو کله چې ددې هیواد تاریخ لیکونکي دهغه دبریو کیسې ولیکي، نو هغه به دا حقیقت هیڅکله هم هیر نه کړی چې هغه د یوې نوی زمانې زیرې راوړونکی او د نوی مشال درلودونکی ؤ، هغه یوازې ددې هیواد د مغرورو شاهانو ورمیږونه ټیټ نه کړل، بلکې دهغو بُتانو طلسم یې هم مات کړ چې دهغو په خدایی کې دانسانیت دراپورته کیدو هیڅ امکان نه و، ستا دا اعتراض بالکل سهی دی چې سلطان ددې هیواد په فتحه شویو سیمو کې د نظام واګې پخپله په خپل لاس کې وانه خستې، خو ته دهغه مجبوری باید له پامه ونه غورځوې. هغه دخپل ژوند زیاته موده د آس پر شا تیره کړې ده. دهغه د ژوند پر واټ دسکون او آرام لپاره کوم ځای نشته . دهغه منزل تل کوم دجګړې ډګر وي، دنړۍ نیولو هڅو د نړۍ ساتنې او پاچهی فرصت نه دی ورکړې. په زیات شمیر نیول شویو هیوادونو د تسلط لپاره هغه ته د خپل اوسني پوځ څخه څو چنده زیات پوځ ته اړتیا ده. له هندوستان څخه بهر دهغه تکر له هغو طالع ازمویونکو سره دې چې د واک تختونه دخپلو پلرونو میراث بولي، هغه خلکو هیڅکله هم ده ته د نابستې فرصت نه دې ورکړی. په هند کې د هغو ټکرله یوه داسې کلتور سره دی چې واک درلودونکی طبقه یې دخدایی دعوه کوي، په دغسې وضع کې سلطان ته یوه لاره په مخ کې داده چې په یوه محدوده سیمه تسلط ولری او خپل ژوند یې د هغې په انتظام او ادارې په سنبالولو لګولی وای، بیا یې ښایی نظر د شمال او جنوب پر هغو لرې پرتو هیوادونو نه وای لویدلی، خو هغه د ځان لپاره دوهمه لاره غوره کړه، یا داسې وو ایه چې خدای هغه د یوه واکمن پر تخت د کینولو پرځای، دیوه سرتیرې د ذمه واریو سرته رسولو ته غوره کړی دي.

دیوه سرتیرې په توګه دهغه د بري راز په دې کې دی چې خپل ټول پوځ یوه مرکز ته راټول کړي.

فرض کړئ چې که هغه په خپلو لومړنیو حملو کې دلغمان اوسند دریاب ترمنځ پر پراخو سیمو د واکمنۍ ټینګولو هڅه کړې وای، نو ده به دخپل پوځ یوه زیاته برخه هملته پریښودله. ددې نتیجه به داوه چې په مرکز کې به یې ځواک کمزورې کیده، بیا به له یوه پلوه په شمال کې غلې شوې کسان دده پرخلاف راپاڅیدل اوبل لوری ته به په هندوستان کې پاچهیو دده پرخلاف دسره یو کیدو فرصت ترلاسه کولو، ځکه خو ددې خطرونو څخه د ژغورنې په خاطر، سلطان خپل ځواکونه متحد وساتل. هغه یو لوري ته هرکال شمال ته له خپل ټول پوځ سره تلو او خپل مخالفین یې پردې قانع کول چې دده په ځواک کې هیڅ کمی نه دی راغلی. له بله پلوه یې په هندوستان او ویهند کې پر واکمنو پرله پسې ګوزارونه وکړل او دهغوی حوصلې یې د تل لپاره ماتې کړې، ځکه خو نن دهغه د ګوتو په شمار کسان د بغاوت له خطر پرته دشمالی هند پر سیمو حکومت کوي. که خدای جل جلاله سلطان ته مهلت ورکړ، نو یوه ورځ به په منځنی هندوستان کې هم دغه وضع وي. اوس هم که زه له کم شمیرکسانو سره په قنوج کې ایسار یم او زما پرخلاف کوم بغاوت نه دی شوی، نو سبب یې د غزنی دهغه لشکر څخه ویره ده چې په هر لوري له ټول قوت سره حملې ته چمتو وي.

زه دهغو سردارانو په اړه هیڅ اندیښنه نه لرم چې دسلطان داطاعت له منلو وروسته یې بیا په راجه ګنډا پورې هیلې تړلې دي. د راجه ګنډا د واکمنۍ ورځې پوره شوی دي. دهغه داقتدار له ختمیدو سره به دهغو خلکو هیلې هم له خاورو سره ګډې شي، خو پر دی برسیره که سلطان تر څه مودې په نیول شویو سیمو خپل تسلط ټینګ نه کړ، نو سبب به یې دا وی چې سومنات ددې هیواد وروستی دفاعی برج دی. د سومنات ماته به ددې هیواد د دیوتاګانو او دهغوی دپالونکیو وروستی ماته وي، د سومنات بُت دهندوستان تر ټولو لوی بت دی. او ددې له ماتولو وروسته به دسلطان هدف پوره شي.

# د شکنتلا کیسه؟

شکنتلا دخپل ورور له بیرته راستنیدو اونویو حالاتو څخه بې خبره وه او څو میله لرې یې د ګوالیار د یوه بزګر په کور کې د ژوند شپې ورځې تیرولې. د "جی کرشن" د حملې په شپه چې له ماښې څخه وتښتیده په لامبو له سیند څخه پورې وتله. خو له هغې وروسته نه پوهیده چې چیرته ولاړه شي. هغې کری شپه دسیند پرغاړه مزل وکړ.

سهار وختی چې ډیره ستومانه شوه، یوځای کیناستله. دلمر راختو نه لږ وړاندې دنژدې کلی یو بوډا سړی اودهغه میرمن هلته ورغلل او له شکنتلا څخه لږ لرې دسیند پر غاړه له بلې غاړې څخه د کښتی د ورتلو په انتظار کیناستل. دغه بوډا چې کیدارنات نومیده. دګوالیار اوسیدونکی و او له خپلې میرمنې سره دخپل خسر دلور د واده لپاره راغلې و او اوس له خپلې میرمنې سره بیرته ګوالیار ته روان و.

دکیدارنات میرمنې چې یوه ښکلې پیغله خپه او پریشانه ولیده چې پر څېګان برسیره یې له څېرې څخه د امارت او شتمنتوب احساس کیده، خپل خاوند ته یې وویل:

داسې ښکاري چې دغه نجلۍ په څه مصیبت کې ده، دهغې له ښې څخه معلومیږی چې دکومې ښې کورنۍ څخه ده. وګوره مخ یې څومره ښکلی دی. کیدارنات ځواب ورکړ:

ورشه د احوال پوښتنه یې وکړه.

دکیدار نات میرمن جګه شوه. له شکنتلا سره کیناسته او ویې ویل: لورې دلته څه کوې؟

شکنتلا ځواب ورکړ: هیڅ نه!

- لورې کور دې چیرته دی؟

شکنتلا په سلګیو شوه. خواب يې ورکړ:

- زما کور نشته.

دکیدار نات میرمن یوه لویه غوټه خلاصه کړه او یو څادر یې ترې راویوست، شکنتلا ته يې ورکړ ویې ویل: لوری یخني به دې شوی وي.

کیدارنات هم جګ شو نژدې ورغی او ویې ویل:

لوری ! ته غواړې چې چیرته ولاړه شې؟

شکنتلا ځواب ورکړ: زه نه پوهیږم. بیا جګه شوه یوې او بلې خواته يې وکتل او یوې خواته روانه شوه، دکیدارنات ښځې غږ پرې وکړ. ودریږه لورې، ښایي موږ درته په کار راشو. بیا ورجګه شوه، هغه يې له لاسه ونیوه.

شکنتلا غوښتل خپل لاس ترې خلاص کړي ویې ویل: ما پریږدئ چې ولاړ شم. تاسو زما سره مرسته نشی کولی. دلیوانو یو پوځ په ما پسې را روان دی، کیدارنات وړاندې ورغی ورته ویې ویل:

لوري! یو نوابزاده" راجپوت" چې کومه تورسر يې په مصیبت کې ووینې. دهغه دین دا اجازه نه ورکوی چې یوازې يې پریږدی او مخ ترې واړوي. لوری ته په موږ اعتماد وکړه.

شکنتلاله لړ زړه نا زړه توب څخه وروسته وویل: تاسو په دې کلي کې اوسې؟

-نه موږ دګوالیار اوسیدونکی یو. دلته د یوه خپلوان د لور دودیدو لپاره راغلي وو. اوس بیرته روان یو. که ته ددې سیمې د اوسیدونکو مرستې ته اړتیا لرې، نو موږ به دې خپلوانو ته ورسوو دهغوی کلی له دې ځایه یوازې یو میل لرې دي.

-نه غواړم له دې ځایه ډیره لرې ولاړه شم.د سیند له بلې غاړې څخه یوه کیښتۍ راروانه وه او په هغو له څو نارینه او ښځو څخه پرته درې آسونه هم وو. کیښتۍ چې نژدې راغله. شکنتلا درې وسله وال کسان ولیدل او رنګ يې تک ژیړ شو، هغې څو شیبې په چوپه خوله کیدارنات او دهغه میرمنې ته کتل. بیا يې په غریو نیولي غږ وویل:

- دغه ځمکه په ما تنګه شوې ده. لکه چې دغه وسله وال کسان زما په لټون پسې راغلي دي.

کیدارنات وویل: اوس ستا د تیښتې هیڅ امکان نشته. بیغمه کښینه. بګوان به دې مرستندوی وي. شکنتلا بې له دې چې څه ووایي، چوپه خوله یې سر ځوړند کړ او کیناسته. دکیدارنات میرمن چې دې ته نژدې ناسته وه، څادر یې ترې لرې کړ اوشال یې پر سر ور واچاوه.
کیښتی څنډې ته راورسیده، وسله وال کسان ترې راکوز شول او په خپلو آسونو سپاره شول، یو سپور ور وړاندې شو له کیدارنات څخه یې وپوښتل: ته څوك یې؟
- صیب زه یو غریب بزګر یم.
- له کومه ځایه راغلې او څوك درسره دي؟
- صیب دا زما لور او میرمن دي. موږ دلته د نژدې کلی څخه راغلې یو. خپله لور مې دخسرګنی څخه خپل کور ته راسره بیایم.
- ستا کور چیرته دی؟
- صیب: زما کور د سیند پورې غاړې ته نژدې لس میله وړاندې دی.
- څومره څنډ دلته وې؟
- موږ تر دیره د کیښتی په انتظار وو.
- تا خو به په لاره کې کومه ځوانه او ښکلې نجلی نه وې لیدلې؟
- :صیب . نه!
وسله وال سړی غوښتل نور هم څه ووایی . خو لږ لرې یې د ښځو اوناریته وو یوه ډله ولیده چې کیښتی ته را روان وو. هغه آس ورپونده کړ او هغوی ته لنډ ورغی، له هغوی سره یې خبرې کولې چې پاتې دوو ملګریو بې په لوړ آواز پرې غږ کړ:
ته هسې وخت تیروې، موږ ډیر وړاندې راغلو او له سیند څخه راپورې وتو، هغې به له سیند نه تر پورې وتلو وروسته همالته لنډ په کوم کلی کې دغلې کیدو هڅه کړې وي. اوس موږ باید بیرته بر ولاړ شو، امکان لری چې پیاری لال او دهغه ملګریو هغه پیدا کړی وي. وسله وال کسان د سیند برې خواته روان شول او شکنتلا دکیدارنات او دهغه له میرمن سره په کیښتی کې کیناسته، چې له سیند څخه پورې وتل .شکنتلا یو ځل بیا په حیرانی او بې وسی کیدارنات او دهغه میرمنې ته کتل او ودریده.

کېدارنات ورته وویل: راځه لوری! له مونږ سره ولاړه شه.

شکنتلا وویل: زه داسې احساسوم چې بګوان تاسو زما دمرستې لپاره را استولي یاست. خو په یاد ولره چې نا مانه لور ویلی دی.

- مونږ به تل تا خپله لور ګڼو! راځه!

. . . . .

څو ورځې وروسته شکنتلا د کېدارنات دوی کورته رسېدلې وه، کېدارنات د ګوالیار پلازمېنې ته نژدې په یو وړوکي کلي کې اوسېده. هغه یو معمولی بزګر و، خو د خپلې هوښیارۍ او شرافت په سبب یې کلیوالو ډیر درناوی او عزت کاوه. دکلي مشر یو دنفوذ خاوندسړی و، شاوخوا کلی دهغه ملکیت وو، دګوالیار د راجه وزیر دهغه خپلوان و او د سیمې هر سړي دهغه یوه اشاره دځان لپاره حُکم باله. ګاونډی سرداران به دده په مخکې دنوکرانو په څېر ولاړ وو. خو هغه هم د کېدار نات درناوی کاوه.

دشکنتلا په راتګ کېدار نات او دهغه مېرمن له خوښۍ په جامو کې نه ځایېدل.

هغوی اولادونه درلود. دوی به خپلو ګاونډیو ته ویل:

د صبر مېوه خوږه وي. بګوان په بوډاتوب کې یوه داسې نجلۍ راکړه چې له سپوږمۍ نه ډېره ښکلې او له ګنګا څخه زیاته سپېڅلې ده. مونږ اولاد نه درلود او شکنتلا مور او پلار نه لري. بګوان را باندې مهر بانه شو او د ګنګا پر غاړه یې مونږ یو له بل سره مخامخ کړو. ترڅو ورځو پورې د شکنتلا د ښیګڼو غږ دکلی دمشر تر مانۍ پورې ورسید، دمشر ښځې دکېدار مېرمنې ته پیغام راواستاوه اودهغې دلیدو هیله یې وکړه، د کېدارنات مېرمنې هغې ته پاکې جامې وراغوستې او کور ته یې وروستله چې له همدې ورځې وروسته دکلی د ملك لور بهاګونتی ددې ښه خولنهشوه.

شکنتلا پوهیده چې جي کرشن به ددې په لټون کې یوه دقیقه هم غفلت ونه کړي او که دې دغه راز خلکو ته ځرګند کړ، چې دموهن چند لور ده. نو امکان لری یوه ورځ د چې کرشن تر غوږوپورې دغه خبره ورسیږي. ځکه خو له کېدارنات او دهغې له مېرمنې پرته چې چا ددې دتیر ژوند په اړه څه

پوښتنه تري کوله. دې ځان ترې تیراوه او ورته ویل به یې چې زه له یوه ورور پرته چې له مسلمانانو سره بندي دی، نور هیڅوک نه لرم.

دوې میاشتې وروسته کیدارنات د شکنتلا د کلي دوضعې د احوال اخستلو لپاره ولاړ، چې بیرته راستون شو، د رنبیر د نیول کیدو او تیښتې کیسه یې وکړه او شکنتلا ته یې وویل چې ته دا باید راز له ځان سره وساتې، جی کرشن دقنوج دنوی راجه په دربار کې ډیر زیات نفوذ پیدا کړی دی، او دقنوج نوی راجه او دګوالیار لوی راجه یو د بل دوستان دي.

که جی کرشن پوه شي چې ته په دې کلی کې یې، نو دغه ځای به هم ستا لپاره خوندی نه وي، هغه ستا د درك معلومولو په خاطر ډیر لوی انعام ټاکلی دی. او دسیمې ټول سرداران دهغه پلویان شوی دي، ستا ورور بیا په دې سیمه کې پل نشي ایښودلی.

له دې وروسته دخپل ورور په باب د شکنتلا اندیښنه ډیره شوه او بیا چې یوه ورځ دې دغه خبر واورید چې د سلطان پوځونو د باړي او قنوج د نوی راجه له ماتولو وروسته د کالنجر په لور مخه کړې ده. دې کیدار نات ته وویل: کاکا! ته خو یوځل بیا زما د کلي احوال راوړه.

که زما ورور یوځل بیا هلته راغلی وي. زما باور دی چې د راجه دملاتړ له لاسه ورکولو وروسته جی کرشن زموږ پر کلي خپل واك نشي ساتلی. زما ورور آرام نشي کیناستلی. هغه چې وخت موندلی وی پر کلی به یې حمله کړی وي، زما ورور چې د وطن لپاره څومره قرباني ورکوي. دسیمې خلك ترې خبر دي؟

هغوی به خامخا ملاتړ ورسره کړی وي، کیدارنات وویل:

زه پخپله داسې احساسوم چې د جی کرشن په څیر خلکو به د قنوج دنوی راجه په څیر هیواد پرېښی وي او تښتیدلی به وي، دقنوج اوسیدونکي دخپلو هغو سردارانو سره سخت مخالف وو چې ترلوچن یې دخپل پلار پر خلاف بغاوت ته هڅولی و. زه به هلته خامخا ورشم

کیدارنات بله ورځ له خپل کلی څخه روان شو. څو ورځې وروسته یې چې دقنوج په حدودو پښه کیښوده د رنبیر دکلی دنویو حالاتو خبرونه یې واوریدل. هغه حیران شو. دایی نشوانی منلی چې د شکنتلا ورور دې له

مسلمانانو سره ملګرتیا کړې وي او دهغوی د مرستې لپاره یې دې پوځ راټول کړی او کالنجر ته دې تللی وي، خو دلاړې د هرکلي خلکو دغه خبره تصدیق کړه اوس دده په وړاندې تر ټولو مهم سوال داو چې شکنتلا له دې وضعې څخه څه ډول خبره کړې؟

دده په وار وار له خانه پوښتل چې آیا زه بیرته ولاړ شم شکنتلا ته به دا وویلی شم چې ورور دې دخپل دین او وطن دښمن شوی دی؟

کیدارنات چې د رنبیر کلي ته ورسید د کالنجر د راجه د ماتې خبر یې واورید چې ډیر یې خواشینی کړ، د رنبیر په خلاف دهغه په زړه کې له پخوا څخه کرکه راپیدا شوې وه، اوس دغه کرکه نوره هم زیاته شوه. هغه بې له دې چې د رنبیر دوی په کلي کې دهغه دخور په اړه له چا سره څه خبره وکړي.بیرته پر سبند پورې ووت اودخپلې میرمنې له خپلوانو کره ولاړ. هلته تر څو ورځو پورې په ذهني کشمکش کې و. کله به یې دا په خیال کې ورغلل چې د رنبیر تر راتلو دمخه بیرته ستون شي او کله به یې د ضمیر غږ ددې ارادې مخالفت کاوه. څلور ورځې وروسته هغه خبر شو چې رنبیر کلي ته راستون شوی دی. له دې سره چې خبر شو چې سلطان محمود رنبیر دکالنجر په جګړه کې د سلطان د ملاتړ په انعام کې دټولې سیمې دسردارانو مشر ټاکلی دی.نو دهغه په زړه کې دکرکې هغه اور چې لږ څه غلی شوی و. بیا په لمبو شو اوس دده وروستی پریکړه دا وه چې زه به بیا درنبیر کلي ته ورنشم. زه له هغه سره نه ګورم. هغه زموږ د وطن له دښمنانو سره د اړیکو ټینګولو نه وروسته د شکنتلا غوندې "دیوي" د ورور کیدو حق نه لري. شکنتلا اوس باید پردې وپوهیږي چې ورور یې مړ شوی دی. دکیدار نات میرمن دکور په انګړ کې ناسته وه څرخې یې کاوه چې بهر یې د ماشومانو غږ واورید:

کاکا راغی، کاکا راغی! لږځنډ وروسته کیدارنات انګړ ته وردننوت اویوې بلې خوانه یې وکتل پوښتنه یې وکړه: شکنتلا چیرته ده؟ میرمنې یې ځواب ورکړ. هغه د "ملك" لور ته ورغلې ده. نا ډیرې ورځې تیرې کړې دهغه د ورور څه درك معلوم شو؟

کیدارنات دځواب پر ځای د لرګو چیله تیله کړه او ترخوایي کیناست. میرمنې یې چې په څیره کې د اندیښنې کرښې ولیدې دخپلې

پوښتنې تکرارول یې لازم ونه بلل څرخه یې پرېښوده چگه شوه ویې ویل: زه اوس ډوډۍ درته تیاروم.

- نه ما په لاره کې په یوه کلي کې ډوډۍ خوړلې ده. یوازې یخې اوبه راوړه.

- شیدې راوړم؟

- نه، یوازې اوبه راوړه!

دکیدار نات میرمنې له منګي نه یو خاورین جام راډک کړ او ده ته نژدې په یوه کونده کیناستله، کیدارنات د اوبو له څښلو وروسته مخ ور واړاوه ویې ویل: ویرېږم چې که شکنتلا ته رښتیا خبره وکړم، هغه به ډېره خپه شي.

میرمن یې وارخطا شوه ویې ویل: څه چل شوی دی؟

کیدارنات ځواب ورکړ: دهغې ورور خپل کلي نیولی دی، خو له مسلمانانو سره یو ځای شوی دی پر قنوج حمله دهمده دخیانت په سبب شوې ده. دکالنجر په جګړه کې هم هغه د مسلمانانو ملاتړ کړی دی. دده په هڅو د شاوخوا ټولو سردارانو د مسلمانانو اطاعت منلی دی او هغوی هم د کالنجر په جګړه کې د مسلمانانو ملاتړ کړی دي.

میرمنې یې وویل: زما باور نه راځي چې دشکنتلا ورور دې داسې شي. هغه خو خپل ورور انسان نه، بلکې دیوتا ګڼي. د بګوان لپاره دغه خبرې شکنتلا ته ونه کړې، هغه به مړه شي. د خلکو پیغورونه به ورته له زغم نه وتلي وي.

- خو هغه په ناخبرۍ کې ساتل هم سهي نه دي.

میرمنې یې ځواب ورکړ:

که هغه له دین څخه ګرځیدلی وي، له شکنتلا سره یې ټولې رشتې غوڅې شوی دي، په ژوند هغې ته ورتلل خو پرېږده په مرګ به هم دا ونه غواړي چې داسې ورور یې دی پر بدن لاس ولګوي.

دبګوان لپاره نه شکنتلا ته هیڅ مه وایه، یوازې دومره ورته ووایه چې رنبیر تراوسه کلي ته نه دی راغلی، دهغې لپاره بیا دا فکر آسانه دی چې هغه مړ شوی دی.

که دغه خبره چوپه پاتې شوه، نو موږ به شکنتلا ښه ځای واده کړو. د "خان" ښځه له یوې مودې راهیسې پرهغې زیاته مهربانه ده امکان لري دا دخپل

زوی لپاره خوښه کړي. خو که خلکو ته معلومه شوه چې دا درنبير په خير ورور خور ده، نوددې لپاره به بیا هېڅ د ټيکې ځای نه وي.

کیدارنات څه ويل غوښتل چې شکنتلا انګړ ته ورننوته وړاندې ورغله اوپه پوښتونکی نظر يې هغه ته کتل. کیدارنات ورجګ شو او په سر يې لاس راتير کړ په غمجنه لهجه يې وويل. لوري! افسوس چې ستالپاره مې کوم زيرې نه دی راوړی، ستا د ورور هيڅ درك معلوم نه شو.

شکنتلا په غريو نيولی آواز وپوښتل

آيا ته زموږ کلي ته تللی وې؟

- هوکې! خوستا د ورور په باب مې هيڅ خبر ترلاسه نه کړ.

- آيا زموږ مانۍ تراوسه پورې د جی کرشن په واك کې ده؟

ديوې شيبې لپاره دکيدار نات حوصله پای ته ورسیده، خو دميرمنې په اشاره يې په مړاوي غږ وويل: هوکې!

دشکنتلا په سترګو کې اوښکې وځليدې، کيدارنات له لږ چوپتیا وروسته وويل:

لوري! لومړۍ ځل چې زه هلته ولاړم نو راته معلومه شوه چې دشپې مهال ستا ورور د جی کرشن له سپاهيانو څخه چاڅغورلی ؤ هغوی مسلمانان وو. ما دغه خبره ددې لپاره تاته ونه کړه چي ته به يې پرې خپه شې ، دا ځل زه په دې ګومان هلته ولاړم چې ښايي دغه خبره رښتيا وي او مسلمانانو دقنوج له نيولو وروسته ستاسودکلي په نيولو کې له هغه سره مرسته کړې وي.

شکنتلا په سلګيو کې وويل: زما د ورور په باب بايد د يوې شيبې لپاره هم دا سوچ تا نه وای کړی، نړۍ به بدله شي، خو هغه نشي بدليدای، که رنبير دمسلمانانو په مرسته پاچا شي، هم نوزه په شاندارومحلونو کې داوسيدو په ځای دا خوښوم چې ګدايي وکړم او خپله ګېډه وپالم.

* ****

دکلي د ملك لور بها ګونتي دشکنتلا ډيره ښه ملګري شوې وه، هغې به هره دوهمه او دريمه ورځ شکنتلا خپل کاله ته وربلله، له قنوج څخه د کيدارنات له راستنيدو وروسته شکنتلا څو ورځې ډيره غمجنه وه بهاګونتي

دوه ځلې نوکره ورپسې راواستوله خو دواړه ځلې دې پلمه وکړه چې طبعه یې ښه نه ده ورسره ولاړه نه.

یوه ورځ بهاګونتې پخپله ورپسې راغله او شکنتلا مجبوره شوه ورسره ولاړه، چې د بهاګونتې کور ته ننوته. هغې یو ځوان ولید چې د انګړ څخه بهر ته راووت ، هغه ورو ورو نګوښیده او را روان و.

بهاګونتې چې ورنژدې شوه ترې ویې پوښتل:

ورور چیرته ځې؟

هغه ځواب ورکړ: لږ بهر ته ځم!

شکنتلا د بهاګونتې ورور دوه ځله پخوا هم لیدلی و خوهغوی ته دا معلومه نه وه چې ګوډ دی. هغې لومړی ځل په تلو کې ولید. څو ګامه چې نورې وړاندې تیرې شوې هغې له بهاګونتې څخه د ورور د ګوډتوب سبب وپوښت. هغې ځواب ورکړ چې ورور مې په جګړه کې ټپي شوی و.

شکنتلا پوښتنه وکړه: په کومه جګړه کې!

-دسرسوا په جګړه کې. له ګوالیار څخه دسرسوا د راجه د مرستې لپاره یو پوځ تللی و. ورور مې هم په هغه کې له آس څخه لویدلی و او پښه یې ماته شوې وه او بندي شو. په بیرته ستنیدو کې مسلمانانو ډیر بندیان پریښودل، خو زما ورور یې ورسره بوتلو. له ننده څخه څو بندیان راخوشي شول. هغوی احوال راکړ چې ورور مې په ننده کې په جیل کې دی. پلار جان مې پخپله هلته ورغی. فدیه یې ادا کړه او ورور جان مې یې را خوشي کړ.

شکنتلا ترې وپوښتل: ورور دې په ننده کې بندي و؟

- هوکې!

- زما ورور هم هلته و، ښایي دهغه په باب څه معلومات ورسره وي، لږ دې ورور جان راوغواړه.

بهاګونتې سمدستي په خپل ورور پسې نوکره ور واستوله او پخپله له شکنتلا سره دمانۍ یوې کوټې ته ولاړه. لږڅند وروسته دبهاګونتې ورور ګلاب چند هم هلته ورغی. شکنتلا چې ولید بې له څه مقدمې یې وویل: زما ورور دننده په کلا کې بندي و. ښایي ته یې وپیژنې. دهغه نوم رنبیر و.

Bawar.net

- رنبیر ! هغه ستا ورور و؟
ګلاب چند شکنتلا ته وکتل ویې ویل:
- نو ته هغه پېژنې؟
ګلاب چند ځواب ورکړ: هوکې! د کلاټولو بندیانو هغه پېژاند.
- ! ته معلومه ده چې هغه اوس چیرته دی، دبګوان په روی راته ووایه!
ګلاب چند ځواب ورکړ: هغه یې زما څخه یوه اونۍ د مخه خوشې کړ، زه حیران یم چې هغه ولې تاته نه دی راغلی؟
شکنتلا وویل: زه دومره خبره یم چې هغه کله خوشې شو کورته راغلې و، خو زموږ کلي زموږ یوه دښمن نیولی و، هغه ددښمن په لاس کې لویدلې و، خو وروسته یې ځان وژغوره، چیرته وتښتید، بګوان پوهیږي چې اوس به هغه چیرته وي. د ګلاب چند دپوښتنې په ځواب کې شکنتلا دخپل ژوند اوږده کیسه ورته تیره کړه. هغه تر لږ وخته په فکر کې ډوب شو، بیا یې شکنتلا ته وکتل ویې ویل:
ستا ورور له داسې ذلیل دښمن څخه ماته نشي زغملی که هغه ژوندي وي، خامخا به بیا ننده نه ته تللی وي. د ننده نه د کلا حاکم پر هغه زیات مهربانه و. زما باور دی چې هغه به یې هر ډول مرسته وکړي.
دشکنتلا څیره ناځاپه له غوسې تکه سره واوښته او ویې ویل: زما ورور داسې نه دی. هغه به له مسلمانانو څخه د مرستې پرځای مرګ غوره وبولي.
ګلاب چند په ډاډه زړه ځواب ورکړ: زما ستا د ورور توهین مطلب نه دی. که زه دده پرځای وای هم همدغسې به مې کول. د ننده نه دکلا حاکم له هغو خلکو څخه و چې هر چا خپل دوست ګاڼه. که ته د ننده نه له کوم بندي سره خبرې وکړې، نو درته وبه وایي چې هغه انسان نه و دیوتا و.
ستا ورور ناروغ و او هغه به یې پوښتنې ته راتلو. ستا ورور له ژونده مایوسه شوې و. خو هغه یې په زړه کې د ژوندی پاتې کیدو. هیله پیدا کړه. بیا په داسې حالاتو کې چې تاسو وویل دهغه هلته تلل دحیرانی خبره نه ده. زما باور دی چې کومو کسانو هغه لیدلي دي په هغوي کې به زیاتره بیا دمسلمانانو پر خلاف توره اوچته نکړي.

شکنتلا وویل: که هغه ننده نه تللی وای او د ننده حاکم مرسته ورسره کړې وای. نو تر اوسه باید پر کلي حاکم پاتې وای خو کیدارنات کاکا دا اوس زموږ کلي ته ورغلی ؤ او زما د ورور نه هیڅ خبر نه شو

ګلاب چند ځواب ورکړ:

ما داسې ونه ویل چې هغه به خامخا هلته تللی وي ، امکان لري هغه د کوم دوست کره تللې وي او له خپل دښمن څخه دکلي د بېرته نیولو لپاره به دمناسب فرصت انتظار کوي. په هرصورت. که هغه ژوندی وي خامخا به یو وخت خپل کلي ته راشي او که ضرورت شو زه به یې پخپله د احوال لپاره ولاړ شم.

* * * * *

دکالنجر واکمن ته له ماتې ورکولو وروسته سلطان ته دخپلې پراخې پاچاهۍ د شمالي هیوادونو حالاتو دااجازه ورنکړه چې د جنوب په لور نور وړاندې تګ وکړي اوناڅاپه بېرته ستون شو. سره له دې چې راجه ګندا د جګړې له ډګر څخه وتښتید. خو پوځي زیان یې دومره نه ؤ شوی چې بې غیرتي وکړي اوکرار کښیني. دکالنجر کلا اوس هم ده نه ماتیدونکې ګڼله. ځکه خو د سلطان دبېرته ستنیدو سره سم هغه یو ځل بیا له مسلمانانو سره دپریکنده جګړې تیارۍ شروع کړ.

عبدالواحد په قنوج کې ؤ اود هغه حیثیت د یوه حاکم او یا والي پرځای د یوه بلونکي او مُبلغ ؤ. دده هدف دقنوج دخلکو په زړونو دسلطان د ځواک د رعب او ویرې دخپرولو پر ځای د یوه داسې ذهني انقلاب راوستل وو چې له هغو پرته دده په ګومان د هنددخلکو ژغورل کیدل ممکن نه وو.

دشاهي کورنۍ دواکمنۍ له ختمیدو وروسته د قنوج زیاتره سردارانو دسلطان اطاعت منلی ؤ. ځینې داسې هم وو چې خپله راتلونکې یې د کالنجر له سلطان سره تړلې وه. خو دراجه ګندا له ماتې وروسته هغوی هم یو پر بل پسې عبدالواحد ته ورغلل او د سلطان اطاعت یې ومانه. هغوی باور درلود چې سلطان به پر راجه ګندا اودهغه په ملاتړ کوونکو د وروستي ګوزار لپاره بیا راځي

عبدالواحد به هر د نفوذ خاوند سړي ته داویل چې دسلطان د خوښې ساتلو لپاره یوازې په خوله داطاعت څرګندول کافي نه دي. بلکې د اولس خوښې اورضا ترلاسه کول هم ضروري دي. له دې پرته تاسو په واك کې نشی پاتې کیدای، د سلطان په دربار کې د لوی او واړه توپیر نشته. هغه چې په کومو اخلاقی ضوابطو ایمان لري. هغه داسې کلتور نه مني چې انسانان د لیوانو او میږو پر ډلو ویشي. د قنوج سردارانو دخپل رعیت پرځای دعبدالواحد په واسطه د سلطان دخوښې او رضایت د ترلاسه کولو په خاطر دخپل رعیت ددوستی په ترلاسه کولوکې له یو بل سره سیالی کولې.

عبدالواحد به د قنوج هر ګوټ ته تلو، د اولس شکایتونه یې اوریدل او سردارانو ته یې دهغوی ذمه واری، وربښودلې. د اسلام مُبلغینو چې ځینې پکې هندی نوي مسلمانان هم وو دقنوج ښارونو او کلیو ته د اسلام پیغام رساوه. دعبدالواحد په څیر دغو خلکو هم د شر خوښوونکوسردارانو پر خلاف دخلکو فریاد ته ځانونه رسول په هغو حالاتو کې ټیټ ذاتو له پیړیو وروسته دامحسوسوله چې ددوی پر مخ دعدل او نیاو دروازې بیرته او دلوړ ذاتو دکبر مانۍ رانسکورې شوی دي. په جونګړو کې د اوسیدونکو په زړونو کې داسلامی ورورولۍ او برابرۍ شعور راپورته کیده. د دیوتاګانو په خمکه کې د لومړي ځل لپاره ټیټ ذاتو دا احساسوله چې موږ هم انسانان یو. خو څو میاشتې وروسته ددې ویښتیا پرخلاف خوځښت پیل شو. هغوکسانو چې یوازې د واك پر تخت د پاتې کیدو لپاره د سلطان اطاعت منلې و، اوس ورو ورو دا احساسوله چې دغه شعور ددوی د نسلی برترۍ پر خلاف د یوه برالا بغاوت پیلامه ده چې انسان ته د راپورته کیدو او خوځیدو فرصت برابروی نرخو یوه ورځ ددوی د کلتور او ټولنې په دیوتاګانو پورې ملنډې وکړې.

برهمنان چې ددوی د برترۍ راز دټیټ ذاتو په سپکولو کې و، له نوابزاده ګانو او سردارانو څخه زیات هوښیار او د لرې نظر خاوندان وو هغوی ډیر پخوا دشمال لوری لیده. هغوی به سردارانو ته ورتلل هغوی بې پوهول چې ستاسو د واکمنۍ ورځې پوره شوې دي. که تاسو په دې هیواد کې

د مسلمانانو مذهب ته دخپریدو اجازه ورکړه،نو یوه ورځ به مو له دنګو ماڼیو څخه راوباسي اوله دې تیټ ذاتو سره به مو برابر ودروي. اوس هم وخت دی راقابو شی او دخپل دین او وطن دښمنانو ته د وړاندې تګ او تښتیدو موقع مه ورکوئ.

د کالنجر راجه له دې هیواد څخه د مسلمانانو دایستلو یو داسې پوځ راټولوی چې د سلطان محمود پوځ دخس او خاشاك په څیر ورسره وبهوي. تاسو د پریکنده جګړې په خاطر له هغوی سره ملګرتیا ته چمتو شئ، د برهمنانو ددغه فعالیتونو په سبب د قنوج زیاتو سردارانو یوځل بیا خپله راتلونکې له راجه ګنډا سره غوټه کړه.

# د خوښيو سهار

هغه راځي! هغه د ګواليار له سرحده راتير شوی دی، هغه د ګواليار کلا محاصره کړې ده. خلکو يو پر بل پسې دغه خبرې واورېدې او ترڅو مخکې چې هغوی پر خپله وارخطايی راقابو شي، د ګواليار په ساره او اوږدو کې دا خبره مشهوره شوه چې مهاراجه ارجن وسله کېښوده.

د ملك زوی ګلاب چند د راجه د مرستې لپاره د اتو سوو تنو سره ورغلی و. د کلي خلك د جګړې د پيښو د پوهېدو لپاره دهغوی د بيرته راتللو په انتظار وو. بهاګونتی د خپل ورور په اړه زياته په انديښنه کې وه او کيدارناث دهغې د تسلي لپاره شکنتلا ته اجازه ورکړه چې څو شپې دهغوی کره پاتې شي. يوه ورځ ماسپښين شکنتلا په ماڼۍ کې په يوه کوټه کې له بهاګونتي اود هغې له مور سره خبرې اترې کولې چې له ماڼۍ څخه بهر د آسونو د پښو ترپهار پورته شو. دوی درې واړه په بيړه برنډې ته راووتې. په دې کې يو نوکر په منډه راغی او په لوړ غږ يې چيغې کړې: وړوکی آغا راغی.

لږ ځنډ وروسته ګلاب چند له خپل پلار سره غيږ په غيږ و اوستړی ښکاريده. ټوله ورځ يې سفر کړی و. يو چا ورته وويل چې هغه دې اول دمه وکړي، خو هغه ګلاب چند ځان ته راکش کړ او له مينې ډکو سترګو يې ورته وکتل. مشی يې کول.

تر لږ ځنډه دواړو يوله بل سره روغبړ وکړ. بيا ګلاب چند ګوډ ګوډ برنډې خواته روان شو. دکلي خلك د ګلاب چند پرهغو ملګريو راټول شول چې دماڼۍ څخه بهر ولاړ وو. لوی خان هم دهغوی د ليدو لپاره بهرته ور ووت. شکنتلا حيرانه وه چې پر ماته سربيره د ګلاب چند په څيره کې د خفګان او انديښنې نخښې نه وې. هغه په ډاډه زړه د مور د پښو له ښکلولو وروسته شکنتلا ته وکتل او بيا يې بهاګونتي ته وکتل. وی ويل: ما ستا د خورلڼې لپاره يو ښه خبر راوړی دی.

بهاګونتي ترې وپوښتل: څه ډول خبر؟

ګلاب چند د بهاګونتي پر ځای دا ځل شکنتلا ته وکتل او ويې ويل:
ستا ورور ژوندی دی.
د يوې شيبې لپاره دهغې ټول حواس په سترګو کې راټول شول.
اودخوښی او خفګان دګډوډو احساساتو په څپو کې يې وويل:
هغه چيرته دی؟ ناته دهغه په باب چا څه وويل؟ ګلاب چند په ډاډ ځواب ورکړ:
زه يوازې دومره پوهيږم چې هغه ژوندی دی کوم سړي چې ماته دهغه په اړه داخبره وکړه، ويې نه ويل چې هغه چيرته دی، په هر صورت، هغه ښايي تر سبا پورې پخپله دلته راشي او ستا انديښنه لرې شي.
- دا څوک دی؟
-عبدالواحد هغه څوک چې ستا ورور يې له جيل څخه خوشې کړ، هغه دسلطان محمودله خوا راجه ته د سولې دشرطونو سره راغلی و. کله چې د راجه له دربار څخه ووت موږ يو بل وپيژندل. له هغه سره دمسلمانانو د پوځ څو تنه نور افسران هم وو. د راجه وزير او د پوځ لوی سالار تر دروازې پورې د مخه ښې لپاره ورسره تلل. د وزير او ستر سالار په مخکې ما له هغه سره خبرې نشوای کولی. خو چې هغه زه وليدم راواړاندې شو اوسترګې مشی يې راسره وکړل. له څو رسمي خبرو اترو وروسته ماترې وپوښتل چې د رنبير په اړه احوال لرې که نه؟
هغه راته وويل چې زه دهغه په باب په ډير څه خبر يم.
ما ورته وويل: دهغه خور زموږ په کلي کې پريشانه شپې تيروي. زه غواړم هغه را پيدا کړم.
هغه حيران شو، ماته يې وکتل او زما لاس يې ونيو ويې ويل: زما سره راځه چې دواړه په پوره ډاډ خبرې وکړو.
زه له ده سره بهر ته ولاړم، چې له کلا نه ووتو هغه ستا په اړه ډيرې پوښتنې وکړې. ما ستا کيسه ورته وکړه. بيا هغه وويل چې د رنبير خور په خپل کلي کې دهغه پوښتنه ولې ونه کړه؟ ما په ځواب کې ورته وويل چې کيدارنات هلته تللې و. خو چې بيرته راغی او داخبر يې راوړ چې پر کلي تر اوسه د جې کرشن واکمني ده او د رنبير هيڅ درک نشته.

هغه وویل که کیدارنات هلته تللی وای، نو هیڅکله به یې داسې نه وو ویلي، ما تېنګار وکړ چې کیدارنات دروغ نشي ویلي.

وروسته بیا ده وویل: زه یو مهم خدمت تاته سپارم، خپل کلي ته ولاړ شه او ترڅو زه نه یم درغلی د رنبیر دخور ساتنه کوه، که ما اجازه ترلاسه کړه، نو ترسبا پورې به ستاسو کلي ته ځان در ورسوم، که نه نو د یوه مهم کار له ترسره کولو وروسته به بیا درشم، که کیدارنات زموږ له دغو خبرو اترو څخه خبر نه شي، نو غوره به وي.

ما په وار وارله هغه څخه پوښتنه وکړه چې رنبیر چیرته دی؟ خو هرځل هغه داویل چې رنبیر ژوندی دی، خو دهغه په اړه اوس زه څه نه وایم چې چیرته دی، ته د رنبیر خور ته یوازې دومره ووایه چې زه ددې د ورور دوست یم او کله چې ورسره مخامخ شم. دهغې ټولې پریشانی به لرې شی ماعبدالواحد ته دخپل کلی دلاری د بلدی په توګه یو کلیوال پرینبود او راغلم. امکان لري هغه سبا سهار ته دلته راورسیږي، خو هغه به له څو ساعته زیات دلته ایسار نه شي، ځکه خو که ته دکیدارنات کره دتلو پرځای همدلته پاتې شې، دابه غوره وي.

د ګلاب چند له خبرو څخه دهغه مور او خور داسې احساسوله چې د راجه دماتې اود ګوالیار له راتلونکی سره د هغه هیڅ خواخوږی اومینه نشته. هغه چې څومره په ډاډ له شکنتلا سره خبرې کولې هومره په اندیښنې او ناکراری دهغه مور او خور یو بل ته کتل. بالآخره یې مور وویل: اوس به د ګوالیار څخه څه جوړیږي؟

ګلاب چند په ډاډ ځواب ورکړ: مورې! ته دګوالیار په اړه اندیښنه مه کوه، د ګوالیار راتلونکې اوس هم ددې هیواد د راجه اودهغه د درباریانو په لاس کې دي، که هغوی د سولې شرطونه پوره کړل، نو ګوالیار ته هیڅ خطر نشته. خو که هغوی بیا څه غلطی وکړه، نو دمسلمانانو ګوزار به ډیر سخت وي.

د ګوالیار خیر په دې کی دی چې په راتلونکې کې دمسلمانانو پرخلاف په جګړه کې برخه وانخلي.

بهاګونتی وویل: څه ډول غلطي! آیا ستا په ګومان باید د ګوالیار

خلك ددې ماتې څخه وروسته سرونه راپورته نکړي؟

ګلاب چند ځواب ورکړ: زه پوهېږم چې څه موده وروسته به د ګواليار خلك مسلمانان خپل دښمنان نه بولي.

مور يې خپه شوه وې ويل: زويه!

آيا ستا په ګومان به هغوی ددغې ماتې ذلت هېر کړي؟

مورجانې! دا دګواليار داولس ماته نه ده، بلکې دهغه حاکم کلتور ماته ده چې دلوړ ذات او ټيټ ذات تر منځ په توپير درېدلی دی. دا دهغه راجه ماته ده چې خپل رعيت يې د ساتونکيو پرځای ليوانو ته ورسپارلی دی، دادهغو لوړ ذاتو برهمنانو ماته ده چې له ځانونو پرته نور څوك انسانان نه بولي، ددغه ماتې اغېزې به يوازې په هغو دنګو ماڼيو احساسېږي چې تاداو يې د بېوسه خلکو په هډوکو اېښودل شوي دي. دا د هغو ديوتاګانو ماته ده چې د انسانانو په منځ کې يې د کرکې او سپکاوي ديوالونه درولي دي.

يو برهمن او آغازاده پر دې خپه کېدای شي ځکه چې هغه له يوه ټيټ ذاتي سره په يوه کتار برابر درېدو ته چمتو نه دی، خو يو ټيټ ذاتی به دا بيا خپل بری وبولي.

شکنتلا وويل: ته چې يو راجپوت "نوابزاده" يې دغسې خبرې کوې؟

ګلاب چند ځواب ورکړ: هوکې! ما ته د يوه نوابزاده په حيث دداسې خبرو کول نه دي په کار. ځکه چې ماته دهمدې نامه په خاطر دولت، عزت او حکومت په لاس راځي.

خو اوس هغه وخت تېر شوی دی، زه سره له دې چې نوابزاده يم پر خپله ماته پر اعتراف مجبور يم، اوس زموږ مقابله د خپلې ټولنې له هغوټيټ ذاتو سره نه ده چې موږ يې په خپلو تورو او ديوتاګانو وېرول، بلکې زموږ مقابله له داسې خلکو سره ده چې په هر ډول پر موږ برلاسې دي.

شکنتلا وويل: ته خو له هغوی سره د جګړې لپاره تللې وې؟

ما دخپل پلارجان امر ومانه، خو له تلو څخه دمخه زما پردې خبره باور و چې راجه به له لږ معمولي مقاومت څخه وروسته وسله کېږدي.

دګلاب چند مور وويل: زويه! د بګوان په خاطر دخپل پلار د وړاندې داسې خبرې مه کوه، هغه راغی!

مورجانې! ته انديښنه مه کوه، پلار جان مې ترما ښه پوهيږي.

له لوی خان سره د کلی دوه بوډا کليوال وو، هغوی برنډې ته د راتلو پر لور ولاړل، ګلاب چند د لاس په اشاره ور وغوښت او بيا د مجلس د کوټې په لور ولاړل، ګلاب چند د برنډې له زينو څخه ورکوز شو او په هغوی پسې ورغی.

.....

بهاګونتي په منډه کوټې ته ورننوته او شکنتلا ته يې وويل: شکنتلا هغه راروان دی او هغه دلته راځي!

شکنتلا چې د بهاګونتي له مور سره ناسته وه وارخطا جګه شوه او ودرديده د بهاګونتي او دهغه مور له لږ ځنډ وروسته مخامخ بلې کوټې ته ولاړې او شکنتلا په کوټه کې يوازې ودريده. چې هره شيبه يې په مينه او تلوسه دروازې ته سترګې په انتظار اړولې.

له دروازې بهر يې چې د چا د پښو غږ واورېد، ددې د زړه درزا تونده شوه، ګلاب چند دروازې ته راغی او دننه يې ور وکتل او بيايې بهر ته وکتل وی ويل: تشريف راوړئ!

عبدالواحد د مشرخان سره يوځای کوټې ته ورننوت. هغه شکنتلا ته يونظر وکتل بيايې سترګې ښکته واچولې. خو له دې سره يې بيا يو نامعلوم خيال په زړه کې ور وګرځېد اوبيا يې د يوې شيبې لپاره شکنتلا ته وکتل او دې ته ورته ځيره يې د زړه له تل څخه راووته او دشعور مخې ته يې راغله. له خولې څخه يې بې اختياره ووتل: آشا!

ګلاب چند انديښمن شو وې ويل:

دا د رنبير خور ده او شکنتلا نوميږي.

عبدالواحد ټکان وخوړ، شاته يې ګلاب چند او مشر خان ته وکتل او بيايې په پښيمانه غوندې لهجه شکنتلا ته وويل:

وبخښې! زه په څه خيال کې ډوب شوم. زما ګومان نه راځي چې په دوو ځيرو کې دومره ورته والی هم امکان لري، زما نظر د لږ ځنډ لپاره

دو که وخوړه.

مشر خان وویل: تاسو کیښینئ، زه به مو ملګری ووینم او رابه شم، چې له کوټې څخه وتلو ګلاب چند ته یې هم اشاره وکړه او هغه هم ووت.

عبدالواحد په یوه کرسۍ کیناست او زړه نا زړه یې شکنتلا ته وویل: کښینه! هغه هم بیا دې ته مخامخ په یوه بله کرسۍ کیناستله.

عبدالواحد له څه مقدمې پرته وویل:

ما اوریدلي دي چې ته د کوم سړي په پناه کې یې، هغه بد سړی نه دی، خو زه په دې حیران یم چې هغه ته ولې په بدګومانۍ کې وساتلې. که هغه ستا کلی ته تللې وای، نو خامخا به یې تاته دغه خبر راوړې ؤ چې د قنوج په ګوټ ګوټ کې ستا لټون دوام لري د قنوج د نوی واکمن له ماتې نه څو ورځې وړاندې رنبیر خپل کلی بیرته ترلاسه کړ، او اوس دهغه د ژوند هدف ستا پیدا کول دي.

شکنتلا وویل: د بګوان لپاره راته ووایه چې هغه اوس چیرته دی؟

په دې ورځو کې هغه په خپل کلي کې نه دی. خو تاسو ډاډه اوسئ، هغه به زر بیرته راوګرځي.

-تاسو ته معلوم دی چې هغه چیرته دی؟

-هوکې!

نوبیا ماته ولې نه وایې زه دهغه خوریم. عبدالواحد دهغې له الفاظو زیات دهغې دهیله منو کتو تر اغیزې لاندې راغی وې ویل: آیا ته غواړې د خپل ورور ژوند په خطر کې وغورځوې؟

-نه!

- نو اوس مه پوښتنه چې چیرته دی

اوس ستا لپاره دومره پوهیدل بس دي چې هغه ته به ستا په باب خبر ور ورسیږي.

- هغه ته خو به کوم خطر نه وي؟

- نه ماته کوم یوه نیمه میاشت مخکې دهغه پیغام راورسید، له دې وړاندې که هغه ته څه خطر ؤ هغه اوس لرې شوی دي.

- آیا زه هغه ته نشم ور رسیدای!

- تاته دا غوره ده چې خپل کور ته ولاړه شي، د ګلاب چند پلار به دې هلته د رسولو بند و بست وکړي.

زه به دهمدې مقصد لپاره خپل څو کسان پرېږدم. زه به پخپله هم درسره تللی وم، خو زموږ پوځ به تر سبا پورې له ګوالیار څخه روانیږي او زه باید نن نه وي، د جی کرشن غوندې خلك په دې سیمه کې بیا پښه نشی اېښودلای.

- جي کرشن چیرته دی؟

- هغه پر کلی زموږ له حملې څخه وړاندې چیرته غلی شوی و.

- تا د کلي په نیولو کې زما له ورور سره مرسته کړې وه؟

- هو کې!

شکنتلا په ژورو چورتونو کې ډوبه شوه، یوې خواته دکیدار نات په اړه ددې زړه دا نه منله چې هغه به لاسی داپه دوکه کې ساتله، بل لوری ته دې د عبدالواحد په باب دا بد ګوماني نشوای کولی چې دروغ ورته وایي، هغه دداسې کسانو څخه ؤ چې په یوه نظر یې نور پرخپل خلوص اوصداقت اعتراف ته مجبورول، په څو شیبو کې دننه دهغه له څیرې څخه د پردیتوب پرده لرې شوه او شکنتلا د یوې ښځې په توګه دذکاوت د حس په واسطه د هغه د زړه تل ته ورکتل.

عبدالواحد وویل: که ستا زما په خبرو باور نه وی راغلی، نو ستا د تسلې لپاره چمتو یم چې ګلاب چند هلته ورسوم.

- نه، له ګلاب چند څخه ما ستا په باب زیات څه اوریدلي دی که ته ماته بلکل پردی وای هم ما به ستا پرخبرو شك نه وای کړی، زه یوازې پردې چورتی یم چی کیدار نات ولې هڅه کوله چې زه په څه خبره نه شم؟

-که تاسو غواړي، زه هغه دلته راوغواړم.

-نه ددې ضرورت نشته، کیدای شي چې کیدار نات له مسلمانانو سره زما د ورور په دوستی ناخوښ وی او هغه به په دې ګومان خبره له مانه پټه ساتله چې زه به پرې خپه شم.

- اوس ستا دخپل ورور په باب څه خیال دي؟

شکنتلا ځواب ورکړ: زما ورور یو دیوتا دی او زه به تل پرې ویاړم.

-تا دې خپل کور ته دتلو په باب څه پرېکړه کړې؟

دشکنتلا سترګې راډکې شوې او وې ویل: دا هم څه دفکر او خیال خبره ده،زه سمدستي غواړم هلته ولاړه شم.

عبدالواحد له کرسۍ څخه پاڅېد ویې ویل:

نو دلته زماکار پای ته ورسید ، تاسو سبا سهار ته له دې ځایه وخوځېږئ.

شکنتلا وویل: زه له تا څخه یوه پوښتنه کوم.

-وپوښته!

-ګلاب چند راته وویل چې تاسو زما پر ورور ډېر مهربانه وی، زه غواړم پردی وپوهېږم چې له هغه سره ستا د خواخوږۍ سبب څه و؟

عبدالواحد ځواب ورکړ: ستا دتسلې لپاره یوازې دومره ویل بس بولم چې هغه زموږ دخواخوږې ورجلبولو لپاره پر خپل غیرت معامله نه ده کړې.

شکنتلا په دومره روښانه الفاظو دخپل سوال ځواب اورېدو ته تیاره نه وه، هغه اندېښمنه شوه ویې ویل: تا پر ما غلط ګومان وکړ، زه مې دخپل ورور په باب داسوچ هم نشم کولی چې هغه به پر خپل غیرت داغ ولګوي،ما غوښتل یوازې پردې وپوهېږم چې له بند څخه دخلاصیدو څخه وروسته که د جې کرشن دښمني دهغه دژوند لاره نه وای بدله کړې، نو هغه به ستا او تابه دهغه په باب څه فکر کاوه. آیا هغه به ستا دمرستې ترلاسه کولو اودخپل کلي دنیولو نه وروسته په کومه خوا دورکېدو پرځای دخپل وطن دساتنې لپاره د قنوج، کالنجر او ګوالیار په جګړو کې برخه نه وای اخیستې؟

عبدالواحد بیرته پرکرسۍ کیناست ځواب یې ورکړ:

که تا په داسې پوښتنو کې بېړه نه وای کړې، نو ښه وه، که زما ځواب واوري، نو پرېشانه به شې، خو هغه ورځ لرې نه ده چې ته په دې خبرو کې له خپل ورور سره همنظره شې، که جې کرشن ستاسو پر کلي قبضه نه وای کړې او ته اوستا پلار د رنبیر د هرکلي لپاره موجود وای، هم هغه به زموږ پر خلاف په کومه جګړه کې برخه نه وای اخیستې. د هغه توره یوازې په هغه وخت کې زموږ په مقابل کې له تیکی راوتلې شوای چې دهغه په سترګو پردې وې. دهغو پردو د لرې کیدو نه وروسته هغه موږ ته ددښمن په حیث لیدل له امکان څخه لرې وو. اوس زموږ لاره دهغه لاره او زموږ هدف دهغه له هدف

سره یو شوي دي، ددې امکان وُ چې هغه کورته راشي ددې هدف په لور د ګام اوچتولو اراده بدله کړي، خو ددې هیڅ امکان نه وُ چې هغه دې زموږ په مخه کې دریدلی وای.

که هغه زموږ ملاتړ نشوای کولی، هم دعاګاني به یې زموږ سره وې، دجي کرشن ددښمني یوازینۍ نتیجه دا راووتله چې هغه ترډیره زړه نا زړه پاتې نشو، دا یوه متروکه وه چې په یوه ګوزار یې په تراټ له موږ سره یوځای زغاستې ته مجبور کړی دی.

شکنتلا ناکراره شوه وې پوښتل: په دې خبرو زما سر نه خلاصیږي. زه له تا څخه یوازې یوه پوښتنه کوم، زما هیله ده چې ته به په دروغو تسلی نه راکوي، له دې پیښو وروسته زما د ورور په باب ستا رایه څه ده؟

عبدالواحد ځواب ورکړ: زه د رنبیر پر دوستۍ ویاړم.

شکنتلا ناڅاپه په خپل زړه کې د خوښۍ تکانونه احساس کړل او د مننې تر احساساتو لاندې راغله وې ویل: ته ډېر زړه سواند یې. اوس دا راته ووایه چې ستاسو په جیل کې دهغه ورځې څه وړ تیرې شوې. دخوشي کیدو په مهال یې روغتیا څنګه وه او وروستۍ ځل چې کله تاسو هغه ولیده، څنګه وُ؟

عبدالواحد ددې پوښتنو په ځواب کې په لنډ ډول له رنبیر سره دخپل لومړني ملاقات څخه تر وروستي پورې ټوله کیسه ورته تیره کړه. خو په پای کې یې دسومنات خبره یاده نه کړه. یوازې دومره یې ورته وویل اوس رنبیر دنړۍ دهرجی کرشن په مقابل کې د جګړې اعلان کړی دی. اوس یوه داسې ځای ته د وضعې د معلومولو لپاره تللی دی چې هلته په زرونو جی کرشن دانسانیت څیره مسخه کوي. دخبرو په وخت کې کله کله دعبدالواحد سترګې بې اختیاره د شکنتلا د څیرې په لور اوښتې اوده داسې احساسوله چې آشا په یوه څیره دده مخې ته راغلې وه، خو چې شکنتلا به ده ته وکتل ،نو دده سترګې به پخپله ښکته شوې.

کله چې عبدالواحد جګ شو دروازې لوری ته ولاړ د شکنتلا په زړه کې ناڅاپه یو خیال راوګرځید او هغه وویل: ودریږه! له تلو مخکې ماته دا ووایه چې د رنبیر په باب به زه څه وخت او چیرته خبره شم؟

عبدالواحد مخ ور واړاوه. ورته وې ویل:

دا زما ذمه واري ده. زه چې له دې کار څخه وزګار شم چې همدا اوس مې په مخکې دی قنوج ته بیرته راځم او تاته به د ورور په باب منظم خبر درځي.
لږ ځنډ وروسته له ماښې څخه بهر خان او دهغه زوی له عبدالواحد سره مخه ښه کوله.
دکلی زیات کسان هلته راټول وو ،له عبدالواحد سره چې کوم شل کسان راغلي وو، له هغوی څخه لس تنه د شکنتلا لپاره پاتې شول او نور له هغه سره ولاړل.

. . . . .

عبدالواحد چې رخصت شو،شکنتلا د کیدارنات کور ته دتلو اراده وکړه، بهاګونتی هم له هغې سره تلو ته تیاره شوه. کیدار نات او دهغه میرمن ته تراوسه پورې دا معلومات نه ؤ چې د سلطان محمود یو لوی افسر یوازې د شکنتلا دلیدو لپاره دلته راغلی ؤ.
د کیدارنات میرمنې چې شکنتلا ولیدله، جګه شوه. مخې ته ورغله او هغه یې په غیږ کې ونیوله وې ویل: لوري! همدا اوس مې غوښتل درشم، له تا پرته دغه کور سوړ پوړ دی.
دانګړ په یوه کونج کې دلرګې دوی کوندې پرتې وې. کیدارنات دننه ولاړ، یوه بله کونده یې هم راوړه، شکنتلا او بهاګونتی د کیدار نات د میرمنې ترڅنګ پر همدې کوندو کیناستلې، او کیدارنات لږ لرې په یوه ډبره کیناست.

تر لږ ځنډه ځلور واړو په چوپه خوله یو او بل ته کتل.
بیا شکنتلا کیدارنات ته وویل: کاکا! زه سبا ته ځم.
کیدارنات ټکان وخوړ، وې پوښتل: چیرته؟
شکنتلاله لږ ځنډ وروسته وویل: کاکا زه به تر مرګه ستاسو د نیکی بدل درپوره نکړای شم، خو زه مو باید داسې ناخبره نه وای ساتلې.
کیدارنات په پښیمانی سرښکته واچاوه او وې ویل:
لوري! زه یوازې په دې چورت کې وم چې که رښتیا ووایم نو ستا غمونه به زیات کړم، تا خپل ورور یو دیوتا ګڼه او زه ویریدم چې کله ته دهغه په باب په هغو خبرو خبره شي چې ماته معلومې شوی دي، نو ستا ژوند به نور هم

تریخ شي، زه تاته ډاډ درکوم چې که کله دواړه آرام کینو او خبرې سره وکړو، نو ته به زما پر نیت بدګوماني ونکړې.

شکنتلا وویل: ما هرڅه واوریدل، ته چې کلي ته ولاړې دا درته معلومه شوه چې زما ورور له مسلمانانو سره ملګری شوی دی او هغوی دکلي په نیولو کې ورسره مرسته کړې ده.

پردې خبره ستا زما له ورور څخه کرکه وشوه، خو کاشکې تا پردې فکر کړی وای چې زما ورور زما په خاطر دا هرڅه وکړل، که دا ګناه وه، نو سبب یې زه یم، او بیا هغه په دغسې حالاتو کې نور څه کولی شوای، هغه خو له وطن څخه په سلګونو میله لرې ددښمن د ایسارولو لپاره خپل سر په تلې کې نیولې ؤ، هغه خو دخپل ژوندانه ډیرې غوره ورځې ددښمن په جیل کې تیرې کړې او چې کله راخوشې شو او بیرته راغي، پرکور یې د پلار قاتل قبضه کړې وه او هغه دخپلې خور په باب دومره هم خبر نه ؤ چې ژوندۍ ده که مړه. جې کرشن دهغه د وژلو هڅه هم وکړه، خو تقدیر هغه وساته، له دې وروسته تاسو ووایئ چې هغه باید څه کړي وای؟

آیا هغه راجه ته ورغلی وای چې د جې کرشن سرپرست ؤ. آیا هغه مذهبي پیشواګانو ته ورغلی وای چې اوس زما د پلار جان پرځای دهغه له قاتلانو څخه قلنګ ټولوي، آیا د هغه ټولنې څخه یې سوال کړی وای چې د هر راختونکی لمر عبادت کوي؟

هغه قنوج ته خپلې وینې نذرانه کړې، خو قنوج هغه ته څه ورکړي؟

ذلت، رسوایی او بې وسي.

هغه د مسلمانانو پر خلاف تر وروستۍ سلګۍ د جګړې ژمنه کړې وه، خو چې کله دهغوی په جیل کې د ژوند څخه مایوس شو، نو هغوی دده په زړه کې د ژوندي پاتې کیدو هیلې را ژوندۍ کړې او چې کله له جیل څخه تر خلاصون وروسته د نړۍ تر ټولو لوی مظلوم په بڼه هغوی ته ورغی هغوی د دښمنانو پرخلاف دده مرسته وکړه، آیا ته له هغو پیښو وروسته زما له ورور څخه دا غواړې چې باید په یوازې ځان دمسلمانانو مقابلې ته دریدلی وای، تر څو چې جې کرشن غوندې خلک پردې نړۍ مسلط شي؟

تا داخیال کړی دی چې د مسلمانانوله ملګرتیا سره هغه زما ورور نشی

کیداي، څو نن د ګوالیار راجه هم د مسلمانانو ملګري شوی دی.
کیدارنات په مړاوي غږووېل: لوی ستا د یوې خبرې ځواب هم زما سره نشته، خو د لږ ځنډ لپاره دا فرض کړه چې ماته ستا بیلتون له زغم وتلی وُ او د خپل ضمیر د ډاډ لپاره مې پردې خبره تکیه کوله چې ته به دغسې حالاتو کې خپل ورور ته تلل خوښ نه کړي، تا ته معلومه ده چې کله ماتاته وویل چې ستاسو دکلي ځینو خلکو ویل چې ستا ورور د جی کرشن له منګولو څخه مسلمانانو وژغوره اوښایی هغوی له هغه سره د کلي په بیرته نیولو کې مرسته وکړي، تا راته وویل چې که رنبیر د مسلمانانو په مرسته پاچا شی، نو زه به دهغه په شاندارو محلونو کې تر ژوند کولو دا غوره وبولم چې ګدایی وکړم او خپله ګیډه وپالم.
- زه اوس هم همداسې وایم چې زما ورور له مسلمانانو سره په خپل ضمیر معامله نه ده کړې، هغه وضعې او حالاتو د هغوی غیرې ته ورغورځولی دي، دغسې حالات د نړۍ په هر انسان کې بدلون راوستلی شي، د قنوج او ګوالیار هیڅ راجپوت "نوابزاده" هغه ته د بې غیرتۍ او بې همتی پیغور نشی ورکولی، کومو سردارانو چې تر غزنی د سلطان محمود د لښکر د زغلولو ژمنې کړې وې اوس یې په خپلو کلیو او ښارونو کې هرکلۍ او خدمت کوي، تا به ویل چې که مسلمانان ګوالیار ته مخه کړي، نو ددې ځای هر بچی به تر خپل سرتیر شي، خو هغه تر ځان تیریدونکی اوس خوشالی نمانځي چې راجه وسله کیښوده اوهیواد یې له بربادۍ وژغوره، په دې خاوره یوازې د زور نمانځنه کیږي، یوه ورځ هغه وه چې زموږ د سیمې سرداران به زما د پلار جان په اشاره تلل، بیا د جی کرشن وار راغی او دغه خلك له هغه سره ملګري شول، اوس دمسلمانانو ډنډورې غږیږي، نو ټول له هغوی سره مل شوی دي، خو زه پردې خبره ویاړم چې زما ورور له دې ټولو څخه بیل دی. که دی د زور دپالونکیو څخه وای، نو دومره موده به دمسلمانانو سره په جیل کې نه اوسیده ، هغه ښایی تراوسه له جیل څخه نه وای راوتلی، چې کله دده نور راجه ګان او پاچاهان له څلورو لوریو نا امیده شول، دمسلمانانو اطاعت یې ومانه. خو د یوې خور زاریو هغه مجبور کړ ، ما هغه ته پیغام واستاوه. بیا چې له جیل څخه راووت چې هغه کوم کار وکړ هغه هرڅه زما په خاطر وو.

کاشکي تا دهغه په باب دخه نظر ورکولو څخه وړاندې له مانه پوښتنه کړې وای، زما په نظر دپخوا په شان هغه اوس هم یو دیوتا دی، هغه ته د بې غیرتی د پیغور ورکوونکی څوك دي؟ دغه راجه ګان سرداران او برهمنان چې د محمود نوم واوری پر بدن یې لړزه راشي.

شکنتلا ددې پر ځای چې کیدارنات قانع کړی اصلاً خپل خان ته دډاډ ورکولو هڅه کوله، کیدار نات په ډیره دردناکه لهجه وویل:

لوري! اوس ته ښایی زما په یوه خبره هم باور ونکړې، بګوان پوهیږی چې زه دروغ نه وایم، زه تل په دې خبره پښیمانه وم چې ما تاته دروغ ویلې وو، څو ځلې مې په زړه کې راتیره شوه چې رښتیا خبره درته وکړم، خو هر ځل به مې همت ونکړای شو، ما داسې احساسوله چې ته ولاړه شې، نو دغه کلی به وران شي، بیا مې خپل ضمیر ته ددوکې ورکولو لپاره په همدې خبرو تکیه کوله چې ښایې ته ونه غواړې چې هغه ته ورشې، خو دګوالیار ماتې اود راجه بې همتی زما پر زړه ډیره اغیزه وکړه، په ځانګړی ډول دا چې د ګوالیار زیات سرداران پر کالنجر د حملې لپاره له سلطان محمود سره مرستې ته تیار دي. نوما داسې احساس کړه چې موږ ټول په یوه کیښتۍ کې سپاره یو، لومړۍ ما دا پریکړه کړې وه چې یو ځل بیا ستاسو کلی ته ولاړ شم که ددې ورور هلته وی ، نو له ځانه سره یې دلته راولم. او بیا ستاسو په مخکې لاس تړلې ودریږم او درته ووایم چې تاسو دواړه د بګوان په خاطر زما غلطي د یوه بوډا پلار کمزوری وبولی، ومې بخښې، خو اوس به ته پردې خبره باور ونکړې چې که ته زما په کور کې زیږیدلې وای هم تردې به زیاته پر موږ ګرانه نه وای.

د شکنتلا په سترګو کې اوښکې راغلې او ویې ویل:

زما له تانه هیڅ ګیله نشته، زه به تل تا خپل پلار بولم، تاسو دواړه له ماسره ولاړ شي، رنبیر تراوسه پورې کلي ته نه دی راغلی.

کیدارنات لږ ډاډه شو ویې ویل:

تا دې کوم کلیوال لیدلې دي؟

شکنتلا ځواب ورکړ: نه!

- نو بیا تا ته دا هر څه څرنګه معلوم شول؟

شکنتلا په ځواب کې له عبدالواحد سره د لیدو ټوله کیسه ورته تیره کړه،

کیدار نات له لږ سوچ وروسته وویل: لور جانې! ته درومه زه بګوان ته دعا کوم چې تا خوښه وساتي ، خو موږ هېر نه کړې.
-تاسو له ماسره نه ځی؟
-نه، اوس نه، خو زه وعده کوم چې یوه ورځ به خامخا درځو.
بهاګونتی چې ډېرې اندیښنې په حالت کې ددوی خبرې اورېدلې ناڅاپه وویل:
کاکا! ته اندیښنه مه کوه، شکنتلا له مونږ نه تر ډېره جدا نه شي اوسیدای، موږ به تل یوه ورځ ددې کلی ته ورشو او دا به له هغه ځایه راسره راولو.
سبا ته شکنتلا خپل کلي ته روانه شوه، خان چې ددې د سفر لپاره ځه بندو بست کړې و، هغه د یوې لوړ نسبه شهزادګۍ له شانه سره ښاییده، هغه دغوایانو په ښکلې ګاډۍ سپره وه، د کلي دوې ښځې ددې د خدمت لپاره ورسره وې، دعبدالواحد پر لسو تنو سپرو برسیره د خان ۳۰ تنه سپاره نور ورسره ملګرې وو.

.....

د کالنجر کلا په یوه پراخ او لوړ کمره جوړه شوې وه او هغه له کلونو کلونو راسې نه نیول کیدونکې ګڼل کیده، دکلا پراخې دومره وه چې دننه پکې پنځه لکه انسانان او شل زره آسونه اوپنځه سوه پیلان په اسانۍ اوسیدای شول. د سپاهیانو لپاره آذوقه او د څارویو لپاره واښه او دانه دومره پریمانه راټول شوې وو چې د راجه پوځ په میاشتو میاشتو کلابند شوی وای ، د یرغل راوړونکو مقابله یې کولی شوای، دغه ستره کلا دهند د منځنۍ برخې اوختیزو برخو د راجه ګانو دامید وروستۍ سنګر و او ددې کلا له نیولو څخه وروسته د ګنګا او ګودادرې تر څنډو پورې د سلطان محمود د بریو لپاره لارې خلاصیدې.
دهیواد په ساره او اوږدو کې چې دا خبره خپره شوه، چې د غزنی پوځونو کالنجر لوری ته مخه کړې ده، نو په درمسالونو کې د راجه ګنډا د برې دُعاګانې پیل شوې. دجنوب او ختیځ راجه ګانو د ګنډا سردارانو ته دا پیغامونه را استول چې تاسو پښې کلکې کړئ او مقابله وکړئ. دکالنجر

دکلا دیوالونه تر ټولو د لوی توپان مخه گرځولی شي، موږ ستاسو د مرستې لپاره در روان یو، که تاسو همت بایلود، نو ددې توپان مخه به هیڅوک ونشي نیولي، دهیواد برهمنانو خلکو ته دا تسلي ورکوله چې دښمن اوس داسې لارې ته مخه کړې ده چې له تباهۍ پرته به هیڅ په لاس ورنشي، هغوی له یوه غره سره ډغرو ته ور روان دي، د راجه گنډا تر ټولو لویه هیله داده چې دښمن په یو ډول د کلا تر دیوالونو پورې ور ورسیږي، همدغه سبب و چې هغه په نیره جگړه کې شاته ولاړ، اوس بگوان ته دُعا کوی چې دښمن په خپله اراده بدله نکړي، د پلانی درمسال پلانی پالونکی اوپلانی مذهبی پیشوا ته دیوتاگانو په خوب کې دا زیری ورکړی چې د محمود پوځ به تر غزنی پورې په شا ولاړ شی او بیا به د هند حمله کوونکی د غزني تر دیوالونو پورې هغوی وزغلوي.

بیا یوه ورځ د هیواد په ساره او اوږدو کې دا خبر خپور شو چې د غزني پوځ د کالنجر کلا، کلابنده کړې ده او څو ورځې وروسته خلکو د زړه وینې خوړی او دغه خبرونه یې اوریدل چې د کالنجر راجه د خراج ورکولو په شرط سوله کړې ده، یوازې دا نه، بلکې دکالنجر زیاتو گاونډیو راجه گانو د سلطان اطاعت منلی دی. اوس که مسلمانانو وړاندې تگ وکړ. نو دهیواد تر وروستي بریده به ورسیږي، خو سلطان وړاندې نه ځي.

هغه بیرته روان دی، لرې په شمال کې دکوم بل هیواد وضع هغه وربولي. ددرمسالونو پالونکیو به خلکو ته ویل:

بگوان ته دُعا وکړئ چې سلطان بیا دې لوری ته رانشی اوس دبنگال ترخلیج پورې د هغه دمخې نیولو لپاره څوك نشته.

بل لوری ته دسومنات پالونکیو تر پخوا زیات خلکو ته دا ویل چې ترڅو د ټولو دیوتاگانو پالونکی د سومنات د دیوتا دبرترۍ اعتراف ونکړي، هغوی به په هر ډگر کې دمسلمانانو له لاسه ماته خوري.

که تاسو دغزنی دسیلاب مخه اړول غواړئ، نو دسومنات د پیشوا تربیرغ لاندې راټول شئ، لوی دیوتا به د برې تاج یوازې دهغو راجه گانو او مهاراجه گانو پر سر ور ږدي چې د مسلمانانو دحملې په ورځ د سومنات پر دروازو پهره کوي، ځکه خو په څو میاشتو کې دهندوستان له یوې څنډې تر بلې پورې

سومنات ته درومی! چیغې اوریدل کیدې.

.....

د کالنجر څخه دسلطان د بیرته ستنیدو څخه دوې اونۍ وروسته شکنتلا خبره شوه چې عبدالواحد بیا دقنوج واکمن شو اوراغی، هغه پردې ډیره خوشاله شوه چې اوس به دعبدالواحد په واسطه د خپل ورور احوال اخلي، خو د یوې میاشتې پرتیریدو بیا هم دعبدالواحد لخوا د رنبیر څه احوال ورنغي.

یوماښام شکنتلا یوازې دخپل کور پر بام قدم واهه، پر آسمان وریځ خپره وه چې ناڅاپه غټ غټ څاڅکي واوریدل او شکنتلا د لوی بام په منځ کې یوې وړوکی چوتری ته ورغله او ودریده، د لږ ځنډ لپاره د ماشومتوب دهغه وخت په خیالونو کې ډوبه شوه چې دا او رنبیر به دلته دریدلې وو او د برسات د موسم ننداره به یې کوله.

شمبونات سیلیدلی پاس ور وخوت او چوتری ته ورننوت ویې ویل: دقنوج حاکم ددې سیمې په دوره راځي، ماته اوس معلومه شوه چې هغه به دسیند پورې غاړې ته دسنت نگر دسردار په کور کې اوسي.

شکنتلا له امید څخه په ډکه لهجه وپوښتل: هغه کوم پیغام نه دی رااستولی؟

نه، که تاسو غواړی، نو زه به همدا اوس ورروان شم اود رنبیر پوښتنه به ترې وکړم.

نه اوس ماښام نژدې دی، که د رنبیر په باب څه خبر ورته رسیدلی وي، هغه به پخپله دلته راشي.

شمبونات وویل: که رنبیر دلته وای، نو د قنوج حاکم به له بل چا کره هیڅکله هم نه وئ پاتې شوی.

•شکنتلا وویل: ستا باور دی چې هغه هلته رسیدلی دی؟

شمبونات ځواب ورکړ: له پورې غاړې چې کوم سړی راغلی و، هغه ویلی دی چې تر ماښام به سنت نگر ته راورسیږي.

نو بیا خومو باید دا هیله ولرو چې سبا ته به دلته خامخا راشي، نه نوکرانو ته ووایه چې میلمستون پاك کړي.

هوکی دمیلمستون وضع ډیره خرابه ده، زه همدا اوس ورځم.

باران نور هم توند شوې و، شمبونات په منډه له چوترې ووت، له هغوی وروسته شکنتلا د دیوال پر څنډه کیناسته له ددې د زړه ټکانونو ورته وویل: هغه به راشي، خامخا به راځي هغه خامخا باید راشي، د کیدار نات له کوره خپل کور ته له راتلو وروسته دی زیاتره یاداوه، دې په داسې کلتور کې سترګې پرانستې وې چې بنسټ یې له پردیو څخه پر کرکه ایښودل شوی و، خو د عبدالواحد تصور دې تل د احسان او نیکۍ داحساساتو تر زور لاندې کاوه، چې کله خپل کور ته راغله د شمبونات له خولې دا په ډېرو نورو رازونو هم خبره شوه، عبدالواحد دهغې ګاڼې یادونه ونه کړه چې دی دخپل ورور د خلاصون لپاره د فدیې په توګه وراستولې وه.

خو چې کله یې د شمبونات له خولې ټولې کیسې واوریدې، په زړه یې ژورې اغیزې وکړې.

په تیر ځل لیدو کې چې کله عبدالواحد شکنتلا لومړی ځل ولیده، دهغه له خولې بې اختیاره د "آشا" نوم ووت، آشا څوک ده؟

آیا داسې کیدای شي چې دغه انسان چې دزړونو د کلاګانو د تسخیرولو لپاره پیدا شوی دي، پخپله د چا دنظر ښکار شوی وي، دی په خپل ښځینه ذکاوت دهغه په موسکا ګانو کې د اوښکو اوسلګیو تم شوی توپان لیدلې و، شمبونات ددې د پوښتنو په ځواب کې یوازې دومره ویلې وو چې هغه یو نوی مسلمان شوی دی او دنګر کوټ له یوې لویې کورنۍ سره اړیکې لري.

شمبونات ته تردې زیات معلومات نه وو، خو د شکنتلا دذهني ستومانۍ لپاره همدومره ویل بس وو، ددې دماغ به هره ورځ دعبدالواحد او آشا په اړه یوه نوی افسانه وتراشله، کله به یې فکر کاوه چې آشایې ښایي خور وي چې دده مینه به یې رد کړی وي او له بل چا سره به یې واده کړې وي یا د ګومې دردناکې پیښې په سبب دتل لپاره ترې جدا شوې ده، کله کله به یې له آشا سره کینه په زړه کې پیدا شوه، خو بیا به دضمیر په ملامتی ددې زړه ولړزیده.

هغه یو بې دینه دي، زما سره یې نیکي کړې او زما د ورور دوست دي، خو هغه بیا هم که یو بې دینه دی دهغه مردانه حسن او دهغه حیا او شرافت د کرکې هغه غر له خپل ځایه نشي لرې کولی چې زموږ تر منځ دریدلی دي.

باران توند شو او د شپې تیارې نورې هم پنډې شوې.

شکنتلا غوښتل لاندې کوزه شي چې شمبونات ورته زينو کې ودريد او ورغږ يې کړل:
لوري لاندې راکوزه شه.
-کاکا څه خبره ده!
شمبو نات په بيړه پاس ورغی او ويې ويل:
لوري هغه راغي!
-څوك؟ عبدالواحد؟
-هوکي ما هغه په ميلمستون کې کينولی دي، ما هڅه وکړه چې هغه خپلې لمدې جامې بدليچ کړي، خو هغه نه منله، ويل يې چې باران تم شي، زه بيرته سنت نګر ته ځم.
شکنتلا وويل: باران ښايي نن شپه هم ونه دريږي،موږ يې بايد د ډوډۍ غم وخورو، راځه!
شمبونات وويل: د ډوډۍ په باب يې ترې وپوښتل. هغه ويل چې د غرمې ډوډۍ موناوخته خوړلې وه اوس مې اشتها نشته، د هغه ملګری هم همداسې وايي له زينو څخه د ښکته کيدو په وخت شکنتلا وپوښتل:
له هغه سره څو کسان دي؟
- يوازې درې تنه نوکران دي، هغوی ما په بهر ميلمستون کې کينولی دي، ددوهم پوړ برنډې ته چې راورسيدل، شکنتلا وويل: شمبوکاکا! زه لاندې نه ورځم ته هغه پاس راوله.
شمبونات لاندې ولاړ او شکنتلا يوې نوکرې ته دکرسيو د صفاکولو حکم وکړ او بيايې په ناکراری قدم واهه، بلې نوکرې د برنډې فانوس روښانه کړ.
لږ ځنډ وروسته عبدالواحد اوشمبونات برنډې ته راغلل، شکنتلا له دروازې څخه لرې شوه، کوټې ته ولاړه، شمبونات عبدالواحد دروازې ته ورساوه او بيرته ستون شو، عبدالواحد يوه شيبه ودريد او بيا کوټې ته ورننوت.
هغه له څه مقدمې پرته وويل:
زه درنبير په باب تاته دڅه ويلو لپاره راغلې يم.
شکنتلا وويريده اوهغه ته يې وکتل، هغه وويل: د انديښنې څه خبره

نشته، رنبیر په خیریت کې دی، پنځه ورځې کېږي چې ماته یې پیغام رارسیدلی دی ، زه افسوس کوم چې کله زه له تا څخه رخصت شوم ما زر خپل استازې هغه ته وانه ستولی شو. هغه سړی چې ددې کار لپاره مناسب وُ په قنوج کې وُ، او چې د کالنجر له کار څخه رابیغمه شوم قنوج ته راغلم، هغه ناروغ وُ نژدې یوه هفته وروسته هغه روغ شو او ما رنبیر ته ورواستاوه، دهغه له تلو څخه څه لس ورځې وروسته ستا د ورور استازی ماته راغی، هغه پیغام راليږلې چې ښایی هلته تر یوې مودې پورې نور هم پاتې شي.

ایلچی هغه ټوله وضع راته وويله چې د هغې په سبب د رنبیر پاتې کیدل ضروری دي.

شکنتلا وويل: ددې خبرې مطلب دادی چې تر اوسه پورې هغه ته زما د راتګ احوال نه دی رسیدلی.

- ستا ورور له دې ځایه ښه لرې دی، خو بیا هم زما باور دی چې هغه ته به زما استازی اوس ور رسیدلی وي

دشکنتلا سترګې اوښلنې شوې ويې ويل:

د بګوان لپاره راته ووایه هغه چیرته دی؟

عبدالواحد ځواب ورکړ: ما په همغه ورځ هم درته ویل . خو د بلې کوټې څخه یوې ښځې راکتل او.ما غوښتل دغه خبره یوازې تر تا پورې ورسیږي.

هغه د ګلاب چند خور وه. تاسو کینئ . زه اوس راځم. شکنتلا دا وویل او بیا بهر ته ووته، عبدالواحد په یوه کرسۍ کیناست. لږه شیبه وروسته هغه بیا راغله او دعبدالواحد په مخکې په بله کرسۍ کیناستله ويې ويل:

اوس نه په ډاډه زړه خبرې کولی شې، ما نوکرانې بل لوری ته واستولې.

عبدالواحد وويل: تا یوازې یو جی کرشن لیدلی دی، خو په دې هیواد کې تر اوسه پورې په زرګونو جی کرشن نور شته، او اوس ددې هیواد ځمکه پر هغوی تنګيږي، ځکه خو هغوی له څلورو خواو څخه راټولیږی . له دې ځایه په سلګونو میله لرې یوه ځای ته په دې امید راټولیږی چې ددوی متحد ځواک به د زمانې دسیلاب مخه واړوي او دوی به په دې هیواد کې دعدل او برابرۍ دجنډې اوچتوونکو له ماتولو وروسته دانسانانو کلي یو ځل بیا دلیوانو لپاره ښکار ځای کړي. ته چې دهغه ځای نوم واورې. خامخا به اندیښمنه شې. خو

زما باور دی چې که تاسو پخپله هم د رنبیر پرځای وای، نو همداسې به دې کول. په کومه ورځ چې د جی کرشن کسانو رنبیر تعقیباوه. یوه ځوان دده ژوند وژغوره، تا به د رام نات کیسه اوریدلې وي.

شکنتلا وویل: ماته یوازې دومره معلومه ده چې هغه یوازې زما د ورور ژوند ژغورلی و او هغه په دې ماڼۍ کې زما له ورور سره یو ځای اوسیده او ډیر به غمجن و او بیا یوه ورځ ناڅاپه په کوم لوری لاړ اوبیا یې هیڅ درک معلوم نه شو.

زه دهغه کیسه درته کوم، له هغې وروسته به ته دا پریکړه وکولی شی چې دهغه مرستې ته ستا د ورور ورتګ څومره ضروري و.

- راته واوروه!

عبدالواحد په لنډه توګه د رام نات د ژوند کیسه ورته وکړه، شکنتلا تر لږ ځنډه سربښکته اچولې و او په چورتونو کې ډوبه وه، بیایې وویل:

ستا باوردی چې هلته زما ورور ته هیڅ خطر نشته؟

- دیوه سرتیري لپاره هیڅ کار بې خطره نه وي، خو ته اندیښنه مه کوه، که رنبیر ته څه خطر رامخې ته شو. نو هلته یې ډیر مرستندوی شته.

شکنتلا وویل: که پر هغه د سومنات دیوتا غضب نازل شو. نو ددنیا هیڅ ځواك به هغه ته پناه ورنکړي. هغه ددیوتا ګانو لوی دیوتا دی. تاته دهغه د ځای معلومات نشته. دهغه غوسه غرونه خوړینولی شي، سمندرونه په وچو دښتو بدلولی شي. د بګوان لپاره هغه بیرته راوغواړه.

عبدالواحد په ډاډ وموسکل ځواب یې ورکړ:

د سومنات په درمسال کې له هغو درنو ډبرو څخه پرته بل هیڅ شی نشته چې ډبرې توړونکو په خپل زیار په عجیبو او حیرانوونکو ښیرو تراشلي دي، یو وخت دغه ډبرې په غرونو کې تیت پرک پرتې وې اواوس د تیشې کرامت هغوی د درمسالونو بنایست کړې دي.

یوه ډبره دسیند پر غاړه پرته ده. بله ستا دماڼۍ په دیوال کې لګیدلې ده، له دریمې ستاسو دکلی بت جوړ شوی که دسیند پر غاړه پرته ډبره وتراشل شی په درمسال کې کیښودل شی او ددرمسال بت راواخلی ستا د ماڼۍ په دیوال کې یې ولګوي، نو څه فرق به راشي؟ ته لږ په ډاډ پر دې فکر وکړه چې

د سومنات د دروازې دزينې اودسومنات د درمسال د بُت په ډبره کې څه توپير دی؟ آيا دا امکان نه لري چې که د ډبرې توږونکی خوښه وای دزينې ډبره به يې تراشلې اوبُت به يې ترې جوړ کړې وْ او له بلې ډبرې به يې دزينې پايه جوړوله، که تاسو هغه دواړه ډبرې ماتې کړې او په خبر ورته گورې، هيڅ توپير به پکې ونه گورې.

شکنتلا د خپلو خيالونو په نړۍ کې د زلزلو ويروونکې جټکې احساسولې. دهغې حالت هغه مرغه ته ورته و چې په توپان کې د خپلې ځالې په پاشل کيدونکو ځانگو پورې د ځان نښلولو هڅه کوی . هغه سر تر پايه عذر او هيله شوه ويې ويل:

نه، نه، داسې مه وايه، تاله ماسره نيکې کړې، خوسومنات زموږ ديوتا دی.

عبدالواحد ووېل: هر انسان چې دخپلو وهمونو له نړۍ څخه راوزي، زحمت احساسوي. يووخت زه هم ستا په څير وم.

زما هم له دغو بتانو سره مينه وه. خو ماته معلومه شوه چې له ډبرو څخه دتراشل شويو دغو ټوټو د هوښيارو انسانانو يوې ډلې تل دساده زړيو کمزورو او بې وسو انسانانو د ښکار لوبه کړې ده. د لوړ ذات خلك ددغوبتانو د لويی او پاکۍ ډنډورې ددې لپاره غږوی چې په دې کار دوی پر ټيټ ذاتو انسانانو برلاسې مومي

ټيټ ذاتي رذيل دی ځکه خو ددوی دا فريضه ده چې د ټولنې د تراشل شويو بوتانو په مخکې وينې، اوښکې او خولې وړاندې کړي برهمنان لوړ دي، ځکه هغوی حق لري چې ددغو ډبرو په نامه دهيواد ټوله شتمنۍ راټوله کړي او په خپلو درمسالونو کې يې غونډه کړي. دغو بتانو دانسانانو تر منځ دکرکې او سپکاوی غږونه درولي دي، ددې ماتول ضروري دي، پر دوی د سرو زرو پوښ غوړوونکي ددوی په غمبو او جواهرو ښکلی کوونکي او دوی ته د شانداره اولوی درمسال له جوړولو برسيره لوړ ذاتې انسانان دا حق نلري چې د ټيټ ذات انسانان د تقدير له هر انعام څخه محروم کړي. آيا دا ټوکه نه ده چې بگوان لومړی د لوړ ذات انسانان جوړ کړل. بيا يې ټيټ ذاتې پيدا کړل. بيايې دا ډبرې پيدا کړې چې دوی يې وتراشي او بتان ترې جوړ کړي؟ او

دبګوان دخوښ ساتلو لپاره دټيټ ذاتو دوينو نذرانه وړاندې شي؟ آيا ددې بتانو ماتول ضروري نه دي چې د برهمنانو راګ او نغمه واوري خوښيږي، خو دټيټ ذاتو دشارګ څخه د وينو داره دهغه دپښو له مينځلو څخه وروسته هم هغه اغيزمن کولی نشي، آيا په دې بتانو کې دهغه پيدا کوونکي تصور ځاييدای شي چې په حکم يې لمر، سپوږمۍ او ستوري خوځيږي؟

له هغه خاورې څخه چې ګلان راشنه کيږي، چې لوړ ذات اوټيټ ذات ته يې يو ډول بدن يو ډول سترګې او يو رنګ زړه او دماغ وربخښلی دي. آيا د لمر رڼا يې د ټيټ ذاتو کور ته نشی رسيدای؟ د هغه وريځ د ټيټ ذاتو په کښتونو نه اوروي؟

آيا هغه تخم چې ټيټ ذاتي په ځمکه کې کري، له هغې څخه بوټي، اووني نه رازرغونيږي؟ بيا په دې ټولنه او کلتور کې يوازې هرټيټ ذاتي مظلوم نه دي. دلته هر زورور د مظلوم مرۍ ورخپه کوي. کوم ديوتا چې يوه برهمن او لوړ ذاتي ته پرټيټ ذاتو او خوارانو. ظلم کولو اجازه ورکوي. هغه يو بل دورمېږ ماتولو څخه نه شی منع کولي.

کله چې دانسانانو په لاس جوړ شوی بتان مات شي او انسان دخپل پيدا کوونکي په مخ کې سر ټيټ کړي. نو ددې هيواد برهمنان، لوړذاتي. خواران او ټيټ ذاتي به ټول په يوه اندازه ښکاره شي. ښيګړه او بدي د وينې په توپير نه ده په کړو وړو ده، پر غريبواو دنګرو انسانانو خپل بوج وراچوونکي نه. بلکې دنورو بار اوچتوونکي دعزت وړ دي. اوس ددغو ديوتاګانو وخت پای ته رسيدلی دی چې ددوی په سبب يوازې د ظلم بازار تود و، اوس به دقانون د تلې پله يوازې د برهمن په لوړ نه کږيږي.

جی کرشن غوندې خلك به دګناهګارانو پرځای ولاړ وي.

شکنتلا په عاجزۍ وويل:

زه له تاسره بحث نشم کولی. خوته ولې پردې اصرار کوي چې ما پرخپلو ديوتاګانو بدګومانه کړې؟

ځکه چې ته د رنبير خوړ يې. او زه نه غواړم چې په ژوند کې دتاسو دواړو لارې سره بيلې وي.

د شکنتلا پر بدن ناڅاپه لړزه راغله او هغې په ويريدلي غږ وويل:

نو آیا هغه مسلمان شوی دی؟
: نه هغه تر اوسه د مسلمانیدو اعلان نه دی کړی. خو زه یې د زړه په حال پوهیږم، د هغه زړه د اسلام پر رښتینتوب ایمان راوړی دی. خو تراوسه یې ددې خبرې د اعلان جرئت نه دی کړې. د هغه تر ټولو لویه کمزوري له یوې خور سره مینه ده
د هغه پر دې خبره اندیښنه وه چې له مسلمانیدو څخه وروسته یې له تاسره د بیالیدو امکانات دتل لپاره ختم نه شي. هغه په دې نوې نړۍ کې له پښې ایښودلو څخه دمخه غوښتل تا تر خپل څنګ ووینې. نه زما پردې خبرو خپه نشې، لږ تر لږه نه باید پرخپل ورور دا باور ولرې چې دځه تمې او یا ویرې له مخې خپل دین پریښودلو ته تیار نه دی.
شکنتلا وویل: زه هیڅ نه پوهیږم. زه یوازې دومره پوهیږم چې ورور مې کومه لاره غوره کړې، زه به په هماغه ورسره ځم. زه به په هغه پسې اور ته په ورکوزیدو هم دریغ ونکړم
عبدالواحد وویل: اسلام ړوند تقلید چاته نه ورښیي. دا د ژوند اصول دی چې پر هغو دایمان راوړو څخه دمخه پرې پوهیدل ضروری دي. که تاسو وغواړی. نو زه به مو وپوهوم. بیا بنایي تاسو دا احساس کړی چې د مجبورۍ په حالت کې نه. بلکې په خوښه له خپل ورور سره ملګرتیا کوی. خو اوس راباندې ناوخته کړې. زه بیا راځم.
ته هم ښایي زما له خبرو ستومانه شوې یې.
شکنتلا وویل: نه. زه غواړم خبرې دی واورم تر اوسه باران نه دی دریدلی، تاسو سهار نه ولاړ شئ، عبدالواحد په لنډ ډول د اسلام لومړي اصول د ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم د ژوند حالات او د کفر او اسلام دجګړو پیښې بیان کړې، دهغه د خبرو په دوران کې شکنتلا داسې احساسوله چې دهغې د زړه بار ورو ورو سپکیږي، د عبدالواحد دخبرو په پای کې هغې ترې وپوښتل:
آیا سلطان پخپله هم دهغه وخت. مسلمانانو پر پله روان دی؟
عبدالواحد ځواب ورکړ:
هغه خلك د انسانیت غوره نمونې وې او د سلطان له هغوی سره هیڅ

نسبت نه شي ورکول کيداى، خو زما باور دى چې دده برياوې به د اسلام هغو مُبلغينو ته لارې هوارې کړي، چې موږ به دهغه زمانې دمسلمانانو نخښې پکې ووينو، سلطان کلاګاني ونيولې، خو دغه کسان به د خلکو زړونه فتح کړي.

د شمال سيمو نه دغه فقير صفته انسانان رارسيدلي دي چې د نظر د تسخير ځواك يې د محمود له تورې څخه ډير زيات دي.

تر لږ ځنډه دواړه چوپ وو. بيا عبدالواحد وويل: اوس ماته اجازه راکړه، زه به سبا سهار ته له دې ځايه روان شم، زه غواړم چې په دوو اونيو کې پر سيمه راوګرځم او بيا غزني ته ځم. هلته ښايى تر يوې مودې پورې ايسار شم. دا هم امکان لرى چې ماله هغه ځايه کوم بل لورى ته واستوي، خو زما په نشتوالي کې دى ته ضرورت نشته چې ته دې خپل ورور په باب انديښنه وکړې، په قنوج کې به زما دمقام سرپرست تاته د رنبير په باب احوال درکوي. کله چې رنبير راغى زما سلام ورته ووايه.

دشکنتلا په څيره ناڅاپه مايوسي خپره شوه، په غمجنه لهجه يې وويل: که يې تاسو له غزنى څخه بل لورى ته واستولې هم نو زما د ورور ليدو ته خوبه راځې که نه؟

- که فرصت راته برابر شو. خامخا به راځم. اوس تاسو آرام وکړئ.

عبدالواحد دا وويل او جګ شو.

شکنتلا جګه شوه وې ويل: که تاسو بده نه منى. نو زه يوه پوښتنه کوم! څه پوښتنه؟

شکنتلا زړه نا زړه وويل: آشا څوك ده؟

عبدالواحد حيران شکنتلا ته وکتل.

شکنتلا بيا وويل: و بخښئ ښايى دا ګستاخى خبره وى ، خو په هغه ورځ چې تازه وليدم، له خولې نه دې بې اختياره د آشا نوم ووت.

عبدالواحد سرښکته واچاوه او په غمجنه لهجه يې وويل:

اوس له مانه دا پوښتنه مه کوه، کله چې ستا ورور راشى دآشا په باب به ډير څه درته ووايي. اوس ماته اجازه راکړه.

شکنتلا دعبدالواحد د مخه ښې لپاره تر زينو پورې ورسره راووتله.

شمبونات دډېرې اندېښنې په حالت کې په برنډه کې قدم واهه. دهغه له رخصتولو وروسته شکنتلا دخوب کوټې ته ولاړه. آشا څوك ده. هغه زما پوښتنې ته ولې ځواب رانکړ؟ هغه پر بستره وغځیده او تر ډېره پورې یې چورتونه وهل، بالآخره خوب ورغی ؛ روند او خوږ خوب او چې کله راویښه شوه، نو سهار شوی و. هغه په منډه له کوټې راووتله. یو نوکر یې برنډه جارو کوله شکنتلا وویل: میلسه تللی دی؟

نوکرې وویل: هغوی خو د شپې په وروستۍ برخه کې روان شول شکنتلا چې دا واوریدل، زړه یې ولوید.

# د رام نات سفر

رام نات چې د رنبیر له کلي څخه رخصت شو، وروستی منزل یې سومنات و، له څو ورځو سفر څخه وروسته یو ماښام د چنبل سیند پر غاړه یوه وړوکي کلي ته ننوت. د کلي په پېتاوي کې څو تنو چې هغه ولید. لاسونه په نامه ودریدل، یوتنکي ځوان ور وړاندې شو دده د آس جلب یې ونیو. رام نات له آس څخه پلې شو د کلي دمشرانو پوښتنه یې وکړه. همغه تنکي ځوان ورته وویل:

باداره! هغو ته د سردار حکم راغی او له خپلو کسانو سره روان شو. په کلي کې یوازې پنځلس- شل تنه پاتې دي په هغوی کې څوك په ښکار کې د برخې اخستلو توان نه لري.

رام نات وویل: زه ستا په مقصد ونه پوهیدم. زه یو پردیس یم او غواړم په کلي کې شپه تیره کړم.

هلك وویل: ستا خدمت زموږ فرض دی. زه د کلي دمشر زوی یم. راځئ کینئ!

رام نات په یوه پوزې کیناست د چودري زوی آس یوه سړي ته وسپاره او راغي، دده په مخکې کیناست، په خبرو خبرو کې رام نات ته معلومه شوه چې دانهل واړه مهاراجه دمقامي راجه په بلنه د زمری دښکار لپاره راغلی دی اود سیمې سرداران له هغوی سره د مرستې لپاره له دې ځایه لرې لرې په ځنګل کې خپل خپل خلك راټولوي.

رام نات سهار وختی له دې کلي څخه روان شو. نژدې دیرش کیلو متره لرې په یوه ګڼ ځنګل کې هغه څو پیلان ولیدل چې په لرې لرې فاصله کې یو له بله لرې ولاړ وو. ښکاریان پر هغو پیلانو سپاره وو، په هغوی پسې پلي کسان

له نیزو او نورو وسلو سره دریدلي وو، یو ځوان رام نات په اشاره ودراوه اوورانديې ورغی ویې ویل:

ته د انهل واړه د مهاراجه سړی یې؟

رام نات ځواب ورکړ: نه، زه یو پردیس یم.

-نو همدلته ودریږه . له دې لوری چا ته د ورانديې تلو اجازه نشته.

-نو زه به بل لوری ته ځان وباسم.

ځوان په غوسه شو.ورته ویې ویل: زه درته وایم چې ته ورانديې نشی تلای، له ښی ، کیڼ اومخامخ لوري زموږ کسانو ښکار راایسار کړی دی او دې لوري تـه یې راولي، زه ستا د ګټې خبره کوم، سمدستی بیرته وګرځه، دلته د آس درولو اجازه نشته.

له لرې ددوو کسانو چیغې او فریادونه اوریدل کیدل ، پر رام نات تر لږ ځنډ، د ښکار د لیدو هیله غالبه شوه.له آس ځخه پلی شو، ځوان ته یې وویل:

زه د ښکار مینه لرم، که اجازه وی له تاسره به ودریږم.

ځوان وموسکل ویې ویل:

شاته په کومه ونه وخیژه او سیل وکړه.

رام نات له غوسې نه تک سور شو.خو له زغم نه یې کار واخست، ویې ویل: که وخت راغی ته به ماته د بې همتی پیغور رانکړې.

ځوان ورته وویل: که زما په خبره خپه شوې یې .نو بخښنه غواړم، زما مطلب داو چې له نیزې او ډال پرته ستا دلته دریدل ښه نه دي. خو بیا هم که ته غواړې خپله زړورتیا ځرګنده کړي، زه دې نه ایساروم، آس دې لږ شاته چیرته په ونې پورې وتړه او بیرته راشه.

ته ډاډه اوسه، زما توره د لرګی نه ده.

رام نات داوویل: او آس یې شاته بوتلو، لږلرې یې په یوه ونه پورې وتاړه اوله ښکاریانو سره یو ځای شو.

• • •

دښکار راګیروونکیو غږونه نور هم رانژدې شول، ښکاریانو په چوپه خوله یوه او بل ته کتل، ګیدړان، سویې او لیوان وارخطا په یوه او بله خوا تښتیدل. له رام نات ځخه مخکې لږ لرې د انهل واړه مهاراجه بهیم دیو دیوه پیل پر

زرینه کجاوه کې ولاړ و او یوې او بلې خواته یې کتل.

یو د تجربې خاوند ښکاري دهغه دترڅنګ ولاړ و. مهاراجه یو ښکلی او دځواکمنو متو خاوند سړی و، دهغه د پیل پر تنده د غمیو ټیک او په غاړه کې یې د سرو زرو زنځیر ځړیده. په پښو کې یې دطلادرنې کړۍ بریښیدلې ناڅاپه دوه پړانګان راښکاره شول او ښکاریانو له دواړو لوریو څخه وترهول او د راجه مخې ته یې دوروستلو هڅه وکړه، خو یوه پړانګ ناڅاپه توپ وواهه اود یوه ښکاری پر بدن یې دخپلو پنجو خاپونه پریښودل وړاندې تیر شو، دوهم پړانګ راجه بهیم دیو په نیزه وواهه او زخمي شو، بې زخمي پړانګ د راجه پر اردلی چې پیل یې نیولی و، ورټوپ کړل او دهغه په ټټر یې خپلې منګولې وربښخې کړې، پیل وارخطا شو او خپل خرطوم یې تر اردلي او پړانګ راوځرخاوه اودواړه یې وغورځول، دمهاراجه ملګری هم په پړانګ ګوزار وکړ او د اردلی د ژغورنې هڅه یې وکړه، خو وارخطا پیل څو ګامه وړاندې تیر شو. په دې ځنډ کې نورو ښکاریانو ته هم څو نور زمریان او پړانګان راغلل او هغوی هم د راجه داردلی پر ځای هر یو دځان د ژغورنې په غم کې شول. رام نات په منډه ورغی او پر پړانګ یې برید وکړ. د هغه توره د پړانګ پر ککره وربرابره شوه چې دوه درې ځلې لټ پر لټ واوښت او بیا مړ شو.

خو د راجه پیل بان اردلي. هم دخپل ژوند سفر پای ته رسولی و. په دې ځنډ کې نورو ښکاریانو دوه زمریان وژلي وو، نور څو ځناور دښکاریانو په لیکو وروا وښتل او وړاندې وتښتیدل. نور په ځنګل کې غلي شول.

د راجه بهیم د یوپیل کوم ځلوبښت ګامه وړاندې ولاړ او ودرید، دهغه ساتونکي ورغلل او شاوخوا ترې راچاپیر شول، د یوه سردار پیل بان "اردلي" ورغی او غوښتل یې د راجه پیل را قابو کړي، هغه لا نه و وررسیدلی چې ناڅاپه درې زمریان په یوه وخت له ځنګله راښکاره شول، دوی د راجه په ساتونکیو حمله وکړه او د سترګو په رپ کې یې دوه تنه ځیرې کړل، دریم یې ورټوپ کړل او د راجه دپیل پر ورمیږ سپور شو. راجه په برچه وواهه او زمری یې لاندې وغورځاوه. خو پیل چې لا پخوا وارخطا و په کریږو شو او په یوه لوری یې منډه واخسته. رام نات چې ولیدل د یوه غورځیدلی ښکاری نیزه او ډال یې واخستل او ګړندی د راجه په پیل پسې ورغي. کله چې وارخطا پیل د

يوې ونې لاندې تېرېده راجه په يوه تېټ ښاخ ځان ونښلاوه او ځان يې وزغوره خو په کجاوه کې سپور ملګری يې له خبرېدو څخه مخکې د ونې د يوه غټ ښاخ مخې ته برابر شو کجاوه له ښاخ سره له ټکر وروسته په ځمکه راوغورځېده او دمهاراجه د ملګري سر په يوه ډبره ولګېد چې بيايې د سرراپورته کولو توان نه درلود او پيل وړاندې تېر شو.

راجه تر اوسه پورې په هماغه ښاخ د بې وسۍ په حالت کې راځړېدلې و چې ناڅاپه يوه پړانګ چې د کوم ښکاري په ګوزار ټپي شوی و او لنګ په بوټيو کې غلې و، راغی او په يوه ټوپ يې د همغه ونې يوه شاخ ته ځان ورساوه چې له هغه ځايه يې په آسانۍ پر راجه حمله کولی شوای، خو شااوخوا دخلکو چيغو او فريادونو هغه وارخطا کړ اود راجه پر ځای يې لاندې وکتل، راجه لاندې ځان غورځول تردې هم خطرناك وبلل اوښې يې پورته کړې، پر ځانګه يې ځان راقابو کړ، سيده کيناست او بيايې توره وکښله.ناڅاپه پړانګ هغه ته مخ ور واړاوه او چې راجه پړانګ د حملې په اراده وليد، چيغې يې کړې او خپل ملګری يې مرستې ته راوغوښتل.

رام نات په بوټو کې منډه واخسته او هغه ونې ته ورنژدې شو، درې تنه نور ښکاريان څوګامه لرې وو، په دې کې راجه په لوړ آواز وويل: بيدار شئ پړانګ له پاسه حمله کوي!

رام نات پاس وکتل وې ليدل چې پړانګ حملې ته تيار و. هغه ډال وغورځاوه او په دواړو لاسو يې نيزه کلکه کړه او د پړانګ دم ته ودريد، پړانګ له يوې ويروونکې کريږې سره لاندې ټوپ وواهه، رام نات په ګونډو شو،نيزه يې په ځمکه تکيه کړه او څوکه يې پړانګ ته برابره کړه، له نيکه مرغه پړانګ نيغ پر نيزه ورغورځيد، د نيزې څوکه د هغه په ورمېږ او سينه کې تېره شوه اوله ملا سره بوټه تري وخته دپړانګ پر وزن نيزه په مينځ کې ماته شوه. خو د رام نات مقصد پوره شوی و. هغه څو ګامه شاته شو او توره يې راوکښله. په دې ځنډ کې نور ښکاريان هم هلته ور ورسيدل. پړانګ په ځمکه پورته پورته کيده. د سترګو په رپ کې نورو ښکاريانو هم په خپلو نيزو هغه سوري سوری کړ. لږ ځنډ وروسته د سيمې راجه اونور سرداران هم هلته ورټول شوي وو

.....

مهاراجه بهیم دیو له ونې راکوز شو او خلکو ژوندی دې وي لوی راجه شعارونه اوچت کړل، خو بهیم دیو کوم بل لوری ته دپام اړولو پرځای پرخپل لستوني خولې پاکولې او نیغ رام نات ته ورغي.له څه ویلو پرته یې له خپلې غاړې څخه دغمیو قیمتي امیل راواخست دهغه په غاړه کې یې ورواچاوه.

څو کسانو په ګډه ترکجاوه لاتدې شوی ښکاري راپورته کړ، خو هغه د ژوند له رنګینیو سره د تل لپاره خدای پاماني کړې وه، بهیم دیو ورغی دهغه نبض یې وکوت بیایې کوربه ته مخ واړاوه او ویې ویل: زما غوره ښکاری ووژل شو،په بدل کې یې ستاسو غوره ښکاري راسره بیایم.

کوربه ورته وویل: دټولواك امرد سر په سترګو. خوما ګومان کاوه چې دغه ځوان ستا سره راغلی دی.

بهیم دیو وویل: که دي زما سره وای. نو نا به زموږ تر ټولو په غوره پیل سپور لیدلې وای.

-نوښایي دی داجین لهٔ راجه سره راغلی وي.

رام نات ورورواندې شو ویې ویل: نه ټولواکه!

زه له چاسره نه یم راغلی. زه یو مساپر یم او داهسې تصادف ؤ چې زه دې خواته راغلم.

بهیم دیو پوښتنه وکړه: ته له کومه ځایه راغلی یې؟

- له قنوج څخه تولواکه!

-چیرته تلې؟

-ټولواکه زه د سومنات د زیارت لپاره ځم، هلته ما یو نذر منلی دی.

- نن ته زموږ میلمه یې.

-د ټولواك هیله زما خوښی ده.

بهیم دیو د ښکار ختمولو حکم وکړ او دخپل پړاو په لور راغی. سبا ته رام نات د رخصتی لپاره ورغی.مهاراجه دسومنات له زیارت وروسته انهل واړه ته د ورتلو بلنه ورکړه او ورته ویې ویل: که ته زموږ په پوځ کې خدمت کوې،نو موږ به ډیر خوښ شو.

رام نات ځواب ورکړ: زه وعده نه کوم ، خو امکان لری ما وضعه پردې

مجبور کړي چې کومه ورځ ستا په خدمت کې حاضر شم.

- موږ به ستا انتظار کوو او موږ سومنات ته ستا د رسولو بندوبست هم کړی دی.

- نه مهاراجه! ما ته هلته د تللو لپاره د خاص بندوبست اړتیا نشته.

- زموږ هیله ده چې زما دیوه دوست په حیث پر پیل سپور هلته ولاړ شي. له یوه پیل بان پرته به زما څلور تنه نوکران هم له تاسره ملګري وي. او هلته چې ته ولاړ شي، ددې ویلو اجازه لرې چې د انهل واړه د دېرشو لویو سردارانو له جملې څخه یې، موږ تا ته هلته د ډېرې لویې ځمکې دربخښلو پریکړه کړې ده، دا انعام نه دې، بلکې ستا د زړورتیا خراج دی.

رام نات په خوب ته ورته حالت کې دغه الفاظ اوریدل د منني او تشکر لپاره له ده سره الفاظ نه وو.

لږ څنډ وروسته هغه پر پیل سپور شو او د خپل مقصد د منزل په لور وخوځید. څلور تنه سپاره ورسره وو. دا ده د پخوانیو خوبونو تعبیر و. په زړه کې یې داسې احساسوله چې په ژوند ده او درنبیر لارې سره بیلې دي. د روپ وتی له موندلو وروسته به ده په ژوند کې هیڅ سر او کار نه وي. ده به له دې خبرې سره هیڅ مینه نه وی چې د ډبرو بتان ماتیږي او که روغ پاتې کیږي. هغه فکر کاوه چې روپ وتی له ترلاسه کولو څخه وروسته ما ته د یوه ځای اړتیا وه چې پناه ورو وړم او هغه ما پیدا کړ.

اوس زه د یوه بې کوره پردیس پر ځای هلته د انهل واړه د یوه ځواکمن سردار په حیث ځم، د سومنات پالونکی چې دغه هاتی وګوري ما ته به په درمسال کې دننه او د باندې د آزادګرځیدو راګرځیدو اجازه راکړي او بیا به د غمیو ددغه ګران بیه امیل په نذرانه روپ وتي له هغه ځایه راخلاصه کړم، که داسې امکان نه وُ بیا به یې په یوه بله طریقه له درمسال څخه د راایستلو هڅه وکړم.

په انهل واړه کې به هغه هیڅوك هم و نه پیژني، د روپ وني له ترلاسه کولو وروسته به زما د ژوند ټولې هیلې پوره شي.

.....

سومنات په یوه وخت کې یوه پوځی کلا. یو درمسال او یو ښوونځی و. د

کاتیاوار پر څنډه له سرسوتي سيند څخه نژدې درې ميله لرې يو جګ حصار و. ددغه ديوال او حصار د ننه د سومنات دستاونکيو هستوګنځايونه وو. له دې څخه ورانده د زيارت کوونکو لپاره ميلمستونونه او د نوکرانو او خدمتګارانو د هستوګنې خونې وې، له هغو وروسته د هغو شاندارو محلونو لړۍ پيليدله چې د هندوستان راجه ګانو او مهاراجه ګانو د زيارت پر وخت دخپلو ځانونو لپاره جوړ کړې وو.

ددرمسال دپالونکيو او برهمنانو "مذهبي کورنيو" لپاره محلونه له هغوی سره پيوست غځيدلي وو. بيا يوه پراخه لاره وه چې داوبو له سطحې بت څخه څو ګزه جګه وه، ددغې لارې ښي او کيڼ لورى ته د لوړو درجو د پالونکيو او مذهبي مشرانو محلونه وو. چې په شان او دبدبه کې له هغو ماڼيو څخه کم نه وو، چې د هيواد راجه ګانو او مهاراجه ګانو د ځانونو لپاره جوړ کړې وو. دغه پراخه لاره ښي لورى ته د سومنات د لوى مذهبي پيشوا د شاندار محل تر څنګ تيره شوې وه او د سومنات د درمسال تر اوسپنيزې دروازې پورې تللې وه.

د درمسال ديارلس پوړه مخروطي شکله ودانۍ پر ژورو اوبو کې جوړه وه او پر بام يې څوارلس زريني قبې له لرې لرې ځليدلې. د کلا له لورى دوې نورې لارې د درمسال شمالي او جنوبي دروازو ته راغلې وې. د درمسال لويديز لورى ته يوه پراخه چوتره وه. چې دهغې په مخه کې دډبرو زينې په اوبو کې ډوبې شوې وې.

ددرمسال د مينځ کوټه په (۵۶) ستنو ولاړه وه چې ددغه پراخې کوټې په منځ کې په يوه کماني چوتره هغه بت دريدلی و چې د ځواك او هيبت افسانې يې پر ټوله نړۍ خپرې وې.

"د سومنات په باب د هندوانو عقيده داسې ده چې د سپوږمۍ له ديوتا څخه ګناه وشوه او د ګناه په جبران کې يې هغه ته د مهاديو د لنګ دغه بت جوړ کړ، په هندي ژبه کې دسوم يعنې سپوږمۍ او دنات معنې آغا ده، چې د سومنات معنى د "سپوږمۍ آغا" کيږي. دسومنات د پالونکيو دعقيدې بو لوی سبب دادی چې د سپوږمۍ د راختو او لويدو په سبب په سمندر کې هسکې ټيټې څپې پيدا کيدلې. ګله به چې د سمندر څپې څنډې ته راغلې نو

د سومنات بُت به په اوبو کې ډوب شو او وروسته به چې سمندر بيرته په خپل حال شو، بُت به بيرته راښکاره شو، د سومنات پالونکيو له دې څخه دا نتيجه اخستله چې سپوږمۍ د سومنات دبُت په خدمت گومارل شوې ده.

دځينو مسلمانانو په نظر سومنات هماغه بُت و چې د مکې کفارو په مکه کې د منات په نامه درولی و، داسلام د راڅرگندېدو سره چې کله ددې بُت پالونکيو خطر احساس کړ، نو هغوی له کعبې څخه کاتياوار ته راوړ اود سمندر پر غاړه يې ودراوه.

داسې يې مشهوره کړه چې دا له سمندر څخه راښکاره شو او د منات پر ځای يې سومنات نوم پرې کېښود، خو ددغه خيال سبب يوازې د منات او سومنات لفظي ورته والی دی او بس، له تاريخ څخه همدغه راڅرگندېږي چې عربو د جاهليت په وخت کې کوم بُتان درولي وو هغه ټول دانسانانو په څېرو وو، دعربو د جاهليت د وخت د شعر او ادب څخه هم ددې خبرې هيڅ ثبوت نه پيداکيږي چې په عربو کې د لنگ (۱) د نمانځنې رواج و".

سومنات له چوترې څخه پنځه لويشتې جگ دوې لويشتې دننه و، د هغه سطحه د گرانبيه جواهرو څخه پټه وه، د چت په منځ کې د طلا د يوه زنځير سره د بُت د پاسه يو تاج را ځړېدلې و، چې په جواهرو او غميو ښکلی شوی و، چت، ديوالونه اوستنې هم په رنگارنگ جواهرو ښکلي شوي وو. دړنها لپاره په چت کې د غميو ډير گرانبيه فانوسونه راځړېدلي وو او د کوټې پردې هم په ډول ډول جواهرو او غميو جړاو شوي وې.

د سومنات د بُت په شاوخوا کې نور ډير د سرو او سپينو زرو بُتان وو، چې دايې څرگندوله چې نور ديوتاگان ددغه ديوتا خدمتگاران دي.

هغه زنگ چې ددې بُت د نمانځنې په مهال کړنگول کيده د طلا په دوه سوه منه درانه زنځير سره راځړول شوې و. د هندوانو په عقيده د سومنات بُت په ژوند او مرگ برلاسی و.

هغه انسان ته خوښي او غم وربخښلی شوای، له مرگه وروسته دانسانانو ارواوې دې بُت ته راغونډيدې او هغه به بيا له سره ژوند ورکاوه.

په دې درمسال کې به دزيارت کوونکو داسې گڼه گوڼه وه چې نژدې زر تنه پالونکي دوی ته د نمانځنې او عبادت دلارو چارو په ورښودلو ټاکل شوې وو،

په سلګونو کسان د زيارت کوونکو خدمت ته ګومارل شوي وو، په سلګونو نڅاګر او سندربول تل د درمسال په دروازو کې ولاړ وو، د هيواد له هرګوټ څخه دلوړ نسب نجونې دنڅا او رقص د زده کړې لپاره دلته راتلې په هغوی کې يوازې تر ټولو غوره سندر غاړې او نڅاګرې ته دسومنات دبُت په وړاندې دځپلو کمالونو د ښودلو اجازه ورکول کيده.

داسې نجونې دهيواد په هرګوټ کې ددرناوي او احترام وړ بلل کيدې "د ځينو روايتونو په اساس د سومنات په درمسال کې د نڅاګرو نجونو شمير پنځه سوه وُ".

د اميرانو زامنو به له داسې نجونو سره د واده هيله درلوده، پر دوی برسيره په سلګونو داسې نجونې وې چې د سومنات خدمتګارې بلل کيدې، په هغوی کې زياتره هغه وې چې پلار او مور يې له زيږيدلو وړاندې د سومنات په نامه کړې وې او وروسته به يې هلته راوستلې، ځينې داسې يتيمې وې چې څوك به يې نه درلودل چې با نفوذه مشرانو به د سومنات درمسال ته را رسولې، دې نجونو به د درمسال د پالونکيو او مذهبي مشرانو خدمت کاوه او د لوی پيشوا له اجازې پرته له درمسال څخه دبهر ته وتلو اجازه يې نه درلوده.

دنڅا او موسيقی له تربيې وروسته به دوی د درمسال له هغوی رمزونو او اسرارو څخه خبريدې چې له برهمنانو پرته نور څوك پرې خبر نه وو.

د سومنات د بُت دمينځلو لپاره هره ورځ په زرګونو کسان د ګنګا د اوبو په برابرولو ګومارل شوي وو.

همدارنګه يوه ډله په سلګونو ميله لرې د کشمير له درو څخه د سومنات ددیوتا لپاره د ګلونو د اميل په تيارولو بوخت وو، درمسال دومره لوی و چې په بې شميره کوټو او دهليزونو کې يې بې شميره خدمتګاران په اسانۍ ځاييدل، ددرمسال يوې خواته د سمندر په غاړه هغه ملنګان او ددنيا دژوند پريښودونکو جونګړې او کوټنۍ وې چې د اولاد غوښتونکو د هيلو په پوره کولو مامور شوي وو، دغو خلکو به د جامو اغوستلو پرځای پر بدن دايرو موښل کافي بلل.

د سومنات د شتمنۍ اودولت اندازه له دې څخه لګول کيدای شي چې د

هیواد په سور او اوږده کې لس زره کلي دده جاګیر و. د هندوستان ټول راجه ګان اومهاراجه ګان یا د هغوی سفیران هرکال په مهمو مراسمو کې د ګڼون لپاره راتلل او له یو بل څخه به یې د نذرانو په وړاندې کولو کې د وړاندې کیدو سیالي کوله، پر دوی برسیره د اولاد هیله من هم هر کال په لکونو تنه له لویو نذرانو سره راتلل.

د سومنات د سوداګرۍ بیړۍ تر هندوستان پورې محدود نه و، د ختیځ او لویدیځ زیاتو هیوادونو دسوداګرۍ بیړۍ د اوبو اوخوراکي شیانو تر لاسه کولو لپاره د سومنات په بندر دریدلې، ددغو بیړیو وهم پالونکو ماڼوګانو د سومنات شهرت څلورو لوریو ته رسولی و. هغوی سومنات دسمندر دیوتاګانه او دهر سفر د کامیابی په هیله کې یې دلته نذرانې وړاندې کولې، د هندوستان د ساحل په شاوخوا کې به که کومه کیښتۍ ډوبه شوه، نو دا به مشهوره شوه چې د سومنات دیوتا ددوی له ماڼوګانو څخه خفه شوې و، او که کومه کیښتۍ په خیر خپل منزل ته ورسیده. نو ویل کیدل به چې د ماڼوګانو څخه یې دیوتا خوښ و.

د سومنات دکلا او درمسال څخه بهر د سرسوتی سیند پر غاړه یو له جم او جوشه ډک ښار ودان و، او د یوه مهم سوداګرۍ مرکز په سبب ددغه ښار اوسیدونکي ډیر شتمن وو.

# نرملا او روپ وتي

په ګواليار کې د جی کرشن دميرمنې مشر ورور سردار شيام لال يو رښتين او غيرتی نوابزاده و، هغه د جی کرشن دځان غوښتنې، رياکاری او ابن الوقتی نه سخته کرکه کوله،څو ځله يې برالا هم ورته څرګنده کړې وه، ځکه خو جی کرشن غوښتل له هغه څخه لرې واوسي، خو چې کله يې پر خپل کلي دحملې خبر واوريد ،له مجبوری څخه ګواليار ته ولاړ. په لاره کې هغه دې خيال ډير پريشانه کاوه چې شيام لال خبر شی چې دهغه خور اوخورځه مې ددښمن رحم او کرم ته پرېښی او راغلې يم . نو څه به وايي. لومړی هغه فکر وکړ چې ورشم پرخپل کلی به د حملې يادونه نه کوم، خو بيا په خيال کې ورو ګرځيدل چې له شيام لال څخه دسمدستي ځان ژغورلولپاره هم پلمه کافي نه ده، هغه به وايی چې که مسلمانان دقنوج او باري په لوري راوړاندې کيږی ته دلته دڅه لپاره راغلې يې. ځکه خو له سرحد نه دتيريدو نه وروسته هغه پريکړه وکړه چې بيرته ولاړ شی او د راجه په پوځ کې بايد شامل شي. که راجه فتحه وکړه، نو بيا به مې شيام لال ته د وتلو وړتيا پاتې نشي او که هغه ماته وخوړه، نو زه به ګواليار ته له رسيدو وروسته شيام لال ته ووېلی شم چې په کلي کې چې څه وشول، زما په غير حاضری کې شوی دي. او د راجه د ماتې نه وروسته له رنبير څخه دخپلې ميرمنې او لور راخلاصول زما د وسه وتلې خبره ده. تصادفي په لار ه کې دده ليده کاته دسرحدله څو داسې سردارانو سره وشول چې له پنځو زرو تنو سرتيريو سره د راجه مرستې ته باری ته روان وو. جی کرشن هم له هغوی سره ملګری شو. دهغه له نوکرانو څخه يوازې پياری لال ورسره و.

په قنوج او باري کې دسلطان محمود له بریاوو وروسته جی کرشن دخپل

ځان د ژغورنې لپاره دماتې خوړلیو هغو ډلګیو سره ملګری شو چې راجه ګنډا یې دخپل امید وروستۍ ځای باله او کالنجر ته تلل، د کالنجر سرحد ته چې ورننوتل جی کرشن آرامه ساه واخسته او په جګړه کې یې د برخې اخستلو پر ځای د ګوالیار لاره ونیوه په لاره کې یې دګاونډیو زیاتو راجه ګانو او سردارنو پوځونه ولیدل چې د راجه ګنډا مرستې ته ور روان وو.

د راجه ګنډا ددفاعي تیارۍ په باب چې هغه څه اوریدل، ډیر امیدواروونکی ووځکه خو هغه یو ځل بیا دوه زړې شو، یو ماښام یې د ګوالیار له سرحد څخه ځو پړاوه لرې یو لښکر ولید، چې پوښتنه یې وکړه، ورته معلومه شوه چې دا دګوالیار پوځ دی چې دهغه ځای د واکمن تر قوماندې لاندې د راجه ګنډا مرستې ته روان دي.

جی کرشن د تیښتې لاره ونه لیده او له مجبوریته په دې پوځ کې شامل شو، سردار شیام لال او دهغه دکورنۍ زیات کسان په دې پوځ کې وو، جی کرشن هغوی ته دخپل کلي په باب کیسه وکړه.

کله چې د کالنجر راجه میدان پریښود او وتښتید، نو جي کرشن له شیام لال سره ګوالیار ته ولاړ، څو ورځې وروسته شیام لال خپل یو وفادار نوکر د نرملا او دهغې د مور د درك لګولو لپاره واستول. هغه داخبر راوړ چې د نرملا مور مړه شوې ده او نرملا تراوسه پورې د رنبیر په کور کې ده. شیام لال پخپله رنبیر ته د ورتلو پریکړه وکړه. خو د هغه د خوځیدو څخه وړاندې شمبونات د نرملا سره ورورسید.

دنرملا د راتلو سره جی کرشن دخپل راتلونکی په غم کې شو، د هر ابن الوقت په څیر هغه هم ډیر لرې فکر کاوه. هغه پوهیده چې بیا کلي ته د یوه فاتح په حیث تلل ورته ممکن نه دي، که ده ګوالیار خوندی بللې، نو له خپلې لور سره به یې په ناچاری کې هم شپې تیرې کړې وای، خوهغه پر دې پوهیده چې د راجه ګنډا له ماتې وروسته د منځني هند ددفاع ځواك ختم شوی دی او چې سلطان محمود دوهم ځلی دی لوری ته مخه کړي، نو د ګوالیار پوځ به یې مخه ونشی نیولی، بیا به رنبیر په هر قیمت دده لټون کوي،په دغسې حال کې به ښایي د ګوالیار راجه هم د مسلمانانو دخوښې اورضایت تر لاسه کولو په خاطر، دی ونیسي او لاس ترلی به یې رنبیر ته وسپاري. د رنبیر

دکسات ویری دی په ویښه او خوب کې نا آرامه کړې و، هغه د یو داسې ځای په لټه کې و چې د رنبیر او مسلمانانو څخه لرې وي. له ځو ورځو فکر او سوچ وروسته سومنات دده د پناه وروستی ځای و. هلته د جنوب او لویدیځ زیاتو راجه ګانو خپل پوځونه راغونډ ول. او مذهبي مشر د پوځی تجربې خاوندان په ښو تنخواګانو ټاکل، جي کرشن فکر وکړ چې د سومنات د پالونکی له راضي کولو نه وروسته به ماته دکوم ګاونډي راجه ملګرتوب آسانه وي، پر دې علاوه به نرملا په سومنات درمسال کې ښځینه کمالونه زده کړی چې د هغې په سبب عادي نجونې شاهي ماڼیو ته ځانونه رسوي، تر ټولو ښه خبره داوه چې سومنات دمسلمانانو دیرغلونو څخه ډیر لرې و او هلته د رنبیر په څیر دښمنانو رسیدلو ویره نه وه.

د ګوالیار په دربار کې شیام لال ډیره اغیزه اونفوذ درلود، دهغه دا هڅه وه چې جي کرشن ته د راجه په پوځ کې کوم مناسب منصب وسپارل شي.

جي کرشن څو ورځې شیام لال ته دخپلې ارادې په څرګندولو کې زړه نازړه و، هغه ویریده چې له ده سره د نرملا له لیږلو څخه انکار ونکړي، ځکه خو يې یوه پلمه پیدا کړه او شیام لال ته يې وویل:

ما یو نذر منلی و که نرملا بیا راپیدا شوه. نو زه به دسومنات زیارت ته ورسره ځم، نرملا هم له خپل پلار سره د سومنات ته دتلو هیله څرګنده کړه، ځکه خو شیام لال څه اعتراض ونه کړ.

هماغه وخت له ګوالیار څخه څو تنه د سومنات د زیارت لپاره روان وو، جي کرشن او نرملا دیوازنې سفر پر ځای، له هغوی سره ملګري شول.

• • • • •

د زیارت کوونکو له وړوکې قافلې سره څو ورځې له سفر وروسته جی کرشن او نرملا یو ماسپښین یوه وړوکی ښار ته ننوتل، د ښار له خلکو څخه يې د درمشاله دلارې پوښتنې وکړې او قافله دیوه پراخه بازار څخه تیریدله، په وړښوولی لاره وړاندې روان شول، جی کرشن او نرملا دټولو په مخ کې وو، یوې څلور لارې ته چې ورنژدې شول دخلکو چیغې او کوکاری يې واوریدې. جي کرشن دلاس په اشاره خپل ملګری ودرول او پخپله يې آس پونده کړ، وړاندې ولاړ، خلکو د وارخطایی په حال کې چیغې وهلې او یوې او بلې خواته

تښتيدل. جي کرشن څو تنه ودرول او له هغوی څخه يې د وارخطايی د سبب پوښتلو هڅه وکړه، خو هغوی ټولو چغې وهلې منډې وهه! تښته!

راغی، راغی! او په يوه او بل لوری تښتيدل ،تر چوك پورې چې ورسيد جي کرشن په خپله دومره وارخطا شوی ؤ چې د وړاندې تلو همت يې نه درلود، هغه پر آس خم شو يو سړی يې تر مټ ونيو او په چيغه يې ورته وويل:

څه چل دی! څوك راغلل، تاسو ولې تښتئ؟!

وارخطا سړی په يوه جټکه خپل لاس د جی کرشن څخه خوشې کړ، ښي لوري يوې تنګې کوڅې ته يې اشاره وکړه او له هغه ځايه ولاړ، جي کرشن چې کوڅې ته وکتل د يوې شيبې لپاره وويريده، يو مست پيل خرطوم پورته کړې ؤ او منډې يې وهلې. د سترګو په رپ کې هغه جی کرشن ته راورسيد، جی کرشن سمدستي د آس جلب راوګرځاوه اوبه کيڼ لاس کوڅې ته ننوت، پيل پر جی کرشن سمدستي د ورتلو پر ځای د پراخ بازار په لور وګرځيد. دقافلې خلك له دې وضعيت څخه ناخبره له چوك څخه لږ لرې ولاړ وو، نرملا هم څو شيبې هلته ولاړه وه، بيا يې په بيړه آس وزغلاوه او چوك ته ور ورسيده چې که سمدستی څه خطر وي،نو خپل پلار ته لاس ورکړي، پر پيل ددې سترګې هغه وخت ولګيدې چې د تنګې کوڅې څخه راووت او په پراخ بازار کې ددې مخې ته راوتلی ؤ، جی کرشن د چيغې هڅه وکړه، خو غږ يې په ستونې کې بند پاتې شو. نرملا هڅه وکړه چې خپل پلار ته کوڅې ته ځان ورسوی، خو آس يې تور وخوړ، پر دوو پښو ودريد او نرملا لاندې راوغورځيده.

پيل کريږې وهلې او وړاندې تير شو، نرملا د جګيدو توان نه درلود، خو پيل دخلکو په شور ماشور کې نرملا ته پام نه شو او نيغ وړاندې تير شو، څو د سومنات د قافلې کسان چې په آسونو سپاره وو، يوې اوبلې خواته وتښتيدل او نور يوې او بلې خواته په تنګو کوڅو کې غلي شول.

لږ ځنډ وروسته پر نرملا ډير خلك راټول شول، دهغه له تندي وينې بهيدلې، جي کرشن له آس څخه پلی شو او دهغې د راپه خود کولو هڅه يې کوله، په دې ځنډ کې د سپرو يوه ډله هلته راورسيده، يوه په عمر پوخ د ښکليو جامو خاوند خپل ملګری ايسار کړل، خلکو چې هغه وليد، لاس په نامه په احترام ودريدل، د ښکليو جامو خاوند د پيښې کيسه واوريده او بيا

له آس څخه پلی شو، ګرندی وړاندې ورغی دښار خلکو لاره ورته وکړه او شاته شول.

نرملا په هوښ راغلې وه، جي کرشن خپلې متې ورته تکیه کړې او دهغې دکینولو هڅه یې کوله، دښار یوه سړی خپله پګړۍ څیرې کړه او د نرملا پر تندی یې پټۍ وروتړله، دښکلیو جامو خاوند وړاندې ورغی وې پوښتل: ته خو به ډیره نه وی ژوبله شوې؟

نرملا څه ځواب ورنکړ، هغه سړی چې پټۍ یې تړله په بیړه ودرید لاس یې په درناوی جوړه کړل او ویې ویل: ټولواکه!

دبګوان مهربانی ده چې له مرګه بچ شوه، که د پیل پښه لږ دې خوا ته شوې وای، نو بیا ددې خیر نه و. ددې آس په دواړو پښو ودرید، دښکلیو جامو خاوند یوې اوبلې خواته وکتل وې پوښتل: پیل خو به کوم بل چاته څه زیان نه وی رسولې؟

یوه تن ځواب ورکړ: په وړاندې کوڅه کې یوسړی د هغه ترپښو لاندې شو.

- ډیر افسوس دي. وګوری که دهغه کوم وارث وي ماته یې راولی، دا یې وویل اوبیا یې نرملا ته پام شو. ویې پوښتل: ستا کور چیرته دی؟

د نرملا پر ځای جي کرشن ځواب ورکړ: موږ له قنوج څخه راغلي یو او موږ ته معلومه نه وه چې ددې مُلك پیلان دښارونو او ځنګلونو تمیز نه کوي.

هغه د جي کرشن د طنز پروا ونکړه، ویې ویل:

زه په دې پیښه خپه شوم، که زه غلط نه شم ته ددغې د یوې...

-: زه ددې پلار یم... جي کرشن زر دهغه خبره وربشپړه کړه.

-: ته چیرته ځې؟

-: سومنات ته.

-: نو زموږ هدف یو دي، تر سومنات پورې تاسو زما میلمانه یاست.

جی کرشن اټکل وکړ چې دې له یوه لوی سړي سره مخاطب دی، هغه دهرې موقع څخه د ګټې اوچتولو قایل و، بیا هم هغه نرملا ته وکتل او ویې ویل:

ستا څخه مننه، خو امکان لری زما لور به څو ورځې نور هم پر آس د سپریدو توان ونه لري.

تاسو ډاډه اوسئ، دې ته به ترآس د زیاتي آرامی سیرلۍ بندوبست وکړو،

دایې وویل او بیا عمر خوړلي سړی خپل یوه سپاهي ته امر وکړ:

ته پړاو ته ددوی د رسولو بندوبست وکړه، موږ د پیل احوال معلوموو او راځو.

جی کرشن د عمر خوړلي سړي له تلو وروسته له سپاهي څخه پوښتنه وکړه: دا څوك دی؟

سپاهی ځواب ورکړ: دا مهاراج رګونات دی ، د انهل واړه د لوی راجه تره.

جي کرشن ناڅاپه احساس کړه چې ده ته د بریاو اوفتحو لارې خلاصې شوې دي.له سپاهی سره په خبرو خبرو کې جی کرشن ته معلومه شوه چې رګونات د انهل واړه د واکمن په حیث پر کلني خراج سربیره دشلو پیلانو نذرانه سومنات ته ور وړي.

لږ څنډ وروسته څلورو کسانو نرملا په یوه ګاډۍ کې واچوله او د رګونات د پړاو په لور یې یووړه.دتلو په مهال جی کرشن خپلو ملګریو زیارت کوونکیو ته ترشا راکتل هم مناسب ونه بلل. ځکه چې هغه اوس د انهل واړه د لوی راجه بهیم دیو دتره میلمه و.

په پړاو کې یې هغه ته دشپې تیرولو لپاره ځانګړې خیمه ورکړه. د نرملا حالت له خطر څخه بهر و. د رګونات ځانګړي طبیب چې هغه ولید، جي کرشن ته یې تسلي ورکړه چې لور به دې په ګاډۍ کې په سفر هیڅ په زحمت نه شي.

د شپې مهال جي کرشن په ډیر جوش او جذبه رګونات ته ویل: زما کور اوشتمنی لوټ شول، زما دوطن لویو لویو سردارانو ددښمن د غلامۍ کړۍ اچولې وي، خو ما دا ذلت ونه مانه، هغوی ماته هم ډیرې لویې لویې تمې راکړې، خو که ماته د محمود د اطاعت په انعام کې دقنوج تخت هم چا راکړی وای، نه به مې و منلي، ماته دیوه غیرتي راجپوت "خانزاده" د آسونو سنبالول له هغه تاج او تخت څخه زیات د عزت او درناوی وړ ښکاري. زما د ژوند تر ټولو لویه هیله داده چې د خپلي خاورې څخه د دښمن د شړلو په لار کې دخپلو وینو وروستي څاڅکي وبهوم، اوس زه غواړم چې نرملا دسومنات په پناه کې پریږدم. شاوخوا ټول راجه ګان او سرداران راپورته کړم.

رګونات هغه ته تسلي ورکوله:

موږ ستا غوندې خلکو ته زیات اړتیا لرو. زما باور دی چې ته به ددې هیواد ډېر لوی خدمت وکړې، انهل واړه دسومنات دروازه ده او زما به دا هڅه وی چې په بیرته راګرځیدو کې تا هلته راسره بوځم. لوی راجه ستا په څیر خلکو ډېر قدر کوي، سبا ته چې کرشن له رګونات سره سومنات ته روان شو. نرملا په یوه ګاډۍ کې پرته وه، له هغې سره د رګونات خواخوږې وړو وړو په مینه بدلیده. هغه به هره ورځ څو ځله کله د خپل طبیب او کله د جي کرشن څخه دهغې پوښتنه کوله او چې کله به قافلې په کوم ځای واړول، دی به پخپله هم له طبیب سره د نرملا خیمې ته ورتلو. جی کرشن پردې عزت په جامو کې نه ځاییده، خو نرملا له هغه سره په عام ډول په بې پروایۍ مخ کیده.

هدف ته له رسیدو مخکې د نرملا وضعه ښه کیده، د هغې د سر زخم روغ شوی ؤ، خو د مټو دبندونو رچیدو په سبب یې څو ورځې نور هم استراحت ته اړتیا وه. د سومنات څلور دیوالی ته له ننوتلو وروسته جی کرشن اودهغه لور د رګونات میلمانه وو. د هندوستان دډېرو نورو واکمنو په څیر د انهل واړه راجه هم د سومنات تر حصار دننه ځانته یوه ښکلې ماڼۍ جوړه کړې وه. رګونات په همدې محل کې اوسیده او دهغو څو کوټې یې جي کرشن او نرملا ته ورکړې. د رګونات په مهربانیو چې څومره جي کرشن خوښ ؤ هومره نرملا اندیښمنه وه او هغې د خپل پلار درضا پرخلاف له هغه څخه ځان لرې ساته.

رګونات دوې اونۍ هلته پاتې شو. په دې موده کې یې له نرملا او دهغې په سبب له جی کرشن سره مصروفیتونه ډېر شول. هغه به د نرملا د پوښتنې په پلمه سهار او ماښام د دوی کوټې ته ورتلو او نرملا به هر ځل هغه ته ویل چې زه اوس بلکل روغه یم.

نرملا دنځا او سندرو پر ځای له کتابونو لوستلو سره زیاته مینه درلوده، او رګونات د مذهبی مشر په ملګرتیا ددرمسال یو مشهور او معروف پنډت خدمت ته چمتو کړ،د رګونات د دلچسپۍ په سبب نرملا د یوې عادی نجلۍ پر ځای دهغو عالی نسبه شهزادګیو په څیر ګڼل کیده چې درمسال ته د زده کړې او روزنې لپاره راغلې وې.

جی کرشن د رګونات په بلنه انهل واړه ته دتلو اراده کړې وه، هغه چې رګونات پر ځان مهربانه ولید ،نه یوازې د ځان، بلکې د نرملا د راتلونکی په

اړه هم ډېر امیدوار وُ.

دوې اونۍ وروسته د مخه ښې پر وخت هغه نرملا ته وویل: لورې! زما د ژوند وروستۍ هیله دا ده چې ته دکومې پاچاهۍ ملکه شې، که له ماسره ستا د راتلونکې غم نه وای، نو نه به مې یوازې دلته نه پرېښودې او له رګونات سره به نه تلم.

د نرملا سترګې راډکې شوې ویې ویل:

پلارجانه! زما له دې سره هیڅ مینه نشته چې ملکه دې شم.

زه دنیا پرېږدم او غواړم د لوی دیوتا خدمتګاره شم. زه به په دې ځای کې خوښه یم.

چې کرشن دهغې پر سر لاس کېښود ویې ویل:

لورې! ته دې باید د پلار په بې وسۍ اوښکې تویې نکړې. زه په دې حال کې هم ستا لپاره د خوښیو محلونه جوړولی شم.

.....

روپ وتي په ډېره ناکرارۍ د لمرلویدو انتظار کاوه. هغې ته د نڅا ورزده کونکیو او پالونکیو په یوه اوږده اونه زغمونکې انتظار وروسته زیری ورکړ وُ چې نن به ته د دیوتا په وړاندې خپل جوهر ښکاره کړای شې. دهمدې ورځې لپاره هغې ډېرې ورځې څو، څو ساعته دنڅا او رقص تمرین کاوه. د سومنات په نمانځنه کې رقص او موسیقۍ ډېر زیات ارځښت درلود. ځکه خو ځوانانو او ښکلو نجونو ته ددې فنونو د زده کړې لپاره ډېر غوره ښوونکې تیاکل شوي وو.

د لوړو کورنیو نجونو ته چې په خپله خوښه دلته راتلې او دلته دایمی نه اوسیدې، له څو میاشتو زده کړې وروسته د سومنات په مخکې د سندرو او موسیقۍ او یا نڅا اجازه ورکول کیده، ددوی پلرونو به ددوی ددې برۍ په نذرانې ورکولې، بیا به له داسې نجونو سره د واده هیله کوونکیو ددوی د دبرې په صورت کې به یې مذهبي مشرانو ته ددوی په غوښتنه انعامونه ورکول، ځکه خو به د مذهبي مشرانو داهیله وه چې داسې نجونې ژر تر ژره

فارغې کړي او نويو نجونو ته ځای پيدا کړي.
خو داسې نجونې چې څوك يې نه درلودل او يا به يې وارثانو د سومنات د خدمت لپاره نذر کړې وې، دوی د درمسال دخدمتګارانو په نامه يادېدې او د ښوونې او روزنې يوه اوږده دوره به يې تېروله. په دې اوږده اوله زغم وتلې موده کې به دوی ته د درمسال ډېر داسې رازونه افشا کېدل، چې بهر څوك پرې نه خبرېدل، دعادی ښېې او ښيرې او لږ ذهانت درلودونکې نجونې له اوږدو پړاوونو تېرولو څخه دمخه له درمسال څخه رخصتيدلې، په دوی کې که کومه يوه دښه بخت خاونده وای، نو د واده لپاره به څوك ورته پيدا شول، که نه نو دوی به دژوند د ورځو شپو اړولو لپاره له درمسال څخه دهغو لوړ نسبه نجونو له رخصتيدو سره دهغوی دخدمتګارانو په توګه وررسره ولاړې.
ددې خبرې پوره خيال ساتل کيده چې ددرمسال دپټو رازونو څخه هغوی هيڅ خبرې نشي او ددوی پر زړونو د سومنات د عظمت او هيبت هميشنی اغيزه ورسره يوسي. خو په دوی کې ځينې داسې وې چې خپل بد نصيب به يو ځل ددرمسال هغو تيارو ګوټونو ته ورټېل وهلې، نو د درمسال له پالونکيو پرته دهغوی په ژوند او مرګ څوك نه خبريدل.
د درمسال ځلور ديوالی ته له ننوتلو وروسته روپ ونی ترڅه مودې پورې ډېره خپه او غمجنه وه، د رام نات يادونو ډېره ناکراره کړې وه. دهغه زړه وړونکی نغمې به تل د دې په غوږو کې کړنګېدې. خو دغه ټولې خبرې ددې په نظر ګناه وه . دا د سومنات خدمتګاره او پالونکې شوې وه،د شپې به چې يوازې وه، ژړل به يې او دخپل ديوتا څخه به يې د صبر او همت غوښتنه کوله، څومره چې وخت تېريدو ددې دزړه زخم رغيده. ټول اميدونه او هيلې يې ددرمسال په ځلورو ديوالونو کې راټول شوي او دژوند ښکلي تصور دماضي په تيارو کې ترې ډوب شو.
ددې په غږ کې يو بلا زړه راښکونۍ چې د موسيقی استاذان ددې په غيرمعمولی استعداد ډېر زراعتراف ته مجبور شول،ددې ښکلې څيرې او مناسبو اندامونو د نڅا او رقص دښوونکی هم زړ پام وروااړاوه. يوه ورځ يوه تجربه کار استاذ دې ته وويل:
روپ وتي! ته ښې سندرې ويلی شې. که همدغسې نڅا وکړای شې. نو

يوه ورځ به د درمسال د ديوې تاج ستا پر سر کېښودل شي.

هغې ځواب ورکړ:

د درمسال د ديوې تاج زما له خيالونو څخه ډېر اوچت دي، باداره! زه يو ځل غواړم د خپل ديوتا د بُت په مخکې خپل عقيدت وړاندې کړم، له هغې وروسته به زما په زړه کې بل هيڅ ارمان پاتې نشي.

هغه ورځ لرې نه ده چې ستا دا هيله ترسره شي، زما باور دی کومې عامې نجونې چې په کلونو کلونو څومره څه زده کوي ته به يې په مياشتو کې زده کړې، يوازې زيار ته اړتيا ده.

روپ وتي په اميدواروونکی لهجه ورته وويل: زه به زيار وباسم، له هغې وروسته دې هر سهار او ماښام دنڅا او رقص تمرين کاوه، ددې پښې به شلې شوې. هربند به يې خوږېده، خو تمرين ته به يې دوام ورکاوه، کله به چې بې سيکه شوه او وبه لويده، او استاذ به د استراحت مشوره ورکړه، خو په دې فن کې دکمال تر لاسه کولو جذبه به پر بدنی خوږو اوستومانيو زوروره شوه، بيا به جګه شوه او په نڅا به ورګډه شوه. کله کله به دې په خوب کې ليدل چې د سومنات د بُت په مخکې رقص کوی او لوی ديوتا لهډېرو ديوتاګانو سره له آسمان څخه راکوز شی دې ته ګوری ، دا زما ديوتا ، زما ديوتا چيغې وهي اودهغه په پښو کې ځان وروغورځوی لوی ديوتا يې ورسره جګه کړې او هغه نړۍ ته يې ورسره بوزی چې هلته د هميشه بهار ګلونه غوړيدلي وی اووږمې يې خپرې وې، شرشرې او خوږونه نه ختميدونکی راګ وايي، له داسې خوبونو څخه به چې راويښه شوه، تر ډېره به په همغو ښکليو خيالونو کې ډوبه وه، د ډيريدنې رياضت په سبب د روپ وتی بدن يو څه نری شوی ؤ، خو په ښکلا کې يې بې دريغه زياتوالی راغلی ؤ او سترګې يې ډيرې زياتې راښکونکې شوې وې.

.....

د لمر لويدو سره د درمسال دزنګ له کړنګيدو اودناقوس د غږ سره د روپ وتي زړه په درزا شو . د نڅا کوونکيو نجونو له يوې ډلې سره په هغه ځای ولاړه وه چې يوه دروازه يې هغې پراخې کوټې ته خلاصيدله چې په منځ کې يې دسومنات بُت دريدلی ؤ .د نڅا ګرو نجونو څو نورې ډلې هلته دلته د

پردو تر شا ولاړې وې.

دزنګونو او ناقوس غږونه اوچت شول.

برهمنانو دسازونو ږغول پیل کړل، اوله هغې وروسته دنڅا کوونکو نجونو هرې ډلې په خپل وار د خپل کمال په ښودلو پیل وکړ، په پای کې دهغې ډلې وارشو چې روپ وتی هم د رقص لپاره ناکراره پکې ولاړه وه، د دیوتا کوټې ته په ورننوتلو د یوې شیبې لپاره د روپ وتی احساسات ویده شول، په غمیو او جواهرو ښکلیو شویو فانوسونو کې د بلو شمعو تیزی رڼا په چت، دیوالونو ، ستنو او دروازو په پردو کې لګیدلیو رنګارنګ غمیو او جواهروله غبرګون وروسته سترګې بریښولې، د سومنات بت چې په ډول ډول غمیو ښکلی شوی ؤ دستورو په څیر ځلیده ، برهمنان د دیوالونو سره دریدلې وو، له دوی نه وړاندې دسومنات د بُت په شاوخوا کې دهغو دیوتاګانو د سرو او سپینو زرو بُتان دریدلې وو چې د سومنات ددیوتا ددروازې ساتونکی بلل کیدل.

نڅا پیل شوه د ګونګرو شرنګا شرنګ او د پردو ترشا د سازونو غږ د روپ وتی په بدن کې د بریښنا څپه وځغلوله. هغه نڅیدله او دټولو نجونو په نسبت دلږې تجربې سره سره د ټولو سترګې د همدې په لور ور اوښتې وې. داسې ښکاریدله چې د ژوند ټول ټکانونه راټول شوي دي او ددې بدن ته راغلې دي ، د هرې ډلې نجونې یوه یوه د سومنات مخې ته راتلې او لږ ځنډ دخپل کمال له ښودلو وروسته د څنګ کوټو ته تللې. کله چې د روپ وتی نوبت راغی،له خپل شاوخوا څخه ناخبره تر ډیره وخته پورې و نڅیدله، خو ننداړچیان دومره ډوب وو چې د وخت احساس یې نشو کولی ، داسې احساسیدله چې ددې دبدن هره ذره په نڅا ده په دې کې د سمندر لوري ته خلاصیدونکی دروازې څخه مذهبی پیشوا راغي، څو شیبې یې د روپ وتي د رقص له ننداړې څخه وروسته لاس پورته کړ او ناڅاپه ساز چوپ شو، روپ وتي له ویرې په منډه ولاړه د پردې تر شا غلې شوه.

مذهبي مشر وویل: چندر ما د سمندر دیوتا راویښ کړ، اوس به یوازې د سومنات دیوي رقصیږي.

دپردو له شا څخه د مختلفو سازونو غږ یو ځل بیا راپورته شو اوټولې نجونې له مختلفو دروازو څخه راووتې، بیا د بُت په مخکې راټولې شوې پر

غولی کیناستلې خپلې متې يې په فضا کې خوځولې، يوه ښکلی اوښايسته نجلۍ چې پر سر يې د غميو تاج ځلیده راښکاره شوه او په نڅا د سومنات د بُت مخې ته راغله ، دهغې نوم کامنی ؤ، خو خلکو د سومنات ديوې بلله، د کامنی نڅا د عبوديت د جذباتو دڅرګندونې پر ځای د بدن د تندی ښکارندويه وه،هغه د يوې ټپی زمرۍ په څير اوښته او رااوښته، متې يې دمارانو په څیر خوځولې، د خپلو پالونکيو بدنونو ته د آرام ورکوونکي ديوتا په وړاندې دا يوه مجسمه هيله وه.

په درمسال کې د ناقوس او زنګونو غړونه نور هم جګ شول، پالونکيو او ساز غږوونکو نجونو په لوړ غږ سازونه غږول پيل کړل، چې څومره د زنګونو غړونه لوړيدل، دکامني جوش او احساسات زياتيدل.

داسې ښکاريدله چې ددې په رګونو کې د وينې پر ځای بريښنا ځغلي، بيا د درمسال څخه بهر دسمندر شور اوچت شو او د اوچتيدونکي څپې اوبه کوټې ته ورننوتې کله چې په کوټه کې اوبه زياتې شوې. نو نڅاګرو پالونکيو چغې کړې، لوی ديوتا دې ژوندی وي او د درمسال پاسنۍ برخې ته يې مخه وکړه، اوس ددوی پر ځای د سپوږمۍ ديوتا دغه ذمه واري ترسره کوله.د سومنات بُت ورو ورو په اوبو کې ډوبيده، د نمانځنې مراسم بشپړ شوي وو او د پالونکيو دنارو په ځواب کې بهر په زرګونو خلکو چې له درمسال څخه بهر ولاړ وو د " ژوندئ دې وی مهاديو" شعارونه بدرګه کول.

.....

د سومنات د بُت په مخکې چې روپ وتی.د خپل رقص کمالات وړاندې کړل ،دخپل فن استاذان څه چې لوی مذهبی مشر يې هم پر ځان مهربانه کړ.

هغې ته يې اوس د عامو نجونو پر ځای، د لوی مشر د محل سره په سانداره ماڼۍ کې يوه ځانګړې کوټه ورکړه، هلته به د لوړې درجې پالونکې اوسيدې.

ددې ماڼۍ په پاسنې پوړ کې کامني اوسيده . د درمسال او مذهبی مشر دماڼۍ لور ته ددوی دتلو راتلو لارې د عامو لارو څخه بيلې وې، هغوی کامنی او له هغې سره يوځای اوسيدونکی نجونې له ځانګړيو وختونو څخه پرته هروخت نشوای ليدای، په درمسال کې دننه او بهر دکامني حيثيت ديوې

ملکې په څیر وُ او کومې د درمسال خدمتګارې اویا پالونکی له هغه سره دزیاتو خبرو او نژدې کیدو جرئت نه کاوه. په درمسال کې مشهوره وه چې کومه نیکمرغه نجلۍ دسومنات د دیوې تاج پرسر کوي، هغه په څو میاشتو کې دننه په یوه نامعلومه لاره د لوی دیوتا دربار ته ځان رسوي، او ددې دنیا انسانان یې بیا هیڅکله نشي لیدای،له دې وروسته دغه تاج دکومې بلې نیک بختې پر سر اېښودل کیږي.

ځینې وخت داسې هم کیږی چې یوه خدمتګاره د درمسال د دیوې له تاج پر سرولو څخه څو اونۍ اویا څو ورځې وروسته ورکه شي، خو د کامنې په باب خلك حیران وو چې درې کاله کیدل د دیوې تاج یې پر سر اېښی وُ خو تراوسه مهادیو هغې ته پرخپل دربار کې ځای نه وُ ورکړی، ځینو نجونو به په غوږ کې یوې او بلې ته ویل چې له کامنی نه څه ګناه شوې ده، ځکه یې مهادیو خپل دربارته نه ورغواړي، خو د زیاترو رایه دا وه چې ترڅو کامنی غوندې ښایسته او با کماله نجلۍ پیدا نشي. مهادیو به هغه وړ ونه غواړي.

روپ وتي دهغو نجونو له ډلې څخه وه چې ویل کیدل چې ښایی دکامنې ځای ونیسي. دعامو نجونو له هستوګنځی نه هغه شانداري ودانۍ ته دتلو نه وروسته روپ وتی د نڅا په تمرین کې نوره هم زیاته بوخته شوه. یوه ورځ سهار وختی په خپله کوټه کې د معمول په څېر هغه نڅیدله چې چا ورو دروازه خلاصه کړه او دننه ورغی. تر لږ ځنډه هغه په خپله نڅاکې ډوبه وه. خو بیا یې ناڅاپه سترګې د دروازې لوری ته وروا ښتې او چې مذهبي پیشوا یې ولید، حیرانه شوه، مذهبی پیشوا یو غنم رنګي د ټیټې ونې خومزبوتو-متو خاوند سړی وُ. دهغه عمر تر څلویښتو کلونو اوچت وُ ، خو له څیرې څخه یې دسهی عمر معلومول ګران وو، لویو لویو بریتونو یې د پلن مخ هیبت نور هم زیات کړی وُ، سترګې یې ډیرې لویې لویې وې او ګڼې وروځی یې سره نښتې وې، روپ وتي چې په خپلو حواسو راقابو شوه، ټیټه شوه ، دهغه په پښو یې لاس کیښودل او بیا یې لاس په سلام جوړه ونیول ودریده.

مذهبی مشر دهغې په څیره خپلې سترګې ښخې کړې ویې ویل: ته ډیره ښه ناڅې.

روپ وتي دهغه د کتلو تاب رانه وړ، سترګې یې ښکته واچولې، پیشوا له

لږ ځنډ وروسته بیاوویل:
که ستا مینه همدغسې وه، نو ډیر ژر به زده کړې، زه به کامني ته ووایم چې ستا خاص خیال ساتي.
پیشوا بیله دې چې نور څه ووایي ووت، روپ وتي په خپل زړه کې د خوښۍ ټکانونه احساسول اولږ ځنډ وروسته له هغه مانۍ څخه لږ لرې هغې یوه بل شاندار محل ته مخه کړه، دهغې مانۍ دوهم پوړ ته چې وختله، د یوې کوټې دروازه یې و ټکوله د ننه یو ښځینه غږ اوچت شو:
څوك یې؟
-زه یم روپ وتي.
-دننه راځه!
روپ وتی چې دننه ورغله،نرملا پر خپله بستره پرته وه، چې روپ وتي یې ولیده،وغځیده او بیا جګه شوه کیناستله. روپ وتی ورته وویل:
ته تر اوسه پورې ویده وې، اوس خو لمر هم راختلی دی.
نرملا ځواب ورکړ: ویده نه وم، هسې پرته وم. جګیدل مې زړه نه غوښتل، کښینه. ستا خو ساه سوځیدلې ده، خیر خو به وي؟
روپ وتي هغې ته نژدې کیناستله او ویې ویل:
نن یوه عجیبه پیښه وشوه، تر اوسه داسې احساسوم لکه خوب مې چې لیدلی وي. زه مې په خپله کوټه کې په نڅا بوخته وم چې ناڅاپه ګورم هلته مشر پیشوا دریدلی وی ،بیا زه ونه پوهیدم چې چیرته یم.هغه وویل: ته ډیره ښه ناڅې، زه به کامنی دیوی ته ووایم چې ستا خیال کوي، بس همدا یې وویل او بیاولاړ.
نرملا وویل: ماچې تیره ورځ ستا رقص ولید . درته ومې ویل چې کومه ورځ به د درمسال دیوي شې، اوس خو به ته دا نه وایې چې ماتګي درسره کوله، ته ډیره نیکمرغه یې ،روپ وتی خو زه ویریږم.
-له څه ویریږې؟
-زه فکر کوم چې لوی دیوتا به ماته په خپل دربار کې څه وړ ځای راکړي؟ دکامني نڅا مې چې ولیده،زما په زړه کې هیڅکله هم دا خیال نه دي راګرځیدلې چې زه به همغسې شم.

-ته خبره یې چې کامني دیوی ستا په باب څه وویل؟
- څه یې وویل، چیرته یې وویل؟!
-زه پرون دهغې د درناوي لپاره ورغلی وم، هغې ویل چې روپ وتی به یوه ورځ له مانه ښه شي.
-کامني دیوي ډیره زړه سواندې ده، خو زه ددې وړ نه یم.
-تا کله په هنداره کې خپل مخ لیدلی دی؟
-زما په مخ کې څه دي؟
-ته ډیره ښکلې یې روپ وتي.
-ترتا خو ډیره ښکلې نه یم.
نرملا په مینه د هغې پر سر لاس راتیرکړ او ویې ویل: ته ډیره معصومه یې.
نرملا او روپ وتي چې یو له بله سره وپیژندل، ډیره موده یې نه کیده، یوازې درې میاشتې دمخه لومړۍ ځل نرملا هغه په نڅا ولیده.له هغې نه وروسته یوه ورځ چې کله نرملا له خپل استاذڅخه سبق واخست او بیرته راتله ، د خدمتګارو د هستوګنې دکوټو له یوې کوټې څخه یو خوږ غږ راووت چې سندره یې زمزمه کوله. د نرملا په غوږو هغه غږ ډیر ښه اوخوږ ولګید.تر لږ ځنډه دوره ترشا ودریده او بیا ورو کوټې ته ورننوته. سندرغاړې روپ وتی وه.
نرملا ورته وویل: وبخښه ستا غږ زه کوټې ته راکش کړم.
- راځه تشریف راوړه! روپ وتي په غوړیدلې تنده ځواب ورکړ.
-نه زه به بیا راشم اوس مې زه سبق زده کوم.
-خامخا بیا راشه.
نرملا دروازې ته نژدې ودریده او بیرته یې روپ وتی ته مخ راواړاوه ویې ویل: څو ورځې وړاندې ما په نڅا ته ولیدې هغه وخت مې هم غوښتل درسره وګورم زه تاته دا وایم چې د درمسال د دیوي تاج به یوه ورځ ستا پر سر وي.
-ته ټوکې کوې.
-نه زه ټوکې نه کوم.
دا ددوی لومړۍ لیدنه وه، له دې وروسته په څو نورو لیدنو کې دوی دواړه دیو بل ښې خورلڼې شوی وې. نرملا تراوسه د انهل واړه دراجه په ماڼۍ کې اوسیده،معمولاً به هغه پخپله د روپ وتی دلیدو لپاره ورتله. خو چې کله

هغه کومه ورځ وخنډیده، نو روپ وتی به ځان وروړساوه.

......

یوه ورځ روپ وتي د نرملا له لیدو وروسته په زینوکې ښکته کیده چې په لاندیني پوړ کې یې د چا دسندرو غږ واورید. هغې څو ګامه ورو ورو واخستل اوبیا یې بې حرکته او حیرانه ودریده. یو خیال یې په ذهن کې وروګرځېد چې ټول بدن یې ولړزاوه.

د زړه له دراز سره یې ساه ګانې تونډې شوې، دغه نغمه ډیر ځله دې اوریدلې وه، ډیر ځله یې پخپله هم ویلې وه، یو وخت یې د همدې نغمې پر سُر او تـال کې معصومه دنیـا له مستۍ اوخوښیو ډکـوله، خـو اوس دې دخوښیو پرځای د ویرې اواندیښنې احساس کاوه، ساه یې تنګه شوه او زر زر یې ګامونه واخستل، لاندې پوړ ته یې ځان ورساوه، خو نور د وړاندې تلو همت پکې نه وُ، څو شیبې وروسته په ویره ، ویره او زړه نازړه هغه کوټې ته ورننژدې شوه چې د سندرې غږ ترې راتلو. د دروازې له یوې پلې سره ودریده، څو ځلې یې دننه دتلو اراده وکړه. خو لړزونکی لاس به یې د زنځیر له نیولو وروسته بیرته وچ کلک شو اوپخپله به بیرته په شا شوه. دې غوښتل دننه وروګوري . خوناڅاپه د برنډې په وروستۍ برخې کې د یوې کوټې دروازه خلاصه شوه او دا په ویره بیرته د زینو په لور ولاړه. د ښکته کوزیدو پرځای بیرته دنرملا کوټې ته ورغله.

نرملا په حیرانۍ ترې وپوښتل: څه خبره ده؟

روپ وتی په ویریدلی لهجه ترې وپوښتل:هغه... هغه څوك دی؟

-دچا په باب پوښتنې کوې، څه پیری خو به دې نه وي لیدلی؟

-په لاندې پوړ کې څوك سندرې وایی هغه څوك دی؟

-هغه تاته څه ویلی دي؟

نه ، نه، ما چې دهغه غږ واورید ، وویریدم.

-کښینه ستا طبعه سمه نه ده، رنګ دې تك زیړ شو.

چې لاندې سندرې وایی . هغـه کـوم پیری نـه دی .انسـان دی او هغـه ویروونکی هم نه ښکاري ما خو ځله لیدلی دی.

-هغه څوك دي، ته یې پیژنې. دلته د څه لپاره راغلی؟

- هغه د انهل واړه د راجه سړی دی، اوریدلي مې دي چې يو زړه ور سرتيرې دی او دلته چې رارسيدلی دی د پوځ يو لوی منصب يې ترلاسه کړې.
- ستا باور دی چې د انهل واړه د راجه سړی دې؟
- که هغه د راجه سړی نه وای، نو په دې مانۍ کې به د اوسيدو اجازه نه وای ورکړای شوې.
- خو هغه... روپ وتی همدومره وويل او چوپه شوه.
نرملا ترې وپوښتل: هغه څه...؟
هيڅ نه، ما فکر کاوه چې هغه دنړۍ يو رټل شوی انسان دي.
- هوکی دهغه په غږ کې ډير درد دی، هغه چې کله وخت ومومي سندرې وايي، کله کله خود شپې په دريمه برخه کې سندرې وايي، خو زه ستا د انديښنې په سبب ونه پوهيدم، رښتيا ووايه هغه خو به ستا سره څه گستاخی نه وی کړې؟
- نه. ماهغه لا تراوسه ليدلی هم نه دی.
- نو دومره انديښنه ولې کوې؟
روپ وتي بې خوابه شوه ويې ويل: ما چې دهغه دردناك آواز واوريد، په تلو تلو کې ودريدم اوبيا مې داسې احساسوله لکه خوب چې وينم اولوی ديوتا مې ملامتوي. پر ما بايد دکوم نارينه غږ هم ونه لگيږي.
- ته ډيره معصومه اوساده يې.
- کله کله زه د ليونيو په څير خبرې کوم. ښه زه نوره درنه ځم.
روپ وتي چې له کوټې راووتله، د سندغاړې نغمه چوپه شوې وه، داچې لاندې پوړ ته راغله، يو سړی يې وليد چې زينو ته نژدې په برنډه کې ولاړ و او بهر نه يې کتل، د هغه مخ د ستنې نه پټ وو، خو په همغه شيبه کې چې روپ وتی ترې تيريده او پنځه شپږ زينې ښکته کوزه شوه، هغه سړي په بيړه په زينو کې ورپسې ښکته شو، روپ وتي ناځاپه شاته راوکتل او په يوه شيبه کې يې پر سترگو تياره راغله. دا همغه ځوان و، چې دې غوښته، رام نات په خپلو خيالونو کې ډوب وړاندې تير شو. خوناځاپه يې پښه ونيوه مخ يې راواړاوه او غږ يې وکړ: روپا، روپا! دهغه د زړه اوروح فرياد ناځاپه دده پر شونډو جاري شو. د دواړو سترگې يو پر بل ښخې شوې اوبيا يې داوښکو پردې تر منځ

ودربدې

روپا! زه له ډېرو ورځو راهیسې دلته سرګردانه یم. په همدې تمه چې یوه ورځ به راسره مخامخ شي. ما چاته ستا نوم هم نه شو ورښودلي. بګوان مې فریاد واوریداو ته یې دلته راواستولې، اوس به زه تا له خپلو سترګو الونیه نه کړم. اوس به تا له مانه هیڅوك هم وانه خستلی شي.

روپ وتی د بې شانه اندیښنې په حال کې یوې او بلې خواته وکتل او وې ویل: د بګوان لپاره داسې خبرې مه کوه

رام نات ور وړاندې شو اودهغې لاس یې ونیو وېې ویل: له ماسره راځه! روپا زه تاته ډېرې خبرې لرم.

روپ وتی پرته له دې چې څه خبره ورته وکړي ورسره روانه شوه، څو شیبې وروسته دا د رام نات په کوټه کې ولاړه وه.

هغه ورته وویل: روپا! زه ستا د بیولو لپاره راغلی یم. اوس به دسومنات د دمسال لوړ دیوالونه زموږ تر منځ بیلتون نه راولي.

هغه سرترپایه عذر شوه وېې ویل: دبګوان لپاره داسې خبرې مه کوه. ته باید دلته نه وای راغلی. اوس موږ د نل لپاره له یو بل څخه بیل شوي یو

زمونږ ترمنځ اوس یو غر دریدلی دی. له هغې څخه د تیریدو هڅه به موږ دواړه لولپه کړي.

زه د لوی دیوتا خدمتګاره شوې یم. نوز له دې نړۍ سره زما هیڅ اړیکې نشته. زه ستا لپاره مړه شوې یم

-لیونی! ته فکر کوې چې هغه د ډېرې بُت به تا له ما څخه واخلي؟

- دبګوان لپاره داسې خبرې مه کوه!

ناداني رام نات داوویل او غوښتل یې خپل لاسونه د هغې پر غاړه ورواچوي، خوهغه ناڅاپه یوې خواته شوه او له غوسې نه په ریږدیدو شوه وېې ویل: ته ماته لاس نه شې راوړی. له دې وروسته به ته ما ونه لیدای شې.

-زه به د سومنات د بُت په مخکې چیغې کړم چې ته زما یې.

ته لیونی شوی یې. روپ وتی دا وویل او دروازه یې خلاصه کړه په منډه بهر ته ولاړه. رام نات د ډېرې بې وسی په حالت کې ولاړ و. دهغه مسافر په حمر چې هر څه یې ترې لوټ شوي وي

# رنبیر او رام نات

د رام نات په مخکې دمایوسۍ له تورو تیارو پرته هیڅ نه وو. ژوند ده ته د بې خونده سهار او ماښام دتسلسل نوم و. هغه زړه وړونکې نغمې چې د روپ وتي مينې ور زده کړې وې ، اوس دده په سينه کې خپ شوې وې، پردې ټولو خبرو برسيره ده غوښتل پردې دوکه وخوري چې روپ وتی له ده څخه د تل لپاره نه ده جدا شوې. هر سهار به جګ شو او درمسال ته به نژدې ولاړ و. عامو خلکو ته له خاصو ورځو پرته دهغه خندق نه د تيريدو اجازه نه وه چې دکلا پراخه مانۍ يې د درمسال او د درمسال تر څنګ څو مانيو نه جلا کوله. پهره دار به هر تلونکی او راتلونکی په ځير څاره.

رام نات به پنډتان. ملنګان. د بُتانو پالونکی او د ټيټې رتبې خدمتګاران ليدل چې په پله به تير اوبير کيدل . خو روپ وتي به يې چيرته تر سترګو نشوه. بيا به د مايوسۍ په حالت کې بيرته د پوځ د روزنې پارکونو ته راستون شو. په لومړيو څو ورځو کې هغه په تيغ وهلو او نيزه بازۍ کې ښه نوم وګاټه. خو له روپ وتی سره له ليدو وروسته پر هغه يو ذهني او بدني جمود غلبه وکړه او چې د پوځ افسر به هغه ته په کومه سيالۍ کې د ګډون بلنه ورکړه،ده به ناروغۍ پلمه کړه.

يو ماښام له خپل هستوګنځی څخه راووت او په قدم وهلو د خندق پله ته نژدې ورغی ، د خندق په بله څنډه يې روپ وتی وليده، هغې دنرملا سره خبرې کولې او د پله په لور راتله. د رام نات زړه په درزا شو. روپ وتي چې پله ته رانژدې شوه ودريده. خو نرملا يې لاس ونيو د پله سر ته يې راکش کړه. د پله په نيمايي کې ناڅاپه د روپ وتي سترګې په رام نات ولګيدې، ودريده او بيا يې په وار خطايي يوې او بلې خواته وکتل او ګړندی بيرته په شا وګرځيده

نرملا ترخه خنده په اندېښنه ورپسې کتل، بيا د خپلې کوټې په لور روانه شوه، رام نات د زهرو ګوټ تېر کړ او څو شيبې وروسته په نرملا پسې ورغی.
په بېړه يې هغې ته خان ورنژدې کړ، په هيله منه لهجه يې ترې وپوښتل: ديوی ودرېږه! هغې مخ ورواړاوه او ورته وېې کتل.
زه يوه پوښتنه درنه کوم!
نرملا په نرمۍ ځواب ورکړ: وپوښته!
زه ددې نجلۍ په باب پوښتنه درنه کوم چې دا اوس ستا سره را روانه وه.
نرملا د درمسال د ديوی کيدونکې لپاره د نجلۍ په نامه يادولو لږ بده ومنله او ويې ويل: ترديې پخوا چې ته نور څه ووايې داويل ضروری بولم چې هغه کومه عادی نجلۍ نه ده، هغه به ډېره زر ددرمسال ديوې شي.
د رام نات زړه ولويد او لږ په محتاطه لهجه يې وويل: داسې معلومېږی چې هغه ستا ملګرې ده، يوه ورځ مې په محل کې وليده لکه چې هغه ستا ليدو ته راغلې وه.
نرملا وويل:
نو هغه ورځ د هغې داندېښنې سبب ته وې. نن هم لکه چې هغې ته وليدې او بېرته ستنه شوه. که ته له ژونده زړه توری او لاس پر سر نه وې.
نوبيا د هغې په لور سترګې ورواني رو دا د لوی ديوتا درمسال دی د انهل واړه بازار نه دي
رام نات غوښتل چې نور څه ووايي. خو الفاظ يې په ستونې کې ونښتل.
.....

رام نات د شپې پر بستره تر ډېره لټ پر لټ اوښت، د هغه دامید وروستی ډيوې مړې شوې وې.
دهغه په زړه کې دمينې نغمې چوپې شوې وې، په ژوند کې يې نور هيڅ ښکلا نه وه پاتې شوې، روپ وتي د تل لپاره ترې اخستل شوې وه، خو پر دې سربېره هغه غوښتل ژوندی پاتې شي، هغه هم يوازې د کرکې لپاره.
روپ وتي دده د مينې ګلان مروړلي وو، اوس ده غوښتل د هغې په سترګو کې ازغی شي، بيا يې له ځانه سره چورت واهه چې آيا زه له هغې څخه کرکه کولی شم؟

او آیا زما د کرکې څرګندونه به پر هغې اغیزه وکړي. نه زما د زړه اور یوازې ماسوځولی شي.

هغه به ما ونه ویني. هغه ما لیدای نه شي، زما او دهغې ترمنځ د درمسال جګ دیوالونه ولاړ دي، هغه ددرمسال ملکه کیدونکې ده. راجه ګان به یې لاس په نامه په مخکې درېږي. هغه به ماته کله راوګوري، له دیوناګانو څخه ویره به زما او دهغې تر منځ پرده وي، او بیا به یوه ورځ د لوی دیوتا دربار ته ولاړه شي.

خو څه ډول او ولې؟

دې پوښتنو ته ده ځواب نه درلود، پر یوه ذهني بدلون برسیره چې پس منظر یې د فکر او خیال د پالنې او لوړتیا پرځای یوازې څو پیښې وې، ددې طلسم تل دده ته نظر نشو رسیدای چې سومنات یې په غېږه کې نیولی و.

ترډېره له چورت وهلو وروسته یې پردې حقیقت اعتراف کاوه چې د روپ وتي د بې رحمی اوبې وفایی سره سره. زه څه نشم کولی. زه د ډېرو دبتانو له ځواك او عظمت څخه انکار کولی شم. خو ددې انکار په سبب دا حقیقت نه بدلیږي چې هغه روپ وتي له مانه اخستې ده او زه یې یو ویښته نشم کړولی. زه که د کوم سلطنت راجه شم هم له سومنات سره جګړه نشم کولی، د درمسال د پیشوا په امر به په لکونو انسانان زما غوښو شکولو ته تیار شي. ما په هغه ورځ ځان څومره نیکمرغه باله چې د انهل واړه راجه ماته یو پیل او دغمیو هار انعام راکړ، چې د سومنات ددرمسال په لور مې مخه کړه، داسې مې ګڼله چې دنیا مې تولهٔ په پښو کې ده، روپ وتي به پرما ویاړي، خو اوس زه څوك یم! یو داسې انسان چې د ژوند هره لوبه یې بایللې ده. په هغه ورځ زه پر دې خبره خپه وم چې د غمیو دهار ورکولو فرصت راته برابر نه شو، خو که ما دغه امیل ورکړی وای، نو دې ښایی په کړس خندلې وای او ویل به یې: دغسې ګاڼې هره ورځ پر ما شیندل کیږي.

د روپ وتي په وړاندې د کمی او حقارت احساس د هغه غوسه نوره هم زیاته کړه. غوښتل یې وتښتي له سومنات څخه ډیر لرې، دومره لرې چې د روپا یادونه یې پریشانه نکړي، خو په دنیا کې داسې کوم ځای نه و، هغه پوهیده چې روپ وتي چې د سومنات دیوی کیدونکې وه، د تل لپاره له ما

خخه اخسنل شوې ده، خو هغه کلیواله نجلۍ به چې دسیند پر غاړه به یې زما سندرې اورېدې، تل په ما پسې وي، دهغه موسکا به تل زما د سترګو مخې ته ناځي، زما اروا به د کایناتو په هیبتناکو وسعتونو کې تل هغې ته چیغې وهي.

هغه په سلګیو شو وېې ویل: روپا، روپا! زه نور دلته نه اوسېږم.

سهار شو، دی پر خپل زړه له زغم څخه اوچت بار سره له محل څخه راووت، د درمسال په لور یې له حسرته ډك نظر واچاوه، بیا یې د کلا ګنې ګوټې ته پام واړاوه، په هغه لوري روان شو چې د آسونو طبیله ده چا یې له شانه په اوږه لاس کیښود چې مخ یې ورواړاوه، بې اختیاره یې ترخوله ووتل:

رنبیره! او بیا دواړه غاړه غړۍ شول.

رنبیر د یوه عادي سرتیري جامې اغوستې وې، په بیړه یې ځان د رام نات له متو خلاص کړ وې ویل: دلته د دواړو دغسې یو له بل سره روغبړ ښه نه دی.

رام نات وویل: ته ډېر ښه وخت راغلې. که نه نو زه کومې خواته تلم. څه وخت راغلې؟ رنبیر ځواب ورکړ:

زه له څو ورځو راسې دلته یم. خود کلا په پوځ کې آبله ورځ شامل شوم. تر دې د مخه له کلا څخه بهر په ښار کې وم. ته چیرته روان وې؟

-نه پوهیږم، ښایي تر یوه وخته په یوه او بله خوا سرګردانی. وروسته ستاسو کلي ته درغلې واي.

- ته ډېر غمجن ښکارې! د روپ وتي څه درك معلوم شو؟

- هغه یې د تل لپاره له مانه واخستله، کاشکې زه دلته نه وای راغلی.

په هغې څه وشول، ماته ټوله کیسه وکړه.

رام نات خپله کیسه ورته تیره کړه او په سترګو کې یې اوښکې ځلیدې.

رنبیر هغه ته ډاډ ورکړ ویې ویل: ته باید مایوس نشې.

رام نات وویل: ته پوهیږې رنبیره چې هغه د درمسال دیوي شي. هغه د نړۍ هیڅ ځواك بیرته نشي راستنولی.

زما باور دی چې ستا مینه به دنړۍ هرځواك ماته نه کړي. رام نات یو ځل بیا هڅه وکړه چې په خس او خاشاك تکیه وکړي. هغه د رنبیر لاس ونیو. ویې

ویل:

ته راځه زه تاته ډیري خبري لرم.

رنبیر ورسره روان شو.

.....

نرملا د محل له زینو څخه را کوزیده. ناڅاپه یې ولیدل چې رام نات او رنبیر پاس ورخیژي، دا د لارې یوې خوانه شوه. رنبیر سربښکته اچولی و او له رام نات سره په خبرو لګیا راروان و. هغه نرملا ونه لیده. دې لومړی ځل په بې پروایی ورته وکتل او چې دوهم ځل یې ورته وکتل بیا یې تکه سره شوه.

او چې ددوی په منځ کې دوې پلې فاصله وه، ناڅاپه رنبیر سر اوچت کړ چې نرملا یې ولیده. ځای پر ځای هك پك ودرید. رام نات څو زینې پاس وخوت. خو دوی دواړو یو پر بل سترګې ښخې کړې وې، یوه هم د سترګو رپولو اویا شونډو خوځولو توان نه درلود.

دواړو د خپلو زړونو درزا اوریده. دنرملا پر مخ سپینې اوسرې څپې تیریدې، رنبیر رام نات ته وکتل چې څو زینې پاس ولاړ و او ده ته یې په اندیښنه راکتل. بیا ورو ورو دی هم پاسورروان شو. نرملا همالته هکه پکه دریدلې وه. کله یې چې دواړه له سترګو پناه شول. نو نرملا پر زینو د کوزیدو پر ځای بیرته راوګرځیده اوپه هرګام یې ټکټ کړندی کیدو. رنبیر د دوهم پوړ په برنده کې ودرید او له رام نات څخه یې وپوښتل: ته پوهیږې چې دغه نجلۍ څوك وه؟

رام نات مخ ور واړاوه ورته ویې ویل:

زه ددې په اړه دومره معلومات لرم چې په دې ځای کې اوسي، یوه نوکر راته ویلې وو چې د انهل واړه د راجه کاکا ددې د پلار دوست دی، خو تا چې هغه ولیده، دومره ولې وارخطا شوې؟

رنبیر وویل:

دا همغه ده! د جی کرشن لور، تا زمونږ په کور کې دا نه وه لیدلې؟

- نه ماته هلته ددې دلیدو موقع برابره نه شوه.

-ددې پلار هم دلته اوسي؟

رام نات غوښتل ددې پوښتنې ځواب ورکړي، خو چې نرملا یې ولیده چې

پاس ورغله چوپ شو، د زينو په ګرځندې کې نرملا د يوې شيبې لپاره ودريده، دوی ته يې وکتل او بيا د دريم پوړ په لور وختله.

رنبير وويل: ما يې د پلار په باب پوښتنه کوله.

رام نات ځواب ورکړ: زه يې د پلار نه هيڅ خبر نه يم، خو دومره ويلی شم چې هغه دلته نشته.

له دې نجلۍ سره له څو نوکرانو او وينځو پرته نور هيڅوک نشته، يوې نوکرې يې ماته وويل چې دا د تعليم لپاره دلته راغلې ده. زه نه پوهيږم چې ته يې ولېدې څه فکر به يې کړي وي، که وغواړې تاته زيات خطرونه پيداکولی شي. دلته په پوځ کې د انهل واړه ډير تولګي شته، که دا هغوی ته حکم وکړي، دغه ماښې به کلابنده کړي، د درمسال تر لوی پالونکی پورې يې لاس رسيږي.

رنبير وويل: کهددې پلار دلته نه وي، نو ماته هيڅ خطر نشته، بيا هم چې زه د کوم هدف په خاطر دلته راغلې يم د هغو په خاطر بايد پام وکړم، ته دلته ودريږه، زه اوس بيرته راځم. رنبير رام نات ته د څه ويلو موقع ورنکړه په بيړه ولاړ او ګړندی په زينو وخوت.

نرملا خپلې کوټې ته نژدې ورسيده، يوې او بلې خواته يې کتل چې رنبير په زينو کې ورښکاره شو، دهغې څيره بيا وپړکيده، چې رنبير وړاندې ورغی دا زړه نا زړه کوټې ته ننوتله. رنبير زړه نا زړه ولاړ و. نرملا د يوې شيبې لپاره تر دروازې بهر ته وکتل او بيا يوې خواته شوه، رنبير کوټې ته ورننوت، دوی دواړو په ټيټو ټيټو سترګو يو بل ته کتل.

نرملا موسکۍ شوه اوله دې سره نو ځای يې په سترګو کې اوښکې راوخوټېدې. رنبير په ځپ غږ ورته وويل: وبخښه! زه ددې لپاره نه يم راغلې چې تا پريشانه کړم.

زه يوازې ددې لپاره راغلم چې درته ووايم چې له مانه څه دخطر احساس ونه کړې.

نرملا په کمزوري غږ ورته وويل: تاته ددې ويلو اړتيا نشته.

-خو زه اوس هم ستا د پلار دښمن يم.

هغې وويل: په دنيا کې که څوک ښه دوست ونه مومي، ښه دښمن هم

غنیمت دی، تاسو باور وکړئ که ستاسو توره زما د پلار په ورمیږه ایښې وې، زه به مې د پلار د بخښنې سوال ونه کړم.

- که ته دا گومان کوې چې زه به مې د پلار دښمن وبخښم، نواشتباه کوئ.

- آیا ددې لپاره راغلی یې چې ماته دغه خبره وکړې؟

د نرملا په ښکلیو سترگو کې یو ځل بیا اوښکې ډنډ شوې. رنبیر چې هغې ته وکتل په سینه کې یې د کسات اور سوړ شو، د څو شیبو لپاره یې غوښتل چې هر څه هیر کړي.

دده په مخکې یوه داسې نجلۍ ولاړه وه چې موسکا یې د ټولو تیرو ترخو وختونو لپاره دوا وه، اوښکو یې د کینې اوغوسې ټول هغه داغونه مینځلای شوای چې دده د ژوندانه په لمن خواره وو، دده په غوږونو کې هغه خوږ او زړه وړونکی آواز کړنگیده چې د یوه نوی ژوند پیغام یې ورکاوه.

ده هغه لاسونه لیدل چې د ژوند د نغمو شلیدلي تارونه یې بیرته پیوست کول.

نرملا د خپلې ځوانۍ او ښکلا سره د هغه د ژوند د داستان نوې پاڼه اړوله.

د څو شیبو لپاره ده غوښتل هر څه هیر کړي، خو ناڅاپه یې ټول بدن په لړزه شو.

له ځانه سره یې په زړه کې وویل:

دا زه په څه چورتونو کې شوم؟ د بوډا پلار وینې اود ځوانې خور اوښکې یې راغلې په مخه کې یې ودریدې او زړه یې ولوید.

نرملا بیا وویل: ته ددې لپاره راغلی وې چې ماته ووایې چې پلار مې نشې بخښلی؟

رنبیر ځواب ورکړ: زما دا امید نه ؤ چې ته به دلته یې، زه دلته د خپلې خور په لټه پسې راغلې یم.

نرملا وویل : ما هم ستا د خور لټون کړی دی، د شکنتلا په نامه دلته درې نجونې دی ، خو په دوی کې یوه هم د قنوج نه ده. ما له لوی پیشوا او د درمسال له پالونکی نه هم پوښتنه کړې ده.

زه ستا ددې خواخوږۍ مننه کوم، خوتاته دا خیال له کومه پیدا شو چې

هغه به دلته وي؟

ستا له کلي ښخه تر راوتلو وروسته ما بګوان ته یوازې همدا دُعا کوله چې ستا خور تانه پیدا شي، ما په ګوالیار کې هم هغه ولټوله . خو ته مایوسه کیږه مه. زما باوردی چې هغه به خامخا درسره یوځای شي، په دې دنیا کې کله کله داسې خبرې هم پیښې شي چې د سړي په وهم او ګومان کې نه وي، دغه خبره زما په خیال کې هم نه وه چې تا به بیا وینم، اوس هم زما باور نه راځي چې ته مې په مخکې درېدلی یې.

رنبیر یو ځل بیا داسې احساس کړه لکه ښځې یې چې په ځمکه نه وي، زړه یې چاودېدو ته نژدې شوې و، ده غوښتل سترګې پټې کړې او په زوره چیغې کړې چې : ته زما یې . که د جی کرشن لور یې هم زما یې. هغه داسې غورځېدو ته نژدې شوې و چې که یو ځل لوېدلی وای، بیا به بیرته نه وای راجګ شوی، خو د احساساتو یوې بلې څپې په همدې قوت دده ددفاع احساس راویښاوه، ده له خپل زړه څخه پوښتل آیا ته جی کرشن بخښلی شې؟ آیا ته خپله خور او پلار هیرولی شې؟

نرملا په نرمه لهجه ورته وویل: مهرباني وکړه کښېنې!

- نه نه، ما وبخښه، هغه خپل لاسونه موټی کړل او ویې ویل: زه باید دلته نه وای راغلی.

نرملا خپل ریږدیدونکي لاس دده مټ ته وروغځاوه او ویې ویل: دا د بګوان لوبه ده او دهغه د رضا څخه پرته موږ دواړه بې وسه یو. خو رنبیر ناڅاپه په شا ولاړ، مخ یې واړاوه او د سترګو په رپ کې بهر ته ووت.

له شانه د نرملا غږ اوچت شو، رنبیره ! او هغه داسې احساس کړه لکه چا یې چې په پښو کې درنې زولنې اچولې وي، خو شاته یې د ورکتلو جرئت ونه کړ، د هغه پښې ریږدیدلې، خوټک یې ورو ورو زیاتیده، دوې نجونې په زینو کې ختلې چې رنبیر یې بیړنی د کوزیدو په حال کې ولید وارخطا یوې خواته شوې، رام نات په لاندې پوړ کې زینو ته نژدې ولاړ و، هغه ورته وویل:

څه خبره ده؟ رنبیره ته ولې دومره وارخطا یې؟ رنبیر پر خپلو حواسو د راقابو کیدو هڅه وکړه ویې ویل: هیڅ خبره نه ده.

لږ ځنډ وروسته هغه د رام نات په کوټه کې و او دواړو په ټیټ غږ یو بل ته

خپل خپل داستان اوراوه، د روپ وتی په باب د څو پوښتنو څخه وروسته رنبیر وویل:

زه اوس له دې کلا څخه وزم، کله چې بېرته راستون شم ، نو درته وبه ویلای شم چې څه مرسته درسره کولی شم.

روپ وتي ته یو لوی خطر پیښیدونکی دی، د هغې له دې ځایه ایستل ضروري دي.

- دڅه خطر؟

- تا نه دې اوریدلی چې کومه نجلۍ چې د درمسال دیوي اویا تر ټولو لویه رقاصه غوره شی هغه یوه شپه خامخا ورکه شي.

- هوکې ما اوریدلی دي، او زه پر دې خبره حیران یم چې هغه په ژوند کې د لوی دیوتا دربار ته څه ډول ځان رسوي؟

رنبیر وویل: که موږ ته دا معلومه شي چې د درمسال اوسنۍ دیوی په کومه شپه بې درکه کیږي ، نو ته به پخپلو سترګو ووینې چې هغه د لوی دیوتا دربار ته څه ډول رسیږي.

-دغه خبره ، خو تراوسه پورې چاته څرګنده نه شوه چې یوه شپه ناڅاپي د درمسال زنګونه وکړنګیږي او خلك پوهیږي چې د درمسال دیوی د لوی دیوتا دربار ته ورسیده، راتلونکی ماښام به درمسال کې جشن جوړیږي او د دیوی تاج د کومې بلې پر سر ایښودل کیږي.

رنبیر وویل:

زه داسې خلك پیژنم چې تل د دغې شپې په انتظار وی چې ډیرې دیوي ګاڼې یې د لوی دیوتا دربار ته د ورتلو په حال کې لیدلې دي.

ما دداسې دیوی په باب خبره اوریدلې ده چې څلور کاله پخوا د لوی دیوتا دربار ته د ورتلو نه وروسته بیرته راستنه شوې وه، که د درمسال لوی مذهبي مشر ته دا خبره معلومه شوه چې هغه تر اوسه ژوندۍ ده، نو د سومنات ټول لښکر به ورپسې ور ووزي.

رام نات وویل:

زه په هیڅ نه پوهیږم، د بګوان لپاره ماته صفا ووایه چې دا څه معامله ده؟

رنبیر وویل: د درمسال د دیوي د ژوند تر ټولو لوی هدف دلوی مذهبي پیشوا خوښ ساتل دي ، چې کله دهغه زړه ترې موړ شي، نو هغه بیا بلې دنیا ته ورسوي، رام نات په ریږدیدونکی غږ وویل.
ستا مطلب دادی چې هغه وژل کیږي؟
رنبیر له طنز څخه په ډکه لهجه ځواب ورکړ:
نه هغه له درمسال څه لرې دسمندر په مخ پریږدي، هلته چې سړی خواره کبان ټل د ښکار په لټه کې ګرځي.
- نه نه، زه دا نشم منلی! تا ته چا دروغ ویلي دي ، دا امکان نه لري.
-دا بو تریخ حقیقت دی او ستا په منلو او یا نه منلو څه توپیر پکې نه راځي، ما دا خبرې ستا د زړه د آزارولو په خاطر نه دی کړې، زه یوازې دا غواړم چې روپ وتي باید له دغه غمجن انجام څخه وژغورل شي، اوس زه ځم رنبیر جګ شو. رام نات وپوښتل:
-ته چیرته ځې؟
رنبیر ځواب ورکړ: له ښار څخه بهر دسمندر پر غاړه یو ملنګ اوسی د هغه نوم بګوان داس دی ، که تاته کله زما ضرورت شو. هغه ته راشه دښار خلك هغه پیژني او ته به یې په پیدا کولو کې ستومانه نه شي.
.....
د رنبیر سره له ملاقات نه وروسته په دوهمه ورځ چې نرملا له خپل استاذ څخه سبق وویلو اوبیرته راروانه وه. د مانې یوې نوکرې ورته وویل چې پلار جان دې راغلی دی او ستا انتظار کوي
نرملا ته د پلار راتګ ناڅاپي و، پلار یې څو ورځې وړاندې یوازې دا پیغام ورته رالستولی و چې د رګونات د هڅو په نتیجه کې د انهل واړه راجه هغه ته زیاته ځمکه وربخښلې ده او دی د هغې په سمبالولو بوخت دی. ځکه دې ګړندی ګامونه واخستل او خپلې کوټې ته ننوته . جی کرشن چې مراوی ولې ده؟ طبعه خودې ښه ده؟ لاس رانبر کړ ویې ویل: لورې! ستا خیره داسې ښکاري لکه دې چې پوره میاشتو پورې سومنات ته رانشي.
وليدلله. جګ شو او پر سر یې

زه بلکل روغه جوړه یم پلار جانه. کښینه!

جی کرشن بیرته پر کرسی کیناست او ویې ویل : لوری رنګ دې ډیر زیړ شوی دي.

نرملا په بله کرسی کیناستله ځواب یې ورکړ: پلار جانه! زه تل تاته ناروغه ښکارم.

- ما ستا لپاره یو زیرې راوړی دی، لورې!

څه زیرې پلارجانه!

جی کرشن جګ شو او د نرملا پر پالنګ په یوه پتنوس کې ایښې یوه صندوقچه یې راواخستله اوددې په غیږ کې یې کیښوده.

نرملا وپوښتل: په دې کې څه شی دي پلار جانه!

خلاصه یې کړه ، ویې ګوره.

نرملا چې دصندوقچې ورخلاص کړ، سر یې پورته کړ، په هغو کې جواهرځلیدل، بیا یې په پوښتونکی نظر پلار ته وکتل.

جی کرشن وویل: لورې دا ټوله ګانه ستا لپاره ده، د نرملا حیرانی په ویره او اندیښنه بدلیده. جی کرشن له لږ ځنډ وروسته وویل: ته ډیره نیکمرغه یې لورې، رګونات دډیرو لویو لویو راجه ګانو دکورنیو نجونې رد کړی اوته یې غوره کړې یې.

زه ستا د بیولو لپاره راغلی یم.

د نرملا پر سترګو تیاره راغله. جی کرشن ددې په مخکې د رګونات د سړیتوب .د هغه ددولت او د هغه د محل د شان او شوکت او د راجه په وړاندې یې د اثر او رسوخ په باب ستاینې ورته کولې، خو لکه نرملا چې هېڅ نه اوریدل، دې په خپل زړه کې له ځانه سره ویل: زما د خیالونو تعبیر همدا و؟ آیا ما د همدې سیلۍ لپاره ډیوې بلې کړې وې؟ آیا د تقدیر پټ لاس موږ یوازې ددې لپاره له مختلفو لوریو څخه راوستلو او یو ځای کولو چې یو له بل څخه دتل لپاره جدا شو؟ پرون رنبیر ماته د نویو امیدونو له پیغامونو سره راغی او زه یې د اندیښنې په حال کې پریښودم او ولاړ، خو زه بیا هم مایوسه نه وم، زما باور و چې هغه به بیا راشي ، په وار وار به راشي، که هغه رانه غی، تقدیر به ماورولي ، خوآیا دا هر څه یو وهم او خیال و؟

جي کرشن د رګونات په ستاینو بوخت و. د نرملا ساه د بندیدو په حالت

کې وه، هغې غوښتل چيغې کړي، خوله ستونې څخه يې غږ نه ووت، غوښتل يې جګه شي او وتښتي، خو له ځايه د خوځيدو سيك پکې نه و، بالآخره جي کرشن له کرسۍ څخه جګ شو وې ويل:

زه به له مذهبي پيشوا سره وګورم او بيرته راځم، ستا د بيولو لپاره دهغه څخه اجازه ضروري ده، هغه بهر ته ووت او دنرملا په وچو سترګو کې اوښکې ډنډ شوې اوتر ډيره پورې په غم کې ډوبه وه.

* * * * *

رام نات سهار وختی له کلا څخه ووت او ښار ته يې ځان ورساوه، هلته يې د بګوان داس پوښتنه وکړه او د سيند پر غاړه يوه بڼ ته ننووت.

بګوان داس چې اصلي نوم يې له څو عقيدت مندو پرته چاته معلوم نه و، د يوې ونېلاندې ناست و، څو کسه پرې ورتهول وو.

رام نات وړاندې ورغی ويې ويل: زه له بګوان داس سره ليدل غواړم، بګوان داس سر راپورته کړ اورام نات ته يې له سره تر پښو وکتل، بيا يی وويل:

زه بګوان داس يم ووايه څه وايې؟

رام نات وويل. زه د رنبير په لټون پسې را وتلی يم، هغه ماته دغه درك راکړې و.

بګوان داس هغه ته په غور وکتل ويې پوښتل:

- ستا نوم؟

- زما نوم رام نات دی.

بګوان داس وويل: رنبير اوس دلته نشته امکان لری تر لږ ځنډه راورسيږي، خو دا حتمی نه ده.

هغه به اوس چيرته وي، زه سمدستی له هغه سره ليدل غواړم.

بګوان داس په عربی ژبه خپل ملګري ته څه وويل او هغه جګ شو ودريد، بيا يې رام نات ته وکتل ويې ويل: ته له ده سره ولاړ شه.

رام نات له هغه سرې سره روان شو، ترڅه ځنډه چوپ روان وو، بالآخره رام نات له خپل لاربښودنه وپوښتل:



رنبير چيرته تللی دی؟

هغه ځواب ورکړ: هغه به ته په بندر کې ووینې، رام نات په نوره لاره هېڅ ونه ویل.

بندر د سومنات دښار یوله ګڼې ګوڼې ډك ګوټ و. په لویو لویو دوکانونو کې د لرې لرې هیوادونو شیان خرڅېدل، دسمندر په څنډو تر لرې لرې ځایونو د سوداګرو او کب نیوونکیو کښتۍ ولاړې وې، له ساحل لږ وړاندې په ژورو اوبو کې پنځه لویې کښتۍ ولاړې وې، وړوکې کېښتۍ په کومه لویه کېښتۍ کې دمال بارولو او له کومې دخالي کولو په چارو سرګردانه وې، له دې لویو کېښتیو وړاندې تر لرې ځایونو پورې دنورو لویو کېښتیو بادبانونه هم ښکارېدل.

رام نات دخلکو دګڼې ګوڼې په منځ کې یوې اوبلې خواته کتل، خو دده ملګرې ورته وویل:

هغه ته دلته نشې لیدای، له ماسره راځه!

رام نات بیا په هغه پسې روان شو، د سمندر په غاړه لږ وړاندې ولاړل. دهغه ملګرې د یوې کېښتۍ ترخنګ ودرېد او په عربي یې ماڼوګانو ته څه وویل او بیا په کښتۍ کې سپاره شول.

لږ ځنډ وروسته کښتۍ په ژورو اوبو کې دیوې لویې کېښتۍ په لور روانه شوه، چې هلته نژدې ورغلل. دوړوکې کېښتۍ ماڼوګانو د لویې کېښتۍ کسانو ته په عربي څه وویل، یو تن له دوی سره له خو خبرو وروسته ورك شو او چې بېرته راښکاره شو، رنبیر هم ورسره و. د رنبیر په اشاره وړوکې کېښتۍ ته د پړې زینې ورواچول شوې، د رام نات ملګرې وویل:

پاس ورشه، موږ دلته درته انتظار کوو.

رام نات په زینو پاس وخوت او چې د کېښتۍ پر تله یې پښه کښوده وې ویل:

زه له سهار راسې ستا لټون کوم.

رنبیر پوښتنه وکړه: خیرت خو دی؟

رام نات د ځواب پر ځای یوې او بلې خواته وکتل بیایې پام یوه دښکلیو جامو خاوند ته ورواوښت چې د کېښتۍ له دوهمې څوکې یې ګرندی ګامونه اخستل او ددوی پرخوا ور روان و، د بدن په نسبت یې مخ لږ نری و. پراخه

تندي ، ښايسته ښې او ځليدونکو سترګو يې د هوښيارۍ او زړورتيا ګواهي ويله. دهغه په انداز کې بې دريغه پرځان اعتماد ځليده. ماڼوګانو چې هغه وليد ، يوې او بلې خواته شول.

د رنبير چې ورپام شو ورته ويې ويل: دا زما دوست رام نات دی، ما يې مخکې تاته يادونه کړې وه، هغه موسکی شو، رام نات ته يې لاس وروغځاوه او وې ويل: زما نوم سلمان دی.

رنبير وويل: دې ددې کيښتۍ کپتان دی، د سترې مشي په وخت کې د رام نات ګوتی د هغه په اوسپنيزو لاسونو کې کيوتې.

رنبير چې رام نات زړه نا زړه وليد ويې ويل: ته دلته بې غمه خبرې کولی شې

سلمان ماڼوګانو ته په لاس اشاره وکړه او د سترګو په رپ کې هغوی يوه او بله خوا ولاړل، رام نات وويل: زه تاته ددې خبر درکولو لپاره راغلې يم چې جي کرشن راغلی دی.

رنبير په خپل زړه کې د ناخوښی درزا احساس کړه ويې ويل: هغه چيرته دی؟

په هماغه ماڼۍ کې دخپلې لور سره دی.

رنبير وويل: نو هغه به زما په باب خبر شوی وي؟ نه زما باور دی چې نرملا به هغه ته ستا په باب څه ونه وايي.

ولې؟

ما له هغې سره ليدلي دي، هغه د شپې زما کوټې ته راغلې وه او په ژړا يې له مانه وغوښتل چې تاته ددې وروستۍ پيغام راورسوم، هغه به سبا د خپل پلار سره روانه شي، خو له تلو وړاندې هغه غواړي تاته څه ووايي

- نو هغه تر اوسه پردې ګومان ده چې اوښکې به يې د پلار ګناه ومينځلی شي؟

- زه دا خامخا وايم چې هغه ستا لپاره د هر څه قربانولو ته چمتو ده.

د رنبير اراده يو ځل بيا ګډه وډه شوه. خو بيا يې هم د راسنباليدو هڅه وکړه ويې ويل

دا زما د وس خبره نه ده رام ناته! زه دا هیڅکله نشم هیرولی چې دا د جي کرشن لور ده او زه د موهن چند زوی او د شکنتلا ورور یم.

زه دخپلې کورنۍ غیرت د یوې نجلۍ تر اوښکو نشم جارولی.زه به هلته ولاړ شم. خو له جي کرشن سره دلیدو لپاره او دا به زما له هغه سره وروستۍ لیدنه وي.

رام نات وویل: خو زه تا نه پریږدم چې د جي کرشن مخې ته ورشې.

رنبیر د رام نات خبرې ته پام ونه کړ اوسلمان ته یې وویل: زه د شپې په مهال د سمندر له لارې غواړم درمسال ته ننوزم. ځکه چې د کلا دروازه به بنده وي او دبهر راوتلو لپاره هم باید زه همدغه لاره غوره کړم. زه ستاسو مرستې ته اړتیا لرم.

سلمان د رنبیر په اوږه لاس کیښود وې ویل:

که زه انکار وکړم. نو بیا!

- نو زه به بیا همدا اوس له رام نات سره هلته ولاړ شم .له جي کرشن سره حساب پاکول زما د ژوند تر ټولو لوی هدف دی.

- خو که ته له هغه نه انتقام واخلې هم له هغه ځایه دې روغ راوتل امکان نه لري

-زه ددې خبرې پروا نه لرم.

سلمان په موسکا وویل: ته ډیر لوی خطر ته ځان ورکوې. خو زه درسره ملګری یم.

رام نات رنبیر ته وویل: زه به هم له تاسره ولاړ شم.

ته همدا اوس ولاړ شه. زه به له لمر لویدو لږ وروسته درشم. زما لپاره تر ټولو غوره وخت هغه دی چې د درمسال خلك په عبادت او نمانځنه بوخت وي . ته د ماښې په دروازه کې زما انتظار کوه او نرملا ته زما په باب دڅه ویلو اړتیا نشته.

رام نات وویل: زه به ترماښامه له ماښې څخه بهر ستاسو انتظار وم.له هغه ځایه درخصتیدو په وخت کې چې کله رام نات سلمان ته د خدای پاماني لپاره بیا لاس ورغځاوه. نو هغه ورته وویل:

موږ به بیا سره وګورو. ما ستا کیسه ستا ددوست له خولې اوریدلې ده.

ته باید نا امیده نشې.

رام نات له امیده په ډك نظر هغه ته کتل. سلمان ترلږ ځنډه چوپ او بیا یې وویل:

که ته په کومه طریقه هغه نجلۍ له درمسال څخه راوباسې، نو دغه کیښتۍ په ستا دپناه ځای وي.

رام نات دخپل زړه په درزا د راقابو کیدو هڅه کوله وې ویل:

تاسو تر څه وخته دلته یاست؟

-تر هغو پورې چې زما تمه وی چې ستا سره مرسته کولی شو. ناڅاپه د رام نات په زړه کې یوه بله خبره وروګرځیدله او دسترګو په وړاندې یې د مایوسۍ تیارې خپرې شوې. هغه وویل: زما باور نه راځي چې هغه به په خپله خوښه درمسال پریږدي.

سلمان وویل: کله چې هغه د درمسال دیوي شي. نو په خیالونو کې به یې ډیر لوی بدلون راشي، په هغه شپه به هغه ستا څخه په چیغو چیغو مرسته وغواړي.

د رام نات پینبه ایساره غوندې شوه. له هیلې څخه په ډکه لهجه یې وویل:

ما دغسې خبرې پخوا هم اوریدلی دي. خو زما باور نه کیده. ته مې چې ولیدې داسې احساسوم چې ته دروغ نشې ویلی. د بګوان لپاره راته ووایه چې له هغې سره څه ډول سلوك کیدونکی دی؟

هماغه سلوك چې په تیرو پیړیو کې له بې شمیره نجونو سره شوی دی. تر اوسه پورې یوه ښځه په ما لا پار کې د نومورکی ژوند تیروي، څلور کاله وړاندې هغه په همدې درمسال کې دیوی وه، بیا چې د درمسال د مذهبی مشر زړه ترې موړ شو، نو د لوی دیوتا په لور یې د استولو په پلمه په سمندر کې وغورځوله.

رام نات سرتر پایه عُذر عُذر شو وې ویل:

زما باور دی چې د روپ وتی پای به دغسې نه وي، بګوان تاسو د هغې د مرستې لپاره راواستولی

-زه خدای(ج) ته دعا کوم چې له تاسره د مرستې توفیق راکړي.

.....

شپه ډیره تیره شوې وه، جی کرشن د نرملا په کوټه کې ناست و، له هغې سره یې خبرې کولې، د نرملا پام بل ځای و، هغه د رنبیر د پوښتنې لپاره له سهاره تر اوسه څو ځلې لاندې پورته درام نات کوټې ته ورغلې وه. خو هغه هلته نه و.

اوس دې یو ځل بیا غوښتل خپل قسمت وازمویي، خو جې کرشن د رګونات کیسه رااخیستې وه او خبرې یې نه خلاصیدې، نرملا فکر وکړ چې تر اوسه پورې د رام نات د نه راتګ سبب ښایي داوي چې رنبیر به یې نه وي لیدلی، یا به یې ډیر ناوخته لیدلی وي، هغه به د شپې چې د کلا دروازه بنده وي، بیرته به ستون شوی وي، اوس به هغه سهار د دروازې له خلاصیدو سره دلته راورسیږي.

خو جوخت ورسره دا خیال هم راغی چې سهار ښایي هغه ناوخته راورسیږي او دا به له خپل پلار سره دهغه له لیدو پرته روانه شي.

له دې خیال سره یې د سفر د ځنډولو د پلمو لټون پیل کړ. خو د یوه پریکنده اقدام لپاره دې ته دا ضروري وه چې خامخا له رنبیر سره وګوري.

که دې د رنبیر په زړه کې لږ ځای وموند هم دهر لوی توپان سره مقابلې ته چمتو کیدای شي. خو له رنبیر څخه د مایوسۍ نه وروسته دې ته دخوښۍ او غم دواړه لفظونه بې معنې وو. رنبیر ددې وروستۍ تکیه وه. او ددې تکیې له غورځیدو سره ددې د راتلونکې ټولې هیلې اوارزوګانې پای ته رسیدلې.

لږ ځنډ وروسته نرملا سترګې پټې کړې اوارګمی یې ویوست وې ویل:

پلار جانه!

زما بدن ټوک ټوک دی.

جی کرشن په پریشانۍ ورته وویل: آه! تاته خوب درځي! ماپه خبرو خبرو کې دې ته پام نشو چې ته تیره شپه ډیره لږ ویده شوې او سبا ته خو باید وختي راپاڅو، ښه زه درنه ځم.

نرملا له ده سره یو ځای جګه شوه وې ویل: راځه زه ستا تر کوټې درسره ځم.

نه نه لورې! ته څمله، دا یې وویل او جې کرشن دبرنډې په لاره خپلې کوټې ته ولاړ.

Bawar.net

نرملا د خپلې کوټې چراغ ګُل کړ او په خپلو چوپ بهر ته ووتله. د زينو په لوری ولاړه پر زينو يې چې پل ايښودو څوګامه لاندې يې يو پهره دار وليد چې مشال يې په لاس کې ؤ او له رام نات سره يې خبرې کولې. نرملا له رام نات څخه د رنبير په اړه پوښتنې ته ناکراره وه، خو د پهره دار په مخکې هغې د وړاندې تلو جرئت ونه کړ، تر څه ځنډه په برنډه کې ولاړه وه او بيا چې پهره دار پر خپل ځای کلك ولاړ ؤ دا بيرته خپلې کوټې ته راغله او د پهره دار د تلو انتظار يې وکړ.

جي کرشن چې خپلې کوټې ته ننوت، دروازه يې بنده کړه، پګړۍ يې له سره را واخستله او په يوه ميخ يې راوځړوله او پر خپله بستره کيناست، د چوترې لورې له خلاصې کړکۍ څخه د سمندر دشمال په زړه پورې څپې راتلې، جي کرشن ترلږ ځنډه بې حرکته په چپرکټ ناست ؤ، بيا جګ شو د کړکۍ په لورروغی ، د هغه ښې او کيڼ لوري ته له څو کوټو څخه پرته د ټولو کوټو چوترې ديوه دالان په واسطه يو له بل سره نښتې وې. جي کرشن د تازه هوا څخه څو ځلې ساه واخسته او بيرته راګرځيده چې د نرملا د کوټې د چوترې په مخه کې يې څه شی د حرکت په حالت کې وليدل.

جي کرشن وپوښتل: څوك يې؟

څوك تيز وړاندې راغلل او وې ويل: پهره دار يم.

جي کرشن وويل: پهره دار دغه مهال بايد پر زينو پام وکړي، ته دلته څه کوې، ته د ير ... جي کرشن خپله خبره پوره نکړای شوه پهره دار وړاندې ورغی او خنجر يې دده پر سينه ورکيښود او ويې ويل: چوپ شه!

جي کرشن له ويرې په لړزه شو، يو ګام شاته شو، خو هغه نا پيژندوی تر مټ ونيو ، کوټې ته يې ورټيل واهه.

جي کرشن په ويريدلی لهجه وپوښتل: ته څوك يې؟

- تا زه ونه پيژندم! رنبير يم د موهن چند زوی او د شکنتلا ورور.

رنبير دا وويل او هغه يې په پر خپله بستره وروغورځاوه.

جي کرشن هك پك شو او هغه ته يې کتل.

رنبير وويل: که غواړې ژوندی پاتې شې، زما خواب راکړه ووايه شکنتلا چيرته ده؟

جي کرشن په لړزیدونکي غږ وویل: ماته معلومه نه ده.
-ته دروغ وایې.
-زه په بګوان سوګند خورم، په لوی دیوتا سوګند خورم. پر ما اعتبار وکړه، ما وبخښه.
رنبیر خنجر دهغه پر تټر ورکېښود او وې ویل:
زه د وروستي ځل لپاره فرصت درکوم.
نه نه پر ما ورحمیږه، ستا له خور نه زه هیڅ خبر نه یم. ستا دکلي خلك به پردې شاهدي ووایی چې ما هغه ډیره وپلټله. ما دهغې ددرك معلومولو لپاره انعام ټاکلی ؤ او زما له لور سره ستا له سلوك نه وروسته زما د ژوند تر ټولو لویه هیله او غوښتنه داوه چې که هغه چیرته پیدا کړم زه پخپله ورسره درشم او تا ته یې درولم. ستا پر پښو خپل سر کیږدم او بخښنې درنه وغواړم.
او ته ګومان کوې چې په دې ډول به زه تا معاف کړم. تا چې لاس دې زما د پلار په وینو سره دي؟
نرملا په خپله کوټه کې دهغه خبرې واوریدې او د چوترې له لارې په منډه د جي کرشن کوټې ته ورغله . رنبیر چې هغه ولیده یو ګام شاته شو دا د رنبیر په مخ کې ودریده او په خپ غږ یې وویل:
دا ستا د برې ورځ ده. ته ولې ودریدې. لاس دې ولې ریږدي. زه رحم نه درنه غواړم.
جي کرشن ناڅاپه جګ شو او د رنبیر په پښو کې ولوید . په ژړا یې وویل: پر ما رحم وکړه معاف مې کړه، ما دخپلو کړو سزا وګالله.
رنبیر نرملا ته وکتل او ویې ویل: ته ماته بې همته ویلی شې ، زما په کمزورۍ ملنډې وهلی شې.
د نرملا په سترګو کې اوښکی وځلیدې ، رنبیر شاته د تلو هڅه وکړه، خو جی کرشن یې پښې کلکې نیولې وې. رنبیر ورټیټ شو. لاسونه یې شاته ځنډ وهل، بیا یې دوهمه پښه دهغه له منګولو خلاصه کړه او د دروازې په لوري ولاړ.
نرملا خپل پلار تر مټو ونیو او دراپورته کولو هڅه یې وکړه. خو هغه په ګونډو شو او لاسونه یې جوړه ونیول.

رنبیر دروازه خلاصه کړه او بهر نه ووت، نرملا جی کرشن ترمټ ونیو، جګ یې کړ اوپر بستره یې څملاوه، هغه په خولو کې دوب وُ ، نرملا څو شیبې دروازې ته کتل، په وار وار یې په زړه کې ورګرځیدل چې ورشي رنبیر تر لمن ونیسي، خو دشرم او پښیمانۍ له زغم وتلي احساس به یې په پښو کې زنځیرونه واچول.

بیا یې خپل پلار ته وکتل. خو جي کرشن له دې سره د سترګې په سترګو کولو همت نه درلود. ورو ورو د هغې کرکه او حقارت په رحم بدلیده، په ژړه غونې غږ یې وویل: پلار جانه!

جی کرشن سرپورته کړ او بې له دې چې څه ووایی غېږ یې خلاصه کړه، نرملا په سلګیو شوه دهغه په سینه یې سر ورکیښود ویې ویل:

پلار جانه! ژمنه وکړه چې ته به په هغه پسې دورتلو هڅه نه کوي.

هغه په غریو نیولی غږ وویل:

په دنیا اوس زما هیڅ دښمن نشته لوري!

زه اوس یوازې ستا لپاره د ځان ژوند غواړم. نرملا په زوره وژړل، پلار جانه زما اراده وه چې سهار به نه درسره ځم. خو اوس تا نه اندیښمن کوم. مورِ به سهار وختي ځو.

جی کرشن په مینه د هغې پر سر لاس راتیراوه . ناڅاپه یې په زړه کې څه وروګرځیدل او په مړو رګونو کې یې وینه وچلیده ویې ویل:

زه حیران یم چې رنبیر دلته څه ډول راغی. هغه ته دا څنګه معلومه شوه چې زه دلته یم، زما په ګومان چې زه کله ستا په کوټه کې وم، هغه به په بهر دالان کې غلی و، او زموږ خبرې یې اوریدلې اوس د کلا دروازې تړلې دي، زما باور نه راځي چې تر سهار مخکې به هغه له کلا ووزی ،نرملا ناڅاپه پاڅیده او وارخطا شوه وې ویل:

نه نه پلار جانه! ته داسې فکر مه کوه. که اوس ستا په زړه کې دهغه په باب بدخیال راپیدا شو، نو ما به دتل لپاره بایلې. جی کرشن نرملا تر لاس ونیوه او نژدې یې ځانته کینوله . ویې ویل:

لوري! ته داده اوسه . اوس ماته په هغه پسې د ورتلو خیال هم نشي راتلای، خو دهغه د سومنات په شاوخوا کې اوسیدل له خطره خالی نه دي. د

مسلمانانو د جاسوسو په حیث هغه دغه درمسال ته زیات خطرناك کیدای شي.

پلار جانه! هغه یوازې د خپلې خور په لټون پسې دلته راغلی دی. زما باور دی چې ته به یې دلته ونه ګوري، خو زه په بګوان سوګند کوم چې که تا د هغه د نیولو هڅه وکړه، نو زه به ددې مانۍ له بام نه ځان وغورځوم. نور هغه دتل لپاره هیر کړه.

جی کرشن له لږ فکر وروسته وپوښتل:

تاته معلومه وه چې هغه دلته دی؟

نرملا ځواب ورکړ: هوکی! هغه چې راغی ما ولید او ورته ومې ویل چې خور دې دلته نشته.

- مګر تا زه ولې خبر نه کړم؟

پلار جانه! زما باور وُ چې هغه که موقع ومومی هم پر تا به لاس پورته نکړي.

خو که ستا وس ورسیږی هغه به ژوندی پرې نږدې.

جی کرشن چوپ شو.

کله چې رنبیر له کوټې څخه بهر ووت، رام نات دروازې ته نږدې دده انتظار کاوه، هغه په ګړندیو ګامونو د زینو په لور ولاړ، لږ ځنډ وروسته هغوی له محل څخه راووتل او رام نات وویل چې زما باور وُ چې ته به د نرملا په پلار لاس اوچت نه کړې.

رنبیر وویل: اوس به د کیښتۍ خاوندان زما انتظار کوي، زه تر څو ورځو پورې تاته نه شم راتلای، د جي کرشن غوندې خلکو دنیت په بدلیدو کې وخت نه لګیږي، که تاته زما ضرورت شو، نو ځای مې هماغه دی.



# د درمسال دیوي

روپ وتي دنځا له تمرین وروسته د خپلې کوټې خواته روانه وه. زړه یې له خوښیو په ټوپونو و، نن مذهبي مشر او د درمسال وتلیو پالونکیو ددې رقص لیدلی و. دا رواج و چې کله به د نځا محفل پای ته رسیده، نو کامنی دیوی به دلږ وخت لپاره خپل کمال ښود. خو نن چې کله د کامنی وار راغی هغه نه وه او مذهبي مشر د هغې پر ځای روپ وتي ته اجازه ورکړه.

دنځا په پای کې چې کله مذهبي مشر او نور د درمسال پالونکی له هغه ځایه ولاړل د روپ وتی استاذ ورته وویل:

نن پیشوا له تانه ډیر خوښ و زما باور دی چې له کامني ښځه وروسته هغه دا پریکړه کړې ده چې د درمسال دیوې به ته وې.

له هغې وروسته نورو نځاګرو نجونو روپ وتی را ایساره کړه او مبارکي یې ورکوله. له خپلو سهیلو ښځه دځان خلاصولو په خاطر روپ وتی په یوه فاتحانه انداز ترې ووتله. خو ددې موسکا ګانې له اندیښنې خالی نه وې.

کله به یې کامنی ور په یاد شوه او دا په دې خبره خپه وه چې یوه ورځ به د تل لپاره د هغې له سترګو پناه شي، کله به یې رام نات سترګو ته ودرید او پرخپل زړه به یې له زغم ښځه اوچت بار احساس کړ.

له خپلې کوټې ښځه لږ لرې دا حیرانه ودریده، رام نات دیوه مذهبي پنډت په جامو کې ولاړ و. دا یوه شیبه ودریده، بیا په بیړه وړاندې تیره شوه، خو څو ګامه چې ولاړه دایې احساس کړه چې هغه ورپسې دي، دا ساه نیولې او په لړزاندو ګامونو خپلې کوټې ته ننوته. خو پخوا له دې چې د کوټې دروازه بنده کړي، رام نات دننه پل ایښی و.

روپ وتي په شا ولاړه او له عذر ښځه په ډکه لهجه یې وویل د بګوان لپاره

له دې ځايه درومه، رام نات دروازه بنده کړه ويې ويل:
ماله ژونده لاس مينځلی دي، که دې زړه غواړي پهره داران راوغواړه.
- ته څه غواړې؟
هغې په ويريدونکی غږ وويل:
له خپل زړه دې وپوښته. رام نات دا وويل او وره ته يې زنځير واچاوه.
- رام ناته پام وکړه، له اور سره لوبې کوې.
- دا لوبه تا راښودلې ده روپا، ويريږه مه زه يوه ضروري خبره درته کوم. د بګوان په روی له دې ځايه ولاړ شه!
- نه زه دخپلې خبرې له پای ته رسولو نه مخکې نه ځم.
ستاسو هرې خبرې ته ځواب ويلی دی.
- نه ډيرې داسې خبرې دی چې ته يې ځواب نشی راکولی، ته ماته ددې پوښتنی ځواب نشې راکولي. چې د درمسال ديويانې په ژوند د لوی ديوتا تر درشله څه ډول رسيږي؟
- په داسې خبرو چورت وهل ګناه ده.
- نه. دا ويل ګناه نه ده چې ديوی د لوی ديوتا د دربار پر ځای د سړي خورو کبانو ګيډو ته ځي.
دغه ويل هم ګناه نه ده چې هغوی د لوی مذهبی مشر د ګناهونو د چټليو بار پر خپل سر اخلی او له درمسال څخه بهر ته وزي. دا هم ګناه نه ده چې په درمسال کې ته د کامنې ځای ونيسې د ژوند هره شيبه به دې تر مرګ زياته ويروونکی وي.
-داسې خبرې مه کوه، رام ناته له بګوان څخه وويريږه.
رام نات غوښتل چې څه ووايي چې له بهر څخه چا دروازه وټکوله او روپ وتی ته يې غږ وکړ، روپ وتي د وارخطايی په حال کې رام نات تر لاس ونيو او په ويريدلې لهجه يې وويل:
دبګوان په خاطر د پالنګ لاندې غلی شه. بنايی دا کامنې وي د درمسال ديوي.
له بهر څخه بيا غږ راغی، روپ وتي. روپ وتی دروازه خلاصه کړه!
- دادې خلاصوم يې.

رام نات تر پالنګ لاندې غلی شو او روپ وتی دروازه خلاصه کړه، کامنی دننه ورغله، د پالنګ پرڅنډه کیناستله وې ویل:
داسې راته ښکاریده لکه له چا سره چې خبرې کوې.
روپ وتی په بنده بنده ژبه ورته وویل: زه ، زه کله کله له ځانه سره ګړیږم، بیا یې زیاته کړه: ته نن نخا ته نه وې راغلې، زما اراده وه چې احوال دې واخلم.
کامنې په غمجنه لهجه وویل: نن شپه به زه دتل لپاره درنه رخصت شم، زه تاته له یوې هیلې او عذر سره راغلې یم. دروازه بنده کړه.
روپ وتې دروازه بنده کړه، کامنې له لږ ځنډ وروسته وویل: زما مور په کنټ کوټ کې اوسیږي. هغه به هرې درې میاشتې وروسته زما لیدو ته راتله اوس به راتلونکې میاشت زما دلیدو لپاره راځي زه غواړم چې زه نه وم، هغه داسې احساس نه کړی چې دلته دهغې څوك نشته.
- ستا د مور خدمت زما فرض دي. خو تاته څه معلومه ده چې ته به نن له دې ځایه روانیږې، آیا مذهبی مشر تاته هغه راز ویلی دی چې تر اوسه پورې چاته معلوم نه دی؟
مذهبی پیشوا ته د ویلو ضرورت نشته، ماته دغه راز ډیرې ورځې پخوا معلوم شوی و، نن چې هغه زه د نخا څخه ایساره کړم، نو باور مې شو چې دلته زما ورځې پوره شوی دي.
څو ورځې وړاندې؟ هغه څه ډول د بګوان لپاره ماته ووایه.
کامنی جګه شوه ویې ویل:
داسې پوښتنې مه کوه، زه تاته هیڅ نشم ویلې، کامنی له کوټې ووتله او روپ وتې بیرته دروازه بنده کړه، رام نات د پالنګ له لاندې څخه راووت او ویې ویل: زه نوره تانه پریشانه کوم، که کله کوم سخت حالت درباندې راغی، نو په یاد ولره چې زه به دځپل سر په بیه ستا د ژغورنې هڅه وکړم.
- اوس ماته تر ټولو لوی خطر ته یې ، د بګوان لپاره ولاړ شه، که نه زه له دې کوټې څخه ځم.
رام نات وویل: دواړه به ډیر زر بیا سره وینو ،دایې وویل او بیا له کوټې ووت، روپ وتې په زنګنو کیناستله او په ډیره عاجزۍ یې دعا پیل کړه

بګوانه! رام نات وبخښه، هغه نه پوهیږی چې څه کوی ، بیا یې په غوږو کې یوه زړه وړونکې نغمه وکړنګیدله، او په سترګو کې یې اوښکې راوخوټیدې.

د روپ وتي له کوټې څخه چې رام نات راووت، د خپل هستوګنځی په لور روان شو، د نڅا اوموسیقی له استادانو پرته عام درمسال پالونکی د درمسال دې برخې ته لږ راتلل، رام نات ته دا خطر وو چې که څوك تړې وپوښتی چې دلته څه کوې او څوك یې؟ نو زه به څه ځواب ورکوم، یو ځل یې دغه خطر احساس هم کړ، خو دغه وخت دده د زړه حالت بل ډول و، دې د روپ وتي د ترلاسه کولو لپاره تر ټولو له لوی خطر سره ټکر ته تیار و، خو اوس یې په زړه کې یوه نوي امید ځپې وهلې، دده تر ټولو لویه هیله داوه چې زه په یو ډول رنبیر او سلمان له ټولې وضعې څخه خبر کړم. د نجونو له استوګنځی څخه تر راوتلو وروسته هغه ته په لاره کې پنډتان او پالونکی په مخه ورغل ، خو دی یی چې د یوه پنډت په جامه کې لیده، هیچا ورته پام ونه کړ.

لږ ځنډ وروروسته رام نات په خپله کوټه کې و، هغه په بیړه خپلې جامې بدلې کړې، د بت پالونکیو جامې یې غوټه کړې او په بغل کې یې غلې کړې. له کوټې را ووت، چې زینې ته راوررسید، غوټه یې یوې تشې کوټې ته وروغورځوله او لاندې ښکته شو.

له ماښې څخه چې ووت هغه د کلا د پوځ د لښکرو د مشر دفتر ته ورغی، د لښکرو مشر په رام نات ډیر مهربانه و، هغه چې خبرشو د ملاقات لپاره یې وروغوښت رام نات هغه ته وویل: واکمنه! زه له یوې غوښتنې سره راغلې یم.

- د څه شی غوښتنه؟

بادارە! غوارم انهل واړه ته ولاړ شم.

بیرته به کله راستنیږې؟

دلته له راتلو نه مخکې لوی راجه ماته ځمکه رابخښلې وه.

نو ددې مطلب دادی چې ته نور زموږ په پوځ کې پاتې کیدل نه غواړې؟

- بادارە! کله چې راته ضرورت شو پخپله به راځم.

-د لښکر مشر وویل: ته یو ښه سرتیری یې او زه به دې پر تلو خپه یم. خو زه دا هم نه غوارم چې د انهل واړه راجه ته په ورتګ ستا څه ګټې دی ، له هغو

نه محروم پاتې شي.

رام نات وويل: زه د ځمکې په تمه نه يم، زه داسې احساسوم چې که کومه ورځ محمود سومنات ته مخه کړه، نو انهل واړه به زموږ تر ټولو لوی سنګر وي، زه غواړم چې هلته ولاړ شم او د قوم ځوانان راپاڅوم.

د لښکر مشر جګ شو او دمخه ښې لپاره يې لاس وروغځاوه ويې ويل: زه په خوښۍ تاته د تلو اجازه درکوم.

لږ ځنډ وروسته رام نات پر آس سپور له کلا څخه ووت، خو د انهل واړه پرځای دهغه مخه د بګوان داس هستوګنځی ؤ.

.....

د راتلونکې شپې پر، وروستۍ برخه کې د ناقوس او زنګونو غږونو دا اعلان کاوه چې د درمسال ديوی د لوی ديوتا درشل ته رسيدلې ده.

روپ وتي د شپې په دريمه برخه کې د ناقوس او زنګونو په شور کې راويښه شوه او تر ډيره پورې بې حسه او چوپه پرخپله بستره غځيدلې وه. د شپې مهال يې په کوټه کې ساه بنديده، ځکه يې د خپلې کوټې دروازه او کړکۍ پرانستې پريښې وې.

د درمسال له مختلفو برخو څخه د ناقوس او زنګونو له غږونو نه پرته د پالونکيو د راګونو غږونه هم راتلل. د بت پالونکيو يوې ډلې راګونه ږغول او ددې کوټې ته نژدې ورغلل. بيا دې وليدل چې د کړکۍ او دروازې مخې ته زيات پالونکي شالونه په لاس کې ولاړ دي، را جګه شوه او کيناستله او زړه يې په درزا شو.

يو پنډت مشال په لاس کې ددې کوټې ته ورننوت له هغه وروسته دوه نور هم ورننوتل، دا دهغوی په درناوی ودريده، يوه پالونکی د ګنګا اوبه پرې وشيندلې، دوهم يې د ګلانو اميل په غاړه کې وروا چاوه، دريم په کوټه کې عطر وشيندل. او د کوټې فضا خوش بويه شوه، بيا هغوی "لوی ديوتا دې ژوندی وي" چيغې وکړې او په شا ولاړل. له هغو وروسته دوې عمر خوړلې ښځې راغلې روپ وتي يې تر مټ ونيوله او بهر تـه يې بوتله. په لاره کې پنډتان کتار لاس په نامه دريدلې وو، کله چې دا له انګړ څخه تيريدله. هغوی به خم شول او ددې پښې به يې ښکلولې. د روپ وتي دماغ په اووم اسمان کې

وي، دې خپله ماضي هېره کړې وه او د راتلونکې څخه بې پروا وه. ددې په مخ
يوازې حال و.
دخوښۍ د کړسنده خنداګانو او د سرور له نغمو څخه ډکه دکلي ساده او
ناخبره نجلۍ نه وه، چې ديوه معمولي ځوان د مينې سندرې يې ويلې، بلکې
هغه يوه ملکه وه د لوی ديوتاله خدمتګارې سره يې د خپل حيثيت پوره
احساس و.
له انګړ څخه چې تېره شوه، د يوې پراخې زينې په لاره پاسنی پوړ ته ولاړه،
سر خلاصی چت په مرمر ډبرو پوښل شوی و، کيڼ لاس ته د برنډې شاته څو
کوټې وې چې کړکۍ يې د سمندر په لور خلاصې وې. ښۍ لوري ته يوه چوتره
وه چې ستنې يې طلايي پوښ شوی وې، خدمتګارو چې دې ته يې لاره
ورښودله، دايې يوې پراخې کوټې ته بوتله، د کوټې په زرين چت کې پر
جواهرو ښکلي شوی فانوس راځړېده، ښکلي غولۍ د پيل په غاښونو ګل
کاري شوې و. په دروازو او کړکيو د زر تارو پردې راځړېدلې. له ديوالونو
سره د ګران بيه لرګي تختې داسې لګېدلې وې چې درځونه يې نه ښکارېدل.
په لړه لړه فاصله کې قدنما هنداري لګېدلې وې. د زرينو او طلايي کرسيو په
منځ کې يو ښکلی پالنګ و چې په بخملي پوښ پوښل شوی و خدمتګارو
روپ وتي په کوټه کې يوازې پرېښوده او ترې ولاړې.
روپ وتي تر څه ځنډ په حيرانۍ دکوټې ساز او سامان ته کتل او بيا يې يو
پر بل پسې دوې نورې کوټې هم وليدې. په هغو کوټو کې زياتره صندوقونه
اود سينګار سامان و. دا بيرته راغله او پر يوه کرسۍ کېښناستله، ناڅاپه يې
احساس کړه چې په مخامخ ديوال کې يو چاك پيدا شو او ورو ورو زيات شو،
دا په وارخطايي جګه شوه، ودرېده. چاك د يوه وره په اندازه لوی و، دې د
تېښتې اراده کوله چې د چا غږ يې واورېد: مه وېرېږه.
يوه شيبه وروسته دې د درمسال لوی مذهبي مشر ليده، هغه په داده زړه
وړاندې ورغی. روپ وتي هم مخې ته ورغله او دهغه پر پښو يې لاسونه
کېښودل، بيا په ادب ودرېده او سر يې ښکته واچاوه.
- ته ووېرېدې! پيشوا يې لاس تر زنې لاندې ونيو او سر يې راپورته کړ.
د روپ وتي ټول بدن په لړزه شو او په درديدلي لهجه يې ځواب ورکړ.

باداره! ماته نه وه معلومه چې په دیوال کې کومه دروازه هم شته.

- دا زما د محل لاره ده، اوس خو به ته نه ویریږې؟

روپ وتي یو نظر پیشوا ته وکتل او یو ځل بیا یې د ویرې احساس وکړ. هغه د خپلې پوښتنې دځواب له انتظار پرته وویل: ته ډیره نیکمرغه یې، نن شپه به ته هغه تاج پر سر کړې چې آرزو یې ددې هیواد شهزادګیانې کوي.

- دا ټول ستاسو داد دی باداره.

- دا د دیوتاګانو لورینه ده.

روپ وتي په ویره ویره وویل: باداره! که ته نه خپه کیږې، نو یوه پوښتنه وکړم؟

-وپوښته!

- د درمسال دیوي دلوی دیوتا دربار ته څه ډول رسیږي؟

مذهبي مشر ځواب ورکړ: دغه پوښتنه ګناه ده.

کله چې د دیوتاګانو رضا شي، نو پخپله به په دې خبره شي.

ښایې نن په هغو خبرو وپوهیږې چې نور نه پرې پوهیږې.

نن ورځ ستا د آرام ورځ ده.

مذهبي مشر په همغه لاره بیرته ولاړ او روپ وتي بیرته پر کرسۍ کیناسته، تر ډیره پورې هغې دا احساسوله چې هغه هیبتناکې او له اسرارو ډکې سترګې دې ته ځیر دي.

د لمر ختونه لږ وروسته د درمسال مذهبي مشر د یوې نه اټکل کیدونکې اندیښنې سره مخ و. پنځه تنه پالونکي چې کامني یې په کیښتۍ کې دلوی دیوتا دربار ته ورسره بیولې وه، تراوسه لادرکه وو، ماسپښین ته نژدې مهال له درمسال څخه لږ لرې دیوه پالونکي مړی پیدا شو، چې له هغو څخه دا نتیجه واخستل شوه چې کیښتۍ ډوبه شوې ده او کامني او نور ملګري یې د سړي خورو کبانو خوراک شوي دي.

ماښام مهال عمر خوړلې نوکرانې چې د درمسال د دیوي پر خدمت ګومارل شوي وې دروپ وتي له لمبولو او دهغې پر بدن د عطرو له شیندلو وروسته هغې ته نوې جامې وراغوستې. مذهبي مشر ددیوال د لارې پر ځای د دروازې څخه کوټې ته ورغی. له هغه سره یوولس تنه نور د درمسال مشران

پالونکی وو. یوه تن د سرو زرو یو پتنوس نیولې وُ چې د درمسال د دیوی پر تاج برسیره گران بیه جواهر پکې ایښي وو. د مذهبي پیشوا په اشاره نوکرانو روپ وتي په زیور کې پټه کړه، وروسته بیا پیشوا پخپله تاج په لاسو کې راپوته کړ او د روپ وتي پر سر یې کېښود. یوه پالونکي ناقوس وغږاوه او د سترگو په رپ کې د درمسال له هرې گوښې څخه د ناقوس او زنگونو غږونه اوچت شول، پالونکیو او مذهبی مشر مذهبي سندره پیل کړه او بیرته ستانه شول، له روپ وتی سره یوازې دوې خدمتگارې پاتې شوې.

یوې نوکرې هنداري ته اشاره وکړه او ویې ویل:

ورشه وگوره ته دملکې په څیر ښکارې.

روپ وتی زړه نا زړه دهنداري په لور ورغله په هنداره کې هغې ته نن خپله څیره بدله ښکاریده، یوې نوکرې وویل: اوس ته آرام وکړه چې کله ستا وار راشي مونږ به دې بوزو.

نوکرانې له کوټې څخه بهر ته ووتې. روپ وتي کرسي راکش کړه او د هنداري په مخ کې کیناستله.

. . . . . .

د شپې په مهال د درمسال مذهبی مشر. خدمتگارې او پنډتان بې خوده غوندې وو او د درمسال د نوی دیوي د نڅا ننداره یې کوله. کله چې د اوبو د راپورته شوې څپې کوټې ته راورسیدې. نو د روپ وتی نڅا هم پای ته ورسیده. مذهبی پیشوا د "لوی دیوتا دی ژوندی وي" چیغه وکړه او په درمسال کې ناقوس او زنگونه وکړنگیدل. لږ څنډ وروسته کوټه تشه شوې وه، څپې ورو ورو د سومنات بُت په غیږه کې نیوه، د درمسال په څیر په کلا کې هم په زرگونو کسان د "لوی دیوتا دی ژوندی وي" نارې وهلې.

له رقص څخه چې وزگاره شوه روپ وتي له دوو عمر خوړلیو نوکرانو سره دخپلې هستوگنې کوټې ته ولاړه. نوکرانو دا په خپله کوټه کې پریښوده او ترې ولاړې، روپ وتی تر لږ څنډه د هنداري په مخ کې ودریده د فانوس په رڼا کې یې خپل مخ ته کتل. بیا پر کرسی کیناستله. زړه یې د خوښیو په سمندر کې غوپې وهلې. لږ څنډ وروسته یې خپل دروند تاج له سره لرې کړ او په طلایی پتنوس کې یې کېښود. بیا جگه شوه د یوې دریڅې په مخکې ودریده. د

سختې ذهني او بدني ستوماني سره سره يې خوب له سترګو الوتلې ؤ له دې سره هيڅوک نه وو او دې د چا د ملګرتيا تنده احساسوله. فکر يې وکړ چې که له پيشوا څخه هيله وکړم. نو کومه ملګرې به مې راپرېږدي چې زماسره واوسي،بيا يې په خيال کې وروګرځيدل چې له دې وړاندې کامني دلته يوازې اوسيدله ، امکان لري د درمسال د ديوي لپاره يوازې اوسيدل ضروري وي.

ناڅاپه يې د کوټې په ديوال کې کړچ کروچ واوريد او دې مخ وروا ړاوه. هماغه ديوال ته يې وکتل په ديوال کې پټه دروازه ورو ورو خلاصيدله ، ددې زړه په درزا شو.لږ ځنډ وروسته مذهبي مشر راښکاره شو. دهغه په لاس کې د تازه ګلانو اميل و. روپ وتي وړاندې ورغله او دهغه د پښو دنيولو لپاره ورټيټه شوه. مذهبي پيشوا بيله دې چې څه ووايي د هغه په غاړه کې يې د ګلانو اميل وروا چاوه. د روپ وتي په مخکې يو ځل بيا دوې هيبتناکې سترګې په نڅا شوې.

مذهبي پيشوا په پريکنده لهجه وويل:

زما سره راځه!

- چيرته ځو لو اکه؟

- نن هغه راز درته وايم چې له ما پرته هيڅوک نه پرې پوهيږي. هغه دا وويل او د پټې دروازې په لور روان شو

روپ وتي يوه شيبه ودريده او بيا په هغې پسې ورغله. له دروازې څخه وړاندې يوه زينه وه چې په قنديلونو روښانه وه. په زينه ښکته شول او په يوې تنګې لارې کې روان شول. دغه لاره د سمندر پر غاړه يوې چوترې ته رسيدلې وه.

د چوترې زينې په اوبو کې ښکته تللې وې. مذهبي پيشوا دچوترې پر څنډه ودريده ويې ويل: اوس به تر لږ ځنډه د سمندر اوبه ټيټې شي. وګوره اوبه تر اتمې پايې برې راختلې دي. ددې مطلب دادی چې په درمسال کې دمهاديو بُت اوس په اوبو کې ډوب دی. راځه ته به نور هم ډير څه وګورې.

روپ وتي لږ داده شوه او په هغه پسې روانه شوه. ددې ضمير دا پردې ملامتوله چې کله مذهبي پيشوا دې ته وويل چې په ما پسې راځه . نو دا ولې وويريده؟

تر لږې لرې ځایه د سمندر پر څنډه چې دوی ولاړل، ښی لوری ته په پراخو زینو وختل، بیا یوه سر خلاصي انګړ ته ننوتل، سپوږمۍ د وریځو نه راوتلې وه. په انګړ کې یې سپینې وړانګې خپرې وې. په بڼ کې رنګارنګ ګلان په موسکا غوړیدلي وو. په انګړ کې یو د مرمر ډبرو حوض و، او له حوض څخه لږ وړاندې روپ وتي یوه شانداره ماڼۍ لیدله، چې محل ته ننوتل، دا حیرانه شوه چې هلته کوم نوکر او یا پهره دار نه و، پردې برسیره د ماڼۍ هره ګوښه روښانه وه. په مذهبي پیشوا پسې دا په پراخو زینو وروختله او بیا یوې ډیرې شاندارې کوټې ته ننوتل. ددې کوټې سینګار او ښکلا چې دی ولیدله خپله کوټه یې په مخکې هیڅ ورته ښکاره شوه.

د کوټې په منځ کې د لوی دیوتا بُت نصب و، او دهغه پر شاوخوا د سپینو زرو څخه جوړ شوی د نڅاګرو نجونو بُتان وو.

مذهبي پیشوا د زرتارو یوه پرده پورته کړه او د څنګ یوې بلې کوټې دروازه یې خلاصه کړه او روپ وتی ته یې اشاره وکړه چې ورپسې ورشي. روپ وتی هم د ننه ورننوته، کوټه په تونده عطروخوشبویه وه. پر غولي داسې قالینې غوړیدلې وې چې روپ وتي تر اوسه پورې نه وې لیدلې، یوې خواته یو پراخ پالنګ و. مذهبي پیشوا هغه ته اشاره وکړه او ویې ویل: کینه روپ وتي!

صیب... صیب زه دا ګستاخي نشم کولی.

څه ګستاخي ته د درمسال دیوی یې او زه ستا د خدمت لپاره یم، مذهبي پیشوا دا وویل او دروازه یې بنده کړه او زنځیر یې ورواچاوه. روپ وتي ناڅاپه احساس کړه چې د دې په مخکې د درمسال لوی مذهبي پیشوا نه، بلکې یو بل انسان دی.

له سره تر پښو یې پر وجود لړزه ګډه شوه. مذهبي پیشوا ور وړاندې شو او دواړه لاسونه یې ددې په غاړه کې ورواچول او ددې مخ یې په خپلو ورغویو کې ونیو او ورپورته یې کړ وې ویل: ماته وګوره روپ وتي! زه لوی دیوتا یم.

د روپ وتي پر سترګو تیاره راغله او په دې تیاره کې دې د مذهبي پیشوا ډیرې سترګې لیدلې چې نڅیدلې. ډیرې له اسرارو ډکې.. وهمناکې چې تر لږ څنډه یې ددې وینې په رګونو کې وچې کړې.

ویریږه مه روپ وتي. مذهبی پیشوا دا وویل او لاس یې دهغې تر ملا راتاو کړ. ناڅاپه د روپ وتي په مړو زګونو کې وینه وچلیده. دې داسې احساس کړه چې چا یې پر بدن سکروټې ورکیښودې.

د درمسال د دیوی او د لوی دیوتا پر خدمتګارې برسیره دا یوه ښځه وه، د برښنا په څیر ګړندی یې دهغه لاس وځنډه او شاته شوه. مذهبي پیشوا وړاندې ورغی. خو چا په زوره دروازه ټېل وهله.

او دی وویریده. هغې لوری ته یې وکتل، روپ وتي په دواړو لاسو طلایی ګلدانی پورته کړه او وړاندې ورغله. مذهبی پیشوا یې پر سر پرې وواهه، هغه چکر وخوړ او وغورځید. له دې سره چا په زوره دروازه ټیله کړه. روپ وتی ورغله دروازه یې خلاصه کړه. ددې په مخ کې درې تنه د درمسال پنډتان ولاړ وو. روپ وتی چیغې کړې:

ما هغه وواژه. ما د درمسال نوی پشوا وواژه. هغه بدکار و.

یو پنډنور وړاندې شو او روپ وتی یې تر متو ونیوله ویې ویل:

چیغې مه وهه روپ وتي! زه رام ناث یم. او دې د نیم بیخودی په حالت کې هغه ته کتل د رام ناث دوه نور ملګري دننه ورغلل. هغوی یو زنبیر او بله کامني وه.

زنبېر چې مذهبي پیشوا ته ورنژدې شو. دهغه په نبض یې لاس کیښود ویې ویل.

دی ژوندی دی

کامني خنجر راویوست او غوښتل یې پر هغه وار وکړي، خو زنبیر یې لاس ونیو او هغه یې بهر نه لاس نیولی ورسره کش کړه.

روپ وتي په کمزورې غږ وویل: رام ناته. رام ناته! او بیا یې په غیږ کې ور وغورځیده او په سلګیو شوه.

کامني وویل: روپ وتي اوس تاته هیڅ خطر نشته. روپ وتي ته د هغې غږ اشنا ښکاره شو او په بیړه یې مخ ور واړاوه. بیا یې وویل: کامني. کامني!

ویریږه مه روپا. زه ژوندی یم.

روپ وتي یوه شیبه حیرانه ودریده. بیا یې رام ناث پریښود او له کامني

سره غاړه غړۍ شوه.

رنبیر وویل: اوس باید موږ ژر تر ژره له دې ځایه ووځو.

کامنی خواب ورکړ: اوس موږ ته خطر نشته. تر سهاره د مذهبی پیشوا محل ته څوک نه راځي.

لږ ځنډ وروسته څلور واړه دمذهبي مشرله محل څخه ووتل او د سمندر پر غاړه له چوترې څخه تیر شول او یوځای ودریدل. دځنډېږ نه لږ لرې یوه کیښتی ولاړه وه. مانوګانو چې دوی ولیدل. کیښتی یې پر زینو ولګوله او دوی پکې سپاره شول.

روپ وتي نه پوهیده چې دوی چیرته ځي. دې له رام نات څخه پوښتنه کوله چې ته هلته څرنګه راورسیدې؟ هغه په خواب وپوهوله چې دا ټول د کامنی دیوی مهربانی ده. که دی زموږ ملګرتیا نه وای کړې. نو موږ. به ته په درمسال کې هېڅکله هم نه وای موندلې. بیایې کامنی ته وکتل. هغې ورته وویل چې رام نات او دهغه ملګریو زه د سړی خوړونکیو کبانو څخه وژغورلم.

څومره چې کښتی له درمسال څخه لرې کیده د روپ وتي ویره کمیده. هغې له رام نات څخه وپوښتل: اوس موږ چیرته روان یو؟

رام نات لویدیځ لوري ته اشاره وکړه ویې ویل:

هلته لویه کیښتی موږ ته انتظار باسي. په هغې کې به سپاره شو او له دې ځایه به په میلونو لیرې چیرته یوه خوندي ځای ته ځانونه ورسوو.

خو په دې هیواد کې داسې ځای شته چې د مذهبي پیشوا خلك راپسې رانشي؟

که هغه مړ شی او ما په دې درمسال کې ونه ویني. نو وبه پوهېږی چې ما وژلی دی.

رنبیر دې ته تسلی ورکړه ویې ویل: ما ولید هغه مړ نه و. نبضونه یې چلیدل. که هغه په خود وای او زموږ څخه یې کوم څوك لیدلي وای. نو بیا به مو خامخا واژه. سهار چې کله نور درمسال پالونکی راشی او دی له خپلې کوټې راوباسي. نو دی به ستا د نامه اخستلو پر ځای کومه بله پلمه وکړی چې ولې ټپي شوی دی.

کامني وویل: زه پوهېږم چې هغه به څه وکړي. هغه به دخپلې بدنامی له

ویري یوازې هغو پالونکیو ته ستا د لټون امر وکړی چې د درمسال له هر راز څخه خبر دي. بیا به هغه دا اعلان وکړی چې ته هم زما په څیر د لوی دیوتا عبادتځای ته رسیدلې یې. بیا به ښایی په ښار او شاوخوا سیمو کې په پټه ستا لټون دوام ولري.

لږ ځنډ وروسته روپ وتی او کامني یوې له بلې سره خبرې کولې او رام نات رنبیر ته ویل:

که ته غواړې چې موږ او کامنی ستا کلي ته ولاړ شو. نو ته هم راسره ولاړ شه، دلته نور ستا هیڅ کار نشته. د سومنات په شاوخوا کې ستا اوسیدل خطرناك دي.

نه، زه دلته اوسیدل ضروری بولم. که تاته زما د مرستې ضرورت وای. نو خامخا به درسره ملگری شوی وای. سلمان به دې په کوم خوندی ځای کې پلی کړي. له هغو وروسته نیغ قنوج ته مخه وکړه. ستا له پاره زما له کور پرته نور داسې خوندی ځای نشته. زه به کور ته دتلو لپاره دهغې ورځې انتظار کوم چې د سلطان محمود پوځونه د سومنات پر برجونو د فتحې بیرغونه وریوي . زه غواړم په خپلو سترگو ددې درمسال تباهی ووینم چې تاداو یې په ظلم اینبودل شوی دي.

د ظلم دمانیو د بنیادونو له کیندلو څخه پرته نور زما په ژوند کې بل خوږوالی نشته. له شکنتلا پرته ماته کور او بیابان یو شی دی

چې دوی لویې کښتۍ ته ورنژدې شول. سلمان چې له خپلو ملگرو سره ولاړ و په زوره وویل:

تاسو ډیر ځنډ وکړ، دهغې نجلۍ درك معلوم شو.

رنبیر ځواب ورکړ: موږ هغه راسره راوستله، د هغې په راایستلو کې له کومې ستونزې سره مخ نه شوو. پر موږ هیڅوك خبر نه شول.

په دې کې وړوکې کښتۍ د لویې سره ولگیده او دوی ډیرې پر زینه هغې کښتۍ ته وروختل.

رام نات د لاس په نکیه روپ وتي پورته کشوله. د کښتۍ دری ملگران هم وختل او څلور نور همالته پاتې شول. سلمان رنبیر ته وویل

اوس د خبرو وخت نه دی. موږ باید سهار له رڼا څخه وړاندې له دې ځایه

دير لرې ولاړ شو. تا د خان په باب څه پريکړه کړې ده؟
زنبير ځواب ورکړ: زه بيرته عبدالله ته ورځم. سلمان د مخه ښې لپاره لاس ورکړ او ويې ويل: ښه د خداى پامان. ان شاءالله موږ به دير ژر يو له بل سره بيا وګورو.
زنبير د هغه لاس په لاس کې ونيو ويې ويل:
تا د درمسال د بنديانو په اړه څه پريکړه کړې ده؟
سلمان ځواب ورکړ: ته د هغه په اړه انديښنه مه کوه. هغوى به کوم داسې ځاى ته ورسوو چې د سومنات د پالونکيو لاس نه ور رسيږي.
روپ وتي په خپ غږ له کامني څخه وپوښتل:
بنديان څوک دي؟
کامني ځواب ورکړ: زه يې چې په کيښتۍ کې کېنولم او سمندر ته يې راوستم. په هغوى کې دري تنه ژوندي نيول شوي دي.
له سلمان سره تر خداى پامانى وروسته زنبير. رام نات ته لاس ورکړ. د رام نات سترګې د احسان او منني په اوښکو لمدې وې سلمان د بادبان د پرانستلو امر وکړ او زنبير د پړى پر زينو ښکته شو او په وړوکي کيښتۍ کې کيناست او کيښتۍ بيرته روانه شوه.
لږ ځند وروسته لويه بيړۍ هم روانه شوه. رام نات. روپ وتى او کامنى تر ډيره وخته له پنجرې سره ولاړ وو او وړوکى کيښتۍ ته يې کتل. بيا کامنى د خوب په پلمه ولاړه. روپ وتي يوې او بلې خواته وکتل او بيا يې رام ناته. رام ناته! وويل. له هغه سره غاړه غړى شوه او په زوره يې وژړل. رام ناته! ما وبخښه، زه نه پوهيدم چې څه کوم.
هغه وويل: روپا! تا چې څه وليدل يو ويروونکى خوب و، هغه هيرکړه، له نن وروسته به يو د بل په سترګو کې اوښکې نه وينو، موږ به يوځل بيا خپله ويجاړه شوې دنيا په نغمو او کړسندو خنداګانو ډکه کړو.
روپ وتي! نن موږ له سره ژوندي شوي يو. راځه اوس ستا خوب ته اړتيا ده. د بيړۍ کپتان ستا او کامنې لپاره خپله کوټه خالى کړې ده.
روپ وتي له هغه سره روانه شوه. څو ګامه چې ولاړل دا ناڅاپه ودريده او ويې ويل: ودريږه رام ناته! بيا يې له خپلې غاړې د جواهرو اميل راوکيښ.

له خپلو پښو او لاسونو یې تړوله کانه راوایستله او سمندر ته یې وغورځوله. د سترګو په رپ کې روپ وتي له یوې کونې پرته چې په ګوته کې یې کلکه نښتې وه، نوره تړوله کانه او جواهر سمندر ته وغورځول. رام نات له جیبه یو دسمال راویوست او له هغه نه یې هغه د غمیو هار راویوست چې د انهل واړه راجه ورکړی و، هغه یې د روپ وتي په غاړه کې ورواچاوه.

......

مذهبی پیشوا دشپې په وروستی برخه کې راپه خود شو او د جګیدو هڅه یې وکړه، خو په سر کې یې د درد څړیکې شوې او په سترګو یې بیا تیاره شوه، بیرته یې سر پر غولی کیښود. په همغه حالت کې یې سترګې وغړولې، په کوټه کې یې سترګې واړولې ناڅاپه یې دشپې پیښې دبریښنا په څیر په مغزونو کې تیرې شوې، جګ شو او په تیند کونو د دروازې په لوری ولاړ، د بې سیکی په سبب یې پښې ریږدیدلې.

دروازه یې چې له بهر څخه کلکه ولیده. خپلو نوکرانو ته یې چیغې وکړې! بیا یې ورپه یاد شول چې له سهار نه وړاندې په دې مانۍ کې کوم نوکر ته د راتلو اجازه نشته. سر یې په دواړو لاسونو وموښلو او پر بستره کیناست. دده باور و چې په درمسال کې به څوك د ده پر خلاف د روپ وتی فریاد وانه وري. که روپ وتي کلا ته ورسیده. نو بیا به ده ته د اندیښنې سبب شي. خو دی ډاډه و چې پهره داران به هغې ته له درمسال څخه دبهر پل ایښودو اجازه ورنکړي. ناڅاپه یې په یاد شول چې پر سر د ګوزار خوړلو نه وړاندې چا دروازه ټکوله. مګر هغه څوك کیدای شو؟ ښایی دا زما ګومان وي، هغه تر ډیره دهمدې خبرو سوچ کاوه او چوپ ناست و. بالآخره پر بستره وغځېد، خو په سترګو کې یې خوب و. له لمر ختو نه وروسته یوه نوکره ده ته د ناشتې د پوښتنې لپاره راغله، له بهر څخه یې دروازه زنځیر ولیده، نو کوم نوکر ته یې غږ وکړ، مذهبی مشر ورجګ شو د ننه لخوا یې دروازه وټکوله. نوکرې دروازه خلاصه کړه، دی بهر ته ووت او بیله دې چې هغې ته څه ووایی ګړندی د روپ وتي د هستوګنې دځای په لور روان شو، د روپ وتی د کوټې په مخ کې د هغې خدمتګارې ښځې حیرانې او په اندیښنه کې ناستې وې، مذهبی پیشوا ورنه وویل: روپ وتي چیرته ده؟

یوې ښځې خواب ورکړ: هغه دلته نشته. باداره موږ يې له سهار راسې لټوو.

پیشوا بیله دې چې څه ووايي بيرته راوګرځید. نژدې یو ساعت وروسته د درمسال پر راز خبرو پالونکيو پټ پټ، د روپ وتې لټون پیل کړ.

سبا سهار ته خلکو دغه زیری اوریده چې د درمسال نویې دیوي هم د لوی دیوتا عبادتځای ته رسیدلې ده. دا یوه غیر معمولي پیښه وه، خو خلکو دا د روپ وتي کمال باله او هرځای ددې د حُسن او جمال او روحاني برترۍ خبرې او ستاینې وې، خو د مذهبي مشر په وړاندې دغه پیښه د یوه ویروونکي انقلاب پیلامه وه. د هغه د سربندویانو یوه ډله اوس هم د روپ وتي په لټه کې وه.

.....

رنبیر چې روپ وتي له کامنی او رام نات سره د سلمان کیښتۍ ته ورسول او له لمر ختو سره عبدالله ته راورسید. تو له شپه په منډو ستومانه ؤ او اوس یې بدن ستوماني ځپلې و. هغه عبدالله ته د درمسال د پیښې له کیسې وروسته ډوډۍ وخوړه او بیا د جونګړې په یوه کونج کې پریوت چې لږ څنډ وروسته په درانه خوب ویده شو.

ماسپښین مهال له خوبه راویښ شو او سترګې یې موښلې له څپرې راووت. عبدالله د یوې ونې لاندې لنګ وهلې ناست ؤ او له یوه نا آشنا سړي سره په خبرو اترو لګیا ؤ.

هغه چې رنبیر ولید، غږ یې ورته وکړ چې دلته راشه. تاته مې یو ښه خبر راوړی دی.

د رنبیر زړه په درزا شو، او ګړندي وړاندې ورغی ویې ویل: څه خبر دي؟

- ستا خور پیدا شوه.

رنبیر ناڅاپه په خپله غمجنه دنیا کې د خوښۍ نغمې واوریدې، ویې ویل: څه وخت؟ چېرته؟ چاویل؟!

عبدالله نا آشنا سړي ته لاس ونیواو ویې ویل: دی عبدالواحد رااستولی دی.

ناآشنا سړی جګ شو، رنبیر دهغه لاس په دواړو لاسو کې ونیو ویې ویل:

زما خور چیرته ده؟

- هغه ستا کور ته رسیدلې ده.

د رنبیر د څو نورو پوښتنو په ځواب کې هغه سړي د شکنتلا کیسه ورته تیره کړه.

عبدالله جګ شو د هغه په اوږه یې لاس کیښود ویې ویل: اوس ستا څه اراده ده؟

رنبیر ځك شو او هغه ته یې وکتل، سترګې یې له اوښکو ډکې وي، رنبیر د توحید کلمه وویله او عبدالله یې تر لاس ونیو ویې ویل: ډیره موده کیږي چې ما د اسلام په حقانیت ایمان راوړی دی او نن ستا په مخکې ددې خبرې اعلان کوم، خدای (ج) ته دُعا وکړئ چې ماته همت او ټینګار راکړی او ماته یو نوی نوم هم غوره کړه.

عبدالله هغه په غیږ کې ونیو ویې ویل: ستا دمخ پر لیدو دنامه په خوښولو کې له ستونزې نشته، ما ستا لپاره یوسف نوم غوره کړی دی. ته به اوس د خپلې خور لیدو ته ناکراره وې، هلته ګوره ستا آس تیار ولاړ دي. رنبیر څو ګامه لرې یوآس ولید چې زین پرې تړلې و.

هغه وویل: مګر تا ولې دا ګومان وکړ چې زه همدا اوس غواړم ولاړ شم؟ ما ناته ویلې وو چې ترڅو سومنات فتح نشی زه به له دې ځایه ولاړ نه شم.

عبدالله ځواب ورکړ: د عبدالواحد له لیك څخه ماته معلومه شوه چې اوس تر یوې مودې پورې دې لورې ته د سلطان راتلل امکان نه لري. د سومنات په اړه تا ټول معلومات ترلاسه کړی دي، ځکه خو دې نور دلته تم کیدو ته هیڅ ضرورت نشته، په ځانګړی ډول په داسې حال کې چې ستا خور سهار او ماښام ستا لاره څاري، ما د هغې له خولې د عبدالواحد پیغام واورید ستا آس مې تیار کړ، خو ته ویده وې.

دده سترګو ته د شکنتلا موسکا نڅیدله.

• • • • •

سبا ته روپ وتي چې له درانه خوبه راویښه شوه، کامني یې ترڅنګ ناسته وه.

کامنې وویل: ته ډیره ویده شوې

روپ وتي وپوښتل: هغه چیرته دی؟
رام نات راغی چې ته یې ویده ولیدې د کیښتی کپتان ته ورغی.
روپ وتی جګه شوه کیناستله او ویې پوښتل:
اوس خو به څه خطر نه وي؟
- نه مورې اوس ډیر لرې راغلې یو.
روپ وتي وویل: زه اوس هم داسې احساسوم چې یو ویرونکی خوب مې لیدلی دی.
زما باور نه راځی چې د سومنات په درمسال کې به داسې څه هم تیرېږي.
کامني ځواب ورکړ: د بګوان شکر کوه چې ته وژغورل شوې او راغلې.
روپ وتي لږ څنډ په چورت کې ډوبه شوه ، بیا یې وویل: کامني یوه پوښتنه درنه کوم، کله چې تا وروستی ځل راسره ولیدل له خبرو نه دې داسې معلومیده چې ته دې له خپل انجام څخه بې خبره نه یې، آیا تاته مذهبی مشر ویلې وو چې وروستی وخت دې راغلی دی؟
هوکي، زما د تېنګار په سبب هغه راته وویل: که هغه نه وای راته ویلې هم ماته پردې پوهیدل ډیر ګران نه وو چې په درمسال کې زما ژوند پای ته رسیدلی دی.
- هغه تاته دا هم ویلی وو چې تا به سمندر ته غورځوي؟
- نه هغه ماته دا وویل چې زه به د لوی دیوتا دربار ته ځم.
- او ستا پردې باور وو؟
- نه، خو خپل زړه ته له دوکې ورکولو پرته ما کومه بله لاره نه درلوده.
روپ وتی وویل:
کامني زه چې کله ستا مخ ته ګورم ، نو دا باور مې نه راځی چې ډیر بې رحمه سړی به ستا په مرګ خوشحاله شي.
کامني خپل مخ په دواړو لاسونو پټ کړ او په سلګیو کې یې وویل:
روپ وتي! د مذهبی پیشوا د بدکاریو د پټولو لپاره زما قرباني ضروری وه، کاشکي دې خلکو زه نه وای ژغورلې.
د هغه د ګناهونو د چټلی بار چې زه ګرځوم هره شیبه راته تر مرګ بده ده، کامني په زوره زوره وژړل.

روپ وتي د هغې سر په خپله غېږه کې کېښود ویې ویل: کامنی زما په نظر ته یوه دیوي یې.

د کامني پر شونډو یوه غمجنه موسکا وځغلیده ویې ویل: دیوي! نه،نه زه دیوی نه یم، که زه دیوي واي، نو هغه شپه چې هغه زما پر آبرو لاس اوچت کړ باید زما د ژوند وروستۍ شپه وای، په هغه شپه هغه ساده نجلۍ چې د لوی دیوتا پالونکې وه مړه شوه، او هغه کامني د درمسال پالونکیو سبا ته لیدله یوه داسې ښځه وه چې د هرې ګناه قیمت یې غوښتل ترلاسه کړی او یوازې دې امید ژوندۍ ساتلې وه چې دا به له غمیو او جواهرو سره تلل کیږي او راجه ګان او ملکې به یې په مخ کې لاس په نامه دریږي.

- کامنی تا خپله یوه خور له بربادی وژغورله، زه ستا ددې نیکی بدل نشم درکولی.

- کامني وویل: ما پر تا څه احسان نه دی کړی.

زه له هغه نه د خپل بدل اخستلو لپاره ولاړم، که رنبیر زما لاس نه وای نیولی، نو زما خنجر به دهغه تر سینې بوټ ختلی وای، روپ وتي زه په دنیا کې چاته د مخ ورښکارولو نه یم، اوس د ژوند هره شیبه ماته له مرګه ډیره ویروونکې ده. روپ وتی د هغې پر سر لاس راتیر کړ ویې ویل: ته به له موږ سره ځې کامني! زه به ټول عمر ستا خدمت کوم.

- نه زه ستا سره نه ځم. کامني د روپ وتي لاس وښانده، زما لاره له تا نه بیله ده.

روپ وتي اندیښمنه شوه ویې ویل: نو ته چیرته ځې؟

- ددې په څواب کې مې لا فکر نه دی کړی.

پاتې ټوله ورځ کامنی ډیره غمجنه وه، ماښام نژدې له روپ وتی سره د سمندر ننداره کوله، له هغې وروسته بیا خپلې کوټې ته لاړه. رام نات تر ډیره له هغې سره ناست و او خبرې یې ورسره کولې. روپ وتی داسې احساسوله چې ورو ورو د کامنې وضع راسنبالیږي. رام نات ولاړ او دوی له لږ خنډ خبرو وروسته ویدې شوې.

سهار چې روپ وتي سترګې وغړولې. کامني هلته نه وه، فکر یې وکړ چې

بهر به د سمندر ننداره کوي. له لږ انتظار وروسته په هغه پسې ور ووته، خو د کامنی هیڅ درک نه و.

د سلمان په پوښتنه دوو ماهوګانو وویل چې د شپې ناوخته مونږ هغه ولیده چې د کیښتی په رمخ یې قدم واهه، ویل یې چې دننه مې ساه بندیږي، لږ ساعت د هوا خوری لپاره راوتلې یم، لږ ځنډ وروسته د کښتی بلې خواته ولاړه او له هغې وروسته مونږ بیا ونه لیده.

مونږ ګومان کاوه چې هغه به کوټې ته تللې وي. د سلمان په امر ماهوګانو کینتی ښه ولټوله، خو کامني هیڅ ځای هم نه وه. سلمان او د هغه ملګري چې د سومنات دیوی دسمندر غیږې ته پناه وړې ده.

• • • • •

# تبتیدلي

څو ورځې وروسته سلمان، رام نات او روپ وتي د شپې په دریمه برخه کې د کچهه پر ساحل پلي کړل او هغوی پر ریګونو کیناستل، د سهار په انتظار شول، په کیښتۍ کې د روپ وتی د سفر وروستۍ دوې ورځې طبیعت ښه نه و. خو دی نه غوښتل چې رام نات پریشانه کړي.

رام نات به چې کله ددې پر څیره د پریشانۍ او ستومانۍ نښې ولیدې اندیښمن به شو. خو دی به ورته وویل چې دا د سمندر دهوا اغیزه ده چې له کیښتۍ څخه پلی شو. زما وضعه به ښه شي. خو چې کله دسمندر پرڅنډه پلی شول. رام نات ویوهیده چې د روپ وتي وضعه تر پخوا زیاته خرابه ده. روپ وتي تر لږ ځنډه ده ته نژدې ناسته وه. له یوې او بلې خوا غږیده. بیا په ځمکه وغځیده او پریوته.

رام نات پریشانه شو وېویل: روپ وتي څه خبره ده؟

هغې ځواب ورکړ: هیڅ خبره نه ده. هسې وغځیدم. د شپې پر کیښتۍ هیڅ خوب را نه غی.

رام نات د هغې پر تندی لاس کېښود ویې ویل:

ستا خو تبه ده.

روپ وتي وویل: نه زما تبه نه ده، دا ستا هسې وهم دی، زما یوازې لږ خوب ته ضرورت دی.

رام نات وویل:

سلمان وویل چې دلته شاوخوا د کب نیوونکیو کلي دي موږ به سهار کوم کلي ته ځانونه ورسوو. هلته به ته ښه آرام وکړې.

روپ وتي وویل: نه نه. زه غواړم چې ډیر ژر له دې سیمې څخه ځانونه

وباسو. د لمر راختو نه وروسته تقریباً دوه میله لرې دوی ته د یوه کلي نښې تر سترګو شوې او هماغه لوری ته ور روان شول. له کلي نه تقریباً نیم میل لرې روپ وتي کیناستله او وې ویل: رام ناته زه ستړی شوې یم. لږ مې دمې جوړولو ته پرېږده.
رام نات یې تر څنګ کیناست، روپ وتي له خپلې غاړې څخه د غمیو امیل راویوست وې ویل:
دا دی له ځان سره غلی وساته، کلي ته زما له دې سره تګ سمی نه دی.
رام نات امیل له روپ وتي نه واخست او د کمیس په جیب کې یې واچاوه ، لږ ځنډ وروسته د هغې دمه جوړه شوه، بیا جګه شوه او له رام نات سره روانه شوه، خو څو تر کلي رسیدل دا ډیره بې سیکه شوه.
د کب نیوونکیو دغه کلی له پنځوس ، شپیتو څپرو جوړ شوې وُ. د کلي خان رام نات د لوړ ذاتو څخه وګاڼه او خپل کورته یې ورسره بوتلو. روپ وتي ټوله ورځ او راتلونکی شپه په سخته تبه تیره کړه.
رام نات ته د کلي د کب نیوونکیو له خولې معلومه شوه چې له دې ځایه اته میله لرې یو ډیر لوی کلي دی چې ښه ډاکتر پکې شته. ځکه خو دوهمه ورځ رام نات په کلي کې دپاتې کیدو پر ځای پریکړه وکړه چې روپ وتی هلته بوزي. د کلي خان څلور ځوانان راوغوښتل هغوی ته یې د روپ وتی د کټ وړلو امر وکړ او له رام نات سره روان شول.
نژدې ماسپښین هغوی کلي ته ورسیدل. رام نات نیغ مشهور حکیم ته ورغی، طبیب د دوی د آرام لپاره د خپل کور یوه خونه ورته تیاره کړه.
له رام نات سره چې څو طلایي سکې وې هغه یې همدغه طبیب ته ورکړې خو له درې ورځو تیریدو وروسته هغه ولیدل چې د روپ وتي وضعه مخ په خرابیدو ده، هغه بیا د کوم طبیب لپاره د کلي مشر ته ورغی ، هغه ورته وویل:
چې په دې شپو کې د انهل واړه شاهي طبیب مندهیر ته راغلی دی، که نه هلته ځان ور ورسوي، نو دناروغې ژوند ژغورلی شې، خو پر هغه علاج کول د معمولي سړي د وس خبره نه ده، هغه بوازې د طلا څل بل چې وګوری خبر کوي.

رام نات د لومړي ځل لپاره د انهل واړه له راجه سره د پیژندګلوی د اړیکو ښکارولو اړتیا احساس کړه او د کلي مشر ته یې د انهل واړه له راجه سره د خپل لومړي ځل لیدو کیسه وکړه. د کلي مشر دومره اغیزمن شو چې مندهیر ته یې د روپ وتي د رسولو لپاره خپله ښکلې ګاډۍ او غوره غوایان ورکړل، سبا ته رام ناته او روپ وتي په ګاډۍ کې سپاره د مندهیر په لور وخوځېدل.

* * * * * *

د انهل واړه د شاهي طبیب منوراج پلرنی کور په مندهیر کې و، او هغه به له دوو درېو میاشتو وروسته یو ځل په انهل واړه څخه مندهیر ته راتلو، دلته یوازې څو امیران داسې وو چې په ده یې علاج کولی شوای. له ده سره د شتو او دولت کمی نه و، راجه ډېره لویه سیمه ورکړې وه، خو پردې برسیره هغه ډېر طامع انسان و.

په خلکو کې دده په باب دا خبره مشهوره وه چې د ناروغ مخ ووینې، د غریبی او خانی درک یې معلوموي، په مندهیر کې د راجه تره رګونات سردار دده سرپرست و، او ده له څه ناروغی پرته هغه ته ډول ډول دواګانې ورکولې.

یو سهار چې منو راج راویښ شو، له بسترې څخه جګ شو او د عبادت لپاره یې ځان چمتو کاوه چې نوکر یې احوال ورکړ:

یو ځوان ستا سره د لیدو تینګار کوي.

منو راج وپوښتل، څوک دی؟

- باداره! زه یې نه پیژنم مساپر دی.

- ته خو پوهیږې چې په دغه سهار مهال زه له چا سره نه ګورم.

- باداره! ما هغه ته ډېر وویل، خو هغه وایی چې له طبیب سره له لیدو پرته به ولاړ نه شم، هغه له سپیدو چاود د مخه د دروازې ټکول پیل کړې وو، ما هغه ته دا هم وویل چې زما بادار له عامو خلکو سره نه ګوري، خو هغه وویل چې زه به چې څومره وغواړي، هومره قیمت ورکړم.

منو راج وویل. ښه ده رایې وله.

نوکر بهر ته ووت او لږ څنډ وروسته یې ځوان راوست، هغه رام نات و، منو راج د هغه په څیره کې د امارت په ځای د ستوماني، پریشانی او بې وسی نخښې ولیدې. د رام نات جامې هم ډېرې خیرنې شوې وې. د شاهی طبیب په

بدن اور بل شو، ددې پرځای چې رام نات ته پام وکړي پر خپل نوکر وربرګ شو:

ته ... ته بلکل خر يې، ما څه درته ويلې وو؟

رام نات وويل: باداره! ما چې ستا نوم واوريد ، له ډير لرې ځايه درته راغلې يم، بيره کوه له ماسره ولاړ شه.

منو راج له غوسې نه پر لړزه شو وې ويل:

کوم احمق چې ته ماته را استولی يې زما تر نوکر به هم لوی خر وي.

رام نات خپل لاس جيب ته يووړ او دغميو هار يې راويوست، منو راج ته يې وړاندې کړ وې ويل:

زه ستا په مطلب و نه پوهيدم باداره! خو که ته فکر کوې چې زه کوم سوالګر يم ، نو دغه همدا اوس درسره واخله.

منوراج تر لږ ځنډه حيران ولاړ و. بيا يې اميل له يوه سره ونيو اوچت يې کړ او ويې ويل: دادې له کومه کړی دي؟

- دا د غلا مال نه دی باداره!

منو راج په لاس خپل نوکر ته اشاره وکړه او هغه بهر ووت. بيا هغه اميل په ورغوی کې کيښود ، رام نات ته يې مخ واړاوه: ناروغ چيرته دی؟

- باداره د درم شاله درمسال په مساپر خانه کې دی.

- په درم شاله کې!

- هوکې، موږ له نيمې شپې وروسته راورسيدو ځکه همالته پاتې شوو.

- ته بايد نيغ ماته راغلی وای.

- باداره! خلکو ماته ويلې وو چې له سهار څخه د مخه تاسو له چا سره نه ګوری.

منو راج وويل: دا به لومړی ځل وی چې زه به د درمسال مسافر خانې ته د چا د ليدو لپاره ځم.

- ته په بيړه ولاړ شه او هلته په دروازه کې زما انتظار کوه، زه درپسې يم.

- باداره! بيړه کوه د ناروغې وضعيت خراب دی.

رام نات دا وويل او بهر ته ووت او منو راج بيا په خير خبر اميل وکوت. د منوراج ميرمنې د شا له دروازې څخه ور وکتل او وې ويل:

نه له چا سره خبرې کوې؟

منو راج مخ ور واړاوه، امیل یې له یوه سر څخه ونیو او د هغه سترګو ته یې ونیو وې ویل:

دا وګوره!

د میرمنې سترګې یې له خوښۍ څخه وځلیدې او په بیړه ورغله، هار یې د میړه له لاسه واخست.

منو راج ورته وویل:

که دا بدل نه وي، نو بیه یې یوازې کوم راجه ادا کولی شي.

- تا له کومه کړ؟

- دا ماته یوه معمولي سړي راکړ، هغه ماته د چا د علاج لپاره راغلې و.

میرمنې یې وویل: کیدای شي کوم راجه په بدلو جامو کې درته راغلی وي.

منو راج وویل: له انهل واړه څخه د غمیو یو لوی سوداګر د لوی سردار رګونات د ناوی لپاره زیورات راوړی دی او راغلی دی. هغه چې امیل وګوری بیه به یې معلومه کړي.

- نو زر هغه ته ورشه!

زه به لومړی ناروغ وګورم او بیا به هغه دلته راوغواړم.

خو میرمن یې په داسې معاملو کې د انتظار عادي نه وه. کله چې منوراج له کوره ووت، هغې یو نوکر راوغوښت او امر یې ورته وکړ چې زر تر زره د رګونات له میلمستون څخه د انهل واړه دغمیو سوداګر راولي.

د سردار رګونات کور ډیر لرې نه و، لږ ځنډ وروسته نوکر سوداګر راوست، د منوراج ښځې له یوې او بلې خوا تر څه خبرو وروسته هغه ته امیل وروغوښت او هغه په حیرانۍ ترې وپوښتل:

دا امیل ستا لاس ته څنګه درغی؟

د منوراج میرمن اندیښمنه شوه وې ویل:

ولې څه خبره ده؟

- تا ته معلومه نه ده چې دا د راجه امیل دی؟

- د راجه امیل دی؟

- هو کې! دا ما ورته جوړ کړي دي، په دې کې دوه داسې غمي دي چې لس کاله له مسره وو. لوی راجه پر طبيب صيب ډير مهربانه دی، خو طبيب مانه هسې کله هم نه دی ويلي چې دومره لوی انعام يې کتلی دی.

د منوراج مبرمني په نبنتي ژبه وويل: دغه اميل هغه ته راجه نه، بلکې يوه بل چا ورکړی دی.

- هغه څوك دی؟

- موږ نه معلوم نه دي، هغه همدا اوس طبيب د کوم ناروغ د علاج لپاره بللی و.

زرګر وويل ستا باور دی چې هغه غل نه و؟

- ما هغه لا تر اوسه ليدلی نه دی.

- نو بيا ډير ښه فکر وکړی چې طبيب صيب بدنام نه شي.

د منو راج مبرمني وويل: بنايي نوکر ته معلوم وي چې هغه څوك و، تاسو ودريږئ . زه به هغه راوغوارم. او بيا دروازې لوري ته ورغله او نوکر ته يې ورنارې کړې.

نوکر چې دننه ورغی د غميو سوداګر ترې وپوښتل:

تا ته معلومه ده چې طبيب صيب د چا د علاج دپاره تللي دي.

- صيب! هغه د درمسال د مسافر خانې په لوری تللی دی کوم سړی چې دده لپاره راغلی و؛ هغه همدا ويل چې ناروغ يې په مسافر خانه کې دی.

زرګر د منو راج ميرمن ته مخ واړاوه وې ويل:

طبيب صيب پر ما ډير مهربانه دی، خو زه د راجه نمك خور يم دداسې خبرې پټول مانه ډير ګران دي، د طبيب صيب د بدنامی نه د ژغورلو يوازينی لاره داده چې غله ته د تيښتې موقع ورنکړو.

که تاسو بده نه منئ، نو زه همدا اوس سردار صيب ته ورځم، ستاسو هم په همدې کې ګټه ده. هغه سړی چې دغه اميل غلا کړی دی، کوم عادي غل نه دی. تاسو خپل نوکر همدا اوس د درمسال ميلمستون ته واستوئ تر څو د سردار صيب سپاهيان د هغه د نيولو لپاره نه وي ورغلي هغه دې څارې.

د منو راج مبرمني له عذر نه په ډکه لهجه وويل:

نه خو پوهيږې چې موږ بې قصوره يو . اوس له بدنامي څخه زموږ ژغورل

ستا دنده ده.

زرګر ځواب ورکړ: نه غم مه کوه. زما باور دی چې که غل ونیول شو. نو لوی راجه به طبیب صیب د ډېر لوی انعام حقدار وګڼي.

.....

د روپ وتي له نبض لیدو وروسته منو راج رام نات ته وکتل وې پوښتل: دا ستا میرمن ده؟

رام نات ځواب ورکړ: هو. هو صیب!

او روپ وتي هماغسې چې پرته وه. سترګې یې د رام نات پر څېره ښخې کړې.

د روپ وتي د ناروغۍ په اړه له څو پوښتنو وروسته منو راج وویل

ته غم مه کوه! دا به ډېره ژر روغه شي. زه غواړم چې ددې علاج زما په کور کې وشي. خو نن دې نه تکلیف ورکول سهی نه دي. زه به اوس ولاړ شم. د نوکر په لاس به دارو راواستوم. که تر سبا پورې هغو څه ګټه ورته وکړه. نو زه به یې بیا خپل کور ته بوزم. ماښام به یې د لیدو لپاره بیا راشم. امکان لري ماسپښین هم راشم.

رام نات په عذر وویل: خامخا راشي. اوس زما یوازینۍ هیله تاته ده.

- ته غم مه کوه. زه دا خپله لور ګڼم

منو راج چې له مسافر خانې څخه راووت. نو لږ لرې یې خپل نوکر ولید چې را روان و. نوکر یې چې په وار خطا حالت ولید. تندی یې ګونځې شو. ودرید او د هغه د راتلو انتظار یې وکړ. نوکر چې نژدې ورغی منوراج د پریشانۍ سبب ترې وپوښت. هغه د امیل په باب د انهل واره د زرګر خبرې ورته وکړې.

د لږ خند لپاره د منوراج له پښو څخه ځمکه وتښتیده، بالاخره یې وویل:

موږ به په دروازه کې د سپاهیانو د راتلو انتظار وکړو. زما باور دی چې هغه خپله میرمن نشي پرېښودلای او نه تښتي. پر دې مې هم باور دی چې هغه غل نه دي. خو که دا امیل د راجه وي. نو زموږ خیر په دې کې دی چې په دې خبرو کې خانونه ورګډ نه کړو

د درمسال د مسافر خانې په وره کې چې خلکو منو راج ولید. ډېر زیات

پرې ورتهول شول، دغه خبره ده ته ډېره داندېښنې وړ وه، لږ ځنډ وروسته چې د سردار سپاهیان راښکاره شول، نو هغه ډاډه ساه واخسته، وړاندې ورغی او د سپاهیانو افسر ته یې وویل: ګوره لومړی هغه ماته غل نه ښکاري، که غل وی هم زه نه غوارم چې دغه خبره په ټول ښار کې خپره شي چې زه د یوه غله د میرمنې د علاج لپاره درمسال مساپر خانې ته راغلې وم.

سردار صاحب هم زما بدنامی نه غواړي، نو غوره داده چې زه هغه په څه پلمه بهر ته راوغوارم او چې کله کوڅې ته ورسیدو تاسې یې ونیسئ.

د سپاهیانو افسر له دې خبرې سره موافق شو او منو راج بیا د ننه ورغی، چې کله د رام نات کوټې ته ورغی، هغه د روپ وتي سر ورباندې چاپې کاوه، هغه لاس په نامه ودرید وې ویل:

باداره تاسو بیا راغلی؟

- هوکې! تاسو زما سره راځئ! د دوا په اړه باید تاته ډېرې خبرې در زده کړم.

رام نات لږ پریشانه شو، روپ وتي ته یې وکتل. روپ وتي په کمزورې غږ ورته وویل:

ولاړ شه زما پروا مه کوه.

رام نات له منو راج سره بهر ته راووت. کله چې دوی دواړه له یوه پراخ میدان څخه تیر شول او یوې تنګې کوڅې ته ننوتل. د سردار سپاهیانو ناڅاپه رام نات راایسار کړ. رام نات تر لږ ځنډه شور ماشور او زور ازمویلو وروسته د اتو لسو تنو سپاهیانو په منځ کې بې وسه شو، منوراج په دې موده کې کوم دیرش څلویښت ګامه وړاندې تللې و، رام نات چیغې وهلې:

پرې مې ږدې! د بګوان لپاره ما پرېږدې! زه د راجه دوست یم، او سرتیرو په کړس کړس خندل.

. . . . . .

لږ ځنډ وروسته په یوه شانداره ماڼۍ کې رام نات په یوه پراخه کوټه کې د زکونات په مخکې ولاړ و. منو راج او د راجه د غمیو سوداګر د هغه په ښي او کیڼ لوري کې په کرسیو ناست وو.

د پوځ څو تنه سپاهیان او افسران هم د رام نات شاوخوا ته ولاړ وو.

رگونات امیل رام نات ته وروښود او وې ویل:
دا امیل تا له کومه کړ؟
رام نات ځواب ورکړ: باداره! ماته لوی راجه راکړ.
- زموږ لوی راجه؟
- هوکې صیب!
- څه وخت؟
باداره! که دا پوښتنه تاسو له لوی راجه څخه کړې وای، نو ستا سرتیرو ته به زما د نیولو اړتیا نه وه. دغه امیل ماته لوی راجه په هغه ورځ راکړ چې په ځنګل کې یې د زمری ښکار کاوه او ما هغه د مرګ له کومې وژغوره.
هغه ماته خپل پیل هم راکړی و.
رګونات ناڅاپه ودرید، د پوځ افسر چې د رام نات تر شا ولاړ و راوړاندې شو او په ځیر ځیر یې رام نات ته وکتل او ویې ویل:
باداره! زه په ښکار کې له تولواك سره وم. دا هماغه دی، که ما هغه مخکې لیدلی وای، نو سرتیرو به داسې غلطي نه کوله.
رګونات د پریشانۍ په حالت کې زرګر او منوراج ته وکتل او بیا ناڅاپه وړاندې ورغی. امیل یې د رام نات پر غاړه کې ور واچاوه. منوراج او دغمیو سوداګر د وارخطایۍ په حالت کې ودریدل او یو بل ته یې کتل. رام نات امیل له غاړې رااخست وې ویل:
نه باداره! ما دا امیل طبیب ته ورکړې دی، او وربخښل شوی شی بیرته څوك نه اخلي. که تاسو پر ما څه احسان کوې، نو طبیب صیب ته ووایې چې د ناروغې د ژوند ژغورلو هڅه وکړي.
- ناروغه ستا میرمن ده؟
- صیب... هو صیب هغه زما میرمن ده
رګونات وویل: ته نور د درمسال په مسافر خانه کې نشې اوسیدای، سر له نن څخه ته زما میلمه یې. زما کسان به درسره ولاړ شي او میرمن به دې دلته راولي. طبیب به یې د علاج لپاره همدلته وي. دغه امیل هم له ځان سره وساته. موږ به یې طبیب ته بیه ورکړو.
منو راج غوښتل خپل خجالت پټ کړي. وړاندې ورغی او په خپ یې

وویل: باداره! زه له هغه نه بخښنه غواړم، بګوان پوهیږي چې زما هیله همدا وه چې کله دده میرمن روغه شي، نو دغه امیل به بیرته ورسپارم. زه یوازې پردې وسربدم چې دومره قیمتي شی دوی له لاسه ورنکړي. د سوداګر دغلطی په وجه دده ته زحمت پیښ شو.

زرګر جګ شو لاس یې په نامه ونیول وې ویل:

باداره! ما ته نه وه معلومه چې لوی راجه دغه امیل پخپله دده ته ورکړی دی.

رام نات امیل منوراج ته وراندې کړ وې ویل

نه آغا . امیل نور ستا دی. زه دهغې د ژوند زغورنې په بدل کې د نړۍ ټولې خزانې ستا په پښو کې انبارولی شم.

ما ډیر مه خجالت کوه، منوراج دا وویل امیل یې د رام نات له لاسه واخست او په زور یې دهغه په غاړه کې ورواچاوه.

د رګونات سردار څلور نوکران له رام نات سره د درمسال مسافر خانې نه ولاړل. لږ څند وروسته یې روپ وتي په بګۍ کې کېښوله او دهغه محل ته یې راوړسوله.

رګونات د خپل پراخه محل یوه برخه رام نات ته وسپارله. روپ وتي نږدې یوه هفته د مرګ او ژوند ترمنځ تالونه خوړل

د ښار د مخورو ښځې یوازې د رګونات د خوښې په خاطر د هغې پوښتنې ته راتلې. رام نات د احتیاط لپاره د روپ وتي نوم په ساوتري بدل کړ. خو هغه پردې سربیره د ښځو په راتګ خفه و، چې که کومه یوه روپ وتي وپیژني نو څه به پیښیږي؟

دوهمه هفته د روپ وتي تبه وشکیده ، خو هغه دومره دنګره شوې وه چې د ځیرې پیژندل یې ګران وو.

د سردار دوې نوکرې د روپ وتي په خدمت بوختې وې. دریمه اونۍ روپ وتي د نوکرې په تکیه څو ګامه د نلو راتلو شوه. په دې موده کې رام نات څو ځلې له سردار رګونات څخه وغوښتل چې هغه ته له ماڼۍ څخه بهر د اوسیدو اجازه ورکړي. خو سردار رګونات هر ځل دا ویل چې ترڅو ستا میرمن بلکل روغه نشي ته زما میلمه یې.

د مانۍ د نوکرانو له خولې رام نات ته دا خبره معلومه شوې وه چې د سردار رګونات واده په همدې ورځو کې کېدونکی دی او له لرې او نژدې ځایونو څخه به په سلګونو مېلمانه په کې برخه اخلي.

هغه ددې لپاره چې روپ وتي د خلکو له نظره لرې کړي. له دې محل څخه ئې واده مخکې وتل ضروري بلل خو روپ وتي تر اوسه د اوږده سفر وړ نه وه.

شاهي طبيب د رام نات او سردار په وړاندې ددې د روغتیا په باب داد څرګندولو نه وروسته بیرته انهل واړه ته ستون شوی و. خو هغه په ټکله وبللې وو چې ناروغې ته څو اونۍ آرام ضروري دی.

په مندهیر کې د منوراج یو شاګرد دخپل استاد دهدایت سره سم هره ورځ ددې د لیدو لپاره راتلو. یوه ورځ رام نات دسردار په مخکې وویل: بداره! زما میرمن نور بلکل روغه شوې ده. زه به ستا ددغې نیکۍ بدله په ټول عمر کې درنکړای شم. خو زه یو ځل بیا ستا په خدمت کې له دې عرض سره حاضر شوی یم چې له مانۍ څخه بهر د هستوګنې اجازه راکړې. راتلونکې اونۍ به ستا په سلګونو مېلمانه په دې مانۍ کې راټولېږي. ما په ښار کې د یوه کور بندوبست کړی دی. ځکه څو ماته په خپله خوښه هلته د تللو اجازه راکړه.

رګونات ځواب ورکړ: ته باید پردې پوه شې چې ماته به یو مېلمه هم تر تا زیات قدر و نه لري. بیا هم زه ستا د خوښې پر خلاف دلته ستا پر اوسېدو ټینګار نه کوم. خو زه تا په کوم معمولي کور کې اوسېدو ته نه پرېږدم. دبنار په بله څنډه کې زما یو کور نش پروت دی، که ستا دا خیال وي چې د واده په وخت کې به د خلکو بیرو بار تا پریشانه او نا آرام کړي، نو هلته ولاړ شه.

ما راجه ته هم ستا په اړه احوال استولی دی او زما باور دی چې کله هغه زما د واده لپاره دلته راشي نو تر ټولو لومړی به ستا په باب پوښتنه کوي.

هغه له انهل واړه څخه کنت کوټ ته تللی دی، که نه تراوسه پورې به یې استازی درته راغلی و.

سبا ته رام نات او روپ وتي مانۍ پرېښوده او د رګونات یوه پخواني کور ته ولاړل. د رګونات نوکران دلته هم ددوی پر خدمت ګومارلي وو. له مانۍ څخه یوه پر عمر پخه خدمتګاره هم چې له روپ وتي سره ډېره بلده شوې وه

ورسره راغله. د هغه دکور تر څنګ یوه بله شانداره ماڼۍ وه. رام نات او روپ وتي ته د نوکرانو له خولې معلومه شوه چې دا ماڼۍ د هغه سړي ده چې له لور سره یې د رګونات سردار واده کیدونکي دی او هغوی ته دلته نوي جایداد ورکړل شوی دی.

.....

یوه ورځ روپ وتي له خپلې عمر خوړلې نوکرې سره د کوټې پر بام ولاړه وه او د سردار رګونات د واده ننداره یې کوله. راجه سردار او دشاهي کورنۍ نور غړي پر پیلانو او په هغې پسې نور لوی لوی سرداران پر آسونو سپاره وو، سردار رګونات واده ته راټول شوې مسخره چیانو او ټوکمارو ته انعامونه ورکړل او رخصت یې کړل. بیا هم ډول وهونکیو او سرنۍ غږونکیو تیار پوځ له ورا سره ملګرې وُ.

چې دا تیره شوه. روپ وتي چې په ډیر دریدو ستومانه شوې وه، راښکته شوه او پر خپله بستره څملاسته.

لږ ځنډ وروسته بوډۍ خدمتګاره هم راکوزه شوه. د روپ وتي کوټې ته ورغله او وي ویل:

دا خو ښه کار نه دي شوی. ما خو هغه نجلۍ ولیده. په بګوان سوګند د سپوږمۍ ټوټه ده او د سردار عمر ددې له پلار څخه هم زیات ښکاري.

لږ ځنډ وروسته رام نات په بیړه دننه ورغی او د روپ وتي له لیدو سره یې وویل:

روپا اوس دې وضعه څنګه ده؟

زه بلکل ښه یم، پر بام ډیره ولاړه وم، ستومانه شوم، هغه راجګه شوه، کیناسته او دایې وویل.

رام نات وویل: ما یو ډیر ښه خبر راوړی دی، پاچا چې زه ولیدم، ډیر خوشحاله شو. لږ ځنډ وروسته چې ورا بیرته ستنه شي، نو د سردار په کور کې به دربار جوړیږي او کوم چاته چې په دربار کې تر ټولو د مخه د حاضریدو حکم شوی دی هغه زه یم. زه که لږ نا وخته شم، ته خو به خپه کیږې نه ؟

روپ وتي وویل: رام ناته ! زه ویریږم، موږ باید سمدستي له دې ځایه روان شو. زه اوس سفر کولی شم.

رام نات وویل:

ته غم مه کوه روپ وتي! زه اوس د راجه بهیم دیو په پناه کې یم. اوس که لوي مذهبي پیشوا هم راشي، نو دخپلې رسوایی له ویرې به ستا پر خلاف څه ګام اوچت نکړای شي.

روپ وتي په ویره وویل:

نو ستا مطلب دا دي چې موږ به همدلته اوسو؟

نه زما مطلب هیڅکله داسې نه دي. زه یوازې دا غواړم چې ته څو ورځې نور هم آرام وکړې. بیا ته بنه پوهیږې چې د راجه د میلمنو په حیث به موږ ته سفر کول هم آسانه وي.

رام نات دا وویل او ولاړ او روپ وتي د خیالونو په نړۍ کې ډوبه شوه، دې له څو ورځو راسې داسې احساسوله چې نوي کور ته له راللیږدیدلو وروسته رام نات د شاوخوا خطرونو څخه بې پروا کیږي او د سردار دوستي ورو ورو د ده په زړه کې دا احساس را پیدا کوي چې دي په نړۍ کې بې یار او مرستندویه نه دی. دبنار خلك دوی میړه او میرمنه ګڼي. رام نات تیرو پیښو د مذهب او کلتور له ټولو رواجونو څخه باغي کړی و.

هغه روپ وتي د سومنات د مذهبي پیشوا له منګولو ژغورلي وه.

هغه دیوتاګان او د هغوی پالونکي مسخره کړی وو او له هغو پیښو وروسته له روپ وتي سره د واده له پاره ده ته کوم پنډت حاضریدل هسې ملنډې بښکاریدې. خو روپ وتي د سومنات د مذهبي مشرانو او پالونکیو څخه د بې شانه کرکې سره سره د ټولنې د دستور زنځیرونو شلولو ته تیاره نه وه، دې د نارینه او ښځې تر منځ دداسې اړیکو تصور هم نشو کولی چې د مذهب او ټولنې له رواج څخه آزاد وې. د خپل مذهب په اړه ددې په زړه کې د رنګارنګ خیالونو یو توپان را الوتی و، خو دغه توپان د سومنات د درمسال د څو پالونکیو او مذهبي مشرانو پر خلاف و، دې له پالونکیو څخه کرکه کوله، خو د دیوتاګانو ویره اوس هم ددې پر زړه خپره وه.

دې د دلایلو څخه زیات پر اوښکو رام نات دې ته مجبور کړې و چې د میړه او میرمنې رشته باید د مذهبي رواج سره سم تر سره کړې او ددې هدف لپاره باید د خطر له بریده وتلي وای، دوی ته په قنوج کې د رنبیر کلا داسې

ماته ترټولو ښه خبر دادی چې سبا ته له دې ځایه روان شو.

رام نات وویل: نه روپ وتي! نور موږ باید د هر وره په ټوك خوړلو مجبور نه وو.

سر له نن څخه زه سردار رام نات یم، راجه په دربار کې دا اعلان وکړ چې سر له نن څخه به ستا دوست زما دوست او ستا دښمن زما دښمن وي. لوی راجه ماته پوره اته کلي ځمکه راوبښله.

نه نه، روپ وتي سرتر پایه هیله او عذر شوه زیاته یې کړه:

د بګوان لپاره دلته د اوسېدو خیال له زړه وباسه.

رام نات په ډاډ وموسکل وې ویل: روپ وتي! تا ته دځه اندېښنې اړتیا نشته، که ماته دلته څه خطر تر سترګو کیدای، نو د انهل واړه پاچاهي به مې هم نه وه منلې، خو زما باور دی چې موږ د قنوج په نسبت دلته لږ خوندي یو. دا زموږ هسې وهم وُ چې د سومنات پالونکي به زموږ په لټون پسې راوتلي وي، نن مې د سردار رګونات له دوو پنډتانو سره لیده کاته وشول، هغوی ویل چې د سومنات نويي دیوي په لومړۍ شپه د دیوتا درشل ته ورسیده او راتلونکي ورځ لوی پیشوا د دیوي تاج د یوې بلې نجلۍ پر سر کیښود.

پیشوا مړ نه دي ژوندی دی. پالونکیو ویل چې تیره ورځ پیشوا په زینو کې لویدلی وُ او سر یې ټپي شوی وُ.

له لوي راجه سره د سومنات پالونکیو ستا د زر تر زره ورکیدو سبب دا ښودلی وُ چې لوي دیوتا پر تا زیات مهربانه وُ.

روپ وتي وویل:

ستا د خبرو مطلب دا دی چې نور ماته څه خطر نشته، خو ته پردې ولې فکر نه کوی چې دغه پالونکي پټ زما لټون کوي.

- نه روپ وتي! پالونکي چې د کوم مطلب لپاره راغلي دي، هغه هم ماته معلوم شوي دي، سردار ماته ویلي وو چې د سومنات په لور دمسلمانانو د لښکر د راتلو خطر هره ورځ زیاتیږي. او مذهبي پیشوا دغه پنډتان له لوي راجه سره د مشورې لپاره را استولي دي. اوس ستا د لټون سوال نه پیداکیږي، بلکې ماته داسې ښکاري چې که کوم بت پالونکی تا وپیژني هم دا به ونه مني چې ته روپ وتي یې.

که نه پخپله هم په عام مجلس کې شور ګډ کړي، دوی به ووايي چې دا کومه ليونی ده . هغه روپ وتي چې د درمسال ديوي وه په ځمکه نه په آسمان کې اوسيږي
روپ وتي وويل: فرض کړه په دې ښار کې که زه کومه داسې نجلۍ وويښم چې زه يې په درمسال کې ليدلې يم بيا به څه کيږي؟
رام نات په ډاډ ځواب ورکړ: هيڅ هم نه، لومړی خو به داسې نجونو اوريدلي وي چې د درمسال روپ وتي بلې .دنيا ته تللې ده، بيا به ته دوی ته ووايې چې زما نوم روپ وتي نه ، ساوتري دي، نتيجه به دا شي چې دوي به ستا په باب د مذهبي پيشوا او پالونکيو دخبرو ددروغ بللو پر ځای، له مجبوري دا ومني چې روپ وتي او ساوتري په يوه بڼه دوې نجونې دي.
روپ وتي وويل:
خو که دا خبره مذهبي پيشوا ته ورسيده چې په دې ښار کې د روپ وتي په څيره يوه بله نجلۍ هم شته ، نو د دنيا کوم ځواك به ما دهغه له کسات څخه وژغوري؟
راجه او سردار ته خو به د هغه يوه معمولي اشاره د حُکم په معني وي او مخکې تر دې چې زما غږ زما له شونډو رابهر شي زما مرۍ په غوڅه کړي.
چاته به دا خبره معلومه هم نشي چې مذهبي پيشوا د خپلې ګناه د پټولو لپاره دا کار وکړ، بېشکه راجه او سردار په تا مهربانه دي ، خو چې د مذهبي پيشوا تندی ګونځې وويني زموږ په باب به ددې پوښتنې جرئت هم ونه کړي چې څه ګناه يې کړې ده؟
رام نات وويل:
روپ وتي ته په دغسې خبرو ولې چورتونه وهې موږ له سومنات څخه په ميلونو ميلونو لرې يو، د انهل واړه په پاچهي کې به ديوه سردار حيثيت لرم.
راجه بهيم ديو به ماته دخپلې صفايي فرصت له راکولو پرته تا مذهبي پيشوا ته ونه سپاري او که دغه پيشوا احمق نه وي، نو د خپلې بدنامۍ له ويرې هم له ماسره ځان په لانجه کې اچول نه خوښوي.
روپ وتي د مايوسي په لهجه وويل په درمسال کې زه له مرګه هيڅکله هم نه ويريدم. خو ستا له دنيا سره او س د مرګ تصور ډير راته ويروونکي

دي. اوس زه غواړم ژوندی پاتې شم، ته نور زما دیوتا یې.

رام نات خپله کرسی وړاندې ورکش کړه د روپ وتي لاس یې په لاس کې ونیو او وې ویل:

ستا څخه پرته زما ژوند بې معني ؤ اوس چې زه څه کوم هغه ټول ستا لپاره دي، زه غواړم ستا دغه بدګوماني لرې کړم چې په دې ښار کې به اوسیږم. راجه د انهل واړه شاوخوا ته ماته ځمکې راکولې خو ما دا پلمه وکړه چې د ښکار مینه ډیره لرم ځکه خو ماته د ختیځ سرحد د ځنګلونو سره د اوسیدو اجازه راکړه، راجه زما دا غوښتنه په خوښۍ منلې ده او د سرحد سره یې اته کلي راوبخښل له هغو کلیو څخه وړاندې پراخه ځنګل دی چې هلته ځینې ځینې ځایونه د ټیټ ذاتو شپانه اوسي. زه چې ددې ځنګل کومه برخه اباد وم هغه به هم زما د جایداد برخه وي . راجه څو کاله وړاندې د ښکار په ورځو کې د خپلې هستوګنې لپاره د سیند پر غاړه یو کور جوړ کړې ؤ . اوس هلته د سرحدي کلیو د ساتنې لپاره د پوځ یوه ډلګۍ اوسي. ما ددې سیمې د ساتنې ذمه واري اخستې ده او چې وروسته اوسیږم هغه ځای به خالي کړي د سپاهیانو لپاره به زه بل ځای پراو جوړوم. زما باور دي چې هغه ځای د سومنات د مذهبي پیشوا له واکه ډیر لرې دی او موږ به هلته په پوره ډاډ ژوند وکړای شو.

زه به کوم برهمن راولم او غلی به دواړه د واده رسم ادا کړو. په ځنګل کې چې کوم کسان اوسیږي هغه زیاتره ډیر بې آزاره دي کله کله د سرحد کلیو ته د غلا او ډاکې لپاره راځي خو زما باور دي چې که زه له هغوی خلکو سره دسختۍ پر ځای نرمه رویه وکړم، نو دوی به امن خوښوونکي ثابت شي.

ته چې روغه شې ، نو دڅو ورځو لپاره هلته ځم. زه د څو هفتو لپاره ستا دلته نور اوسیدل خطر ناک نه ګڼم.

د ناروغۍ په سبب دې ښه دومره بدله شوې ده چې څوک دې ووینې دا ګومان نه کوي چې ته روپ وتي یې.

روپ وتي وویل:

خو پردې ټولو خبرو برسیره زه پردې ونه پوهیدم چې تا قنوج ته د تلو اراده ولې بدله کړه. زه پوهیږم چې ته دیوه عام سړي پرځای دیوه سردار په حیثس

روغه غواړي، خو آیا د رنبیر او قنوج د والي دوستي ستا په کار نه راتله؟ آیا مونږ که هلته د خپلې ګوزارې لپاره لږ ګرونده ترلاسه کړې وای، زیات خوشاله ژوند به مو نه وای؟

رام نات ځواب ورکړ:

روپ وتي! که زه د قنوج له راتلونکې څخه داده وای، نو د راجه ډیر لوی انعام به مې هم رد کړی وی او هلته به تلم، خو په قنوج او دهغو په ګاونډیو ریاستونو کې تر اوسه دغه خطر شته دی چې د محمود پوځونه به یوه ورځ بیرته ستانه شي او دهغه ځای هندوان به پرهغو خلکو وروداننګي چې له مسلمانانو سره ددوستي تور پرې لګیدلی وي، په دغسې حالاتو کې به د رنبیر په څیر خلکو ژوند په خطر کې وي.

که زه یوازې وای، خامخا به مې له رنبیر سره اوسیدل خوښ کړي وای، خو ستا لپاره له داسې ټولو خطرونو څخه ځان لرې ساتم. ستا د داد لپاره زه وعده درکوم چې زه به د قنوج له وضعې څخه خبر اخلم او کله مو چې پردې باور شو چې هلته مو راتلونکې خوندي ده، مونږ به هلته ولاړ شو.

روپ وتي وویل:

زه هیڅ نه پوهیږم، ته پر سومنات د مسلمانانو د حملې دخطر سره بیا هم دغه سیمه خوندي او په امن بولې

رام نات وویل: زه له هغوی څخه هیڅ خطر نه احساسوم

روپ وتي وپوښتل: آیا ته د راجه څمکې خورې، خو د مسلمانانو پر خلاف به ملګرتیا ورسره نه کوې.

رام نات ځواب ورکړ: نه، دغه سیمه ماته له مسلمانانو سره دجګړې د وعدې په بدل کې نه ده رابخښل شوې، بلکې د راجه د ژوند دژغورلو انعام دی، د مجبورۍ په حالت کې به زه هر وخت له سرحده واوړم، په قنوج او یا بل ځای کې به پناه واخلم زما پوره داډ او باور دی چې که زه د راجه ترڅنګ پاتې شم هم د مسلمانانو پر خلاف به وسله راپورته نکړای شم. خو ته سرله اوسه په داسې چورتونو ځان مه اندیښمن کوه. کله چې وخت راشي و به ګورو سمدستي د سرحد سیمې د قنوج په څیر په امن دي، ښه اوس ته ویده شه.

رام نات جګ شو د څنګ کوټې ته روان شو چې دروازې ته نژدې شو څه

خیال یې په ذهن کې وروګرځید مخ یې راواړاوه وې ویل:
روپ وتي د سردار ناوې ته د ټولولویو سردارانو میرمنو سوغاتونه ورکړل، اوس چې ته زما پر میرمن مشهوره شوې یې اوسردارله ما سره زیاتې ښیګڼې هم کړې دي ځکه خو د هغه ناوې ته باید ډېره قیمتي تحفه ورکړې. د انهل واړه زرګر تر اوسه دلته دی ما ورسره لیدلې دي، هغه ژمنه راسره وکړه چې په یوه اونۍ کې دننه به له انهل واړه څخه یوه جوړه ښکلې کړې درته راوغواړم او بیه به یې وروسته بیا راکړې. د سردار د زړه د ساتنې لپاره ما ورته وویل چې د میرمنې مې صحت ښه نه دی چې روغه شوه، د بي بي د احترام لپاره به راشي.

لږ ځنډ وروسته رام نات په بله کوټه کې په درانه خوب ویده ؤ، خو روپ وتي په ناکرارۍ اړخ په اړخ اوښته. دی داسې احساسوله چې یو نامعلوم ځواک رام نات ترې اخلي او ډېر لرې یې بیایي، ددې له زړه څخه په وار وار دغه غږ راووت: رام ناته! ته ځان ته دوکه ورکوې.

. . . . . .

سبا ته لوی راجه بهیم دیو د خپلې پلازمینې په لوري روان شو. له روانیدو وړاندې یې سردار رګونات ته هدایت وکړ چې رام نات ته د خپلې ځمکې د سمسورولو لپاره هر ډول ممکنه مرسته وکړي. روپ وتي باوري شوې وه چې رام نات قنوج ته نه ځي ځکه خو هغې په سرحد کې خپل نوي کور ته د تلو ټینګار کاوه، سهار او ماښام به یې رام نات ته وویل:
زه اوس سفر کولی شم، ځکه خو زر تر زره باید له دې ځایه ولاړ شو. خو رام نات هر ځل په دې وینا ځنډوله چې ته تر اوسه پورې کمزورې یې، که په لاره کې بیا ناروغه شې، نو په هغه لرې ځای کې به ښه طبیب هم نه شو پیدا کولی.

د سردار رګونات د واده په څلورمه ورځ د روپ وتي ټینګار ډېر زیات شو او رام نات مجبور شو وې ویل:
ښه ده زه به سبا د خپل جایداد د لیدو لپاره ولاړ شم او پنځه شپږ ورځې وروسته به د ضروري شیزونو بندوبست وکړم او بیرته به راشم تا به هم له ځانه سره بوزم. په دې موده کې به ته نوره هم روغه شې.

سبا ته شپږ تنه سپاره چې سردار رګونات د رام نات پرخدمت ګومارلي وو د دروازې په مخه کې ولاړ وو او رام نات په انګړ کې له روپ وتي څخه رخصتيده، هغې له عذر او هيلې څخه په ډکه لهجه ورته ويل:

رام ناته! ځنډ مه کوه!

رام نات دي ته تسلي ورکوله ويل يې ! ته غم مه کوه زه زر بيرته راځم.

که زرګر زما له راتلو مخکې هغه کړي راوړې خدمتګاره درسره کړه د سردار کور ته ورشه، ما دښار دوکاندار ته د جامو خبره کړې ده، هغه به يوه ښه جوړه جامې د سردار د ميرمنې او يوه ستا لپاره راوړي. اوس چې زه سردار ته ورغلی وم، هغه ستا په باب پوښتنه وکړه، ما ورته وويل چې اوس يې روغتيا ښه ده اوپه يو دوو ورځو کې به د بي بي احترام ته راشي.

روپ وتي وويل: په بيړه راځه، زه ډيره ويريږم.

- ته د سردار کورته په تلو ويريږې، اوس خو دهغه ميلمانه هم تللي دي.

- نه. زما څه اندېښنه نشته. يوازې ستا غم کوم اوس ته سردار شوي يې زه ويريږم چې څوک دي رانه وانخلي.

- روپ وتي! يوازې مرګ ما ستا نه اخستی شي.

روپ وتي زړغوني شوه وې ويل: داسې خبرې مه کوه. زه هسې ليونۍ يم، ورځه ملګري دې بهر انتظار کوي. رام نات دروازې لوري ته روان شو، د روپ وتي له سترګو اوښکي روانې شوې. رام نات يوه شيبه ورته وکتل او بيا يې ګړندي ګامونه واخستل او بهر ته ووت. لږ ځنډ وروسته روپ وتي له حويلي څخه بهر د آسونو د پښو ترپهار واوريد.

# پیژند ګلوی

دوې ورځې وروسته روپ وتي له خپلې خدمتګارې سره د رګونات ماڼۍ ته ولاړه.

له خدمتګارې سره یو دسپینو زرو پتنوس ؤ چې پر سر یې یو وریښمین دسمال غوړېدلی ؤ. د سردار یوې خدمتګارې چې دوی ته لار وربښودله ، د یوې کوټې دروازې ته دروله او ترې ننوته ، لږ ځنډ وروسته هغه بېرته راغله او روپ وتي ته یې دننه ورتلو اشاره وکړه. روپ وتي د خپلې خدمتګارې له لاسه پتنوس واخیست او دننه ولاړه.

د سردار میرمن په یوه پراخه کرسۍ ناسته وه چې په بخملو او زر تارو ښایسته شوې وه. روپ وتي پتنوس په یوه لاس ونیو وړاندې ورغله ور ټیټه شوه . یو لاس یې د هغې پر پښو کېښود ، د سردار میرمنې هغه تر متو ونیوه او جګه یې کړه. خو دې په بېړه پرغولي ګونډه ووهله او پتنوس یې په احترام په دواړو لاسونو وړاندې کړ.

د سردار میرمن بېله دې چې له پتنوس څخه دسمال لرې کړي او د هغې سوغات وګوري، پتنوس یې د هغې له لاسه واخیست او بیا یې نژدې څنګ ته کېښود.

روپ وتي جګه شوه ، ودرېده، د سردار میرمن د لومړي ځل لپاره هغې ته په ځیر وکتل او په رېږدېدونکي غږ یې وویل:

ته.... ته دلته؟

روپ وتي سر اوچت کړ او سترګې یې غړېدلې پاتې شوې. د دې په مخ کې نرملا ولاړه وه. دا په شا ولاړه تالونه یې وخوړل او بیا پر یوه کرسۍ وروغوځېده.

سر يې ورباندې ګرځيده او په سترګو يې تياره راتله، تر څو شيبو پورې نرملا هم له خپل شاوخوا څخه ناخبره وه. په حيرانۍ يې خپلې هغې ملګرې ته کتل چې د سومنات پالونکيو څو ورځې وړاندې د هغې په باب ويل د لوى ديوتا دربار ته رسيدلې ده.

ورو ورو دروپ وتي مړاوې څيره او وچې سترګې، دې ته د هغې نجلۍ څخه بل ډول ښکاريدل چې دې د هغې په بدن کې د ژوندانه ټولې مستۍ، تازه ګۍ او ښايستو نه ليدلې وو. د روپ وتي په دريدليو سترګو کې ورو ورو د ژوند نخښې را ښکاريدلې خو د ويرې له سببه چې د هغې په څيره کې کوم بدلون راغلي و، هغه د نرملا د حيرانۍ لرې کولو لپاره بس و، چې را په خود شوه، د روپ وتي ددفاع ځواك راويښ شو، په ډوبيدونکي غږ يې وويل: وبخښه! زه ډيره ناروغه وم، سر مې را باندې وڅرخيده.

نرملا وويل: تا بايد په داسې حال کې ځان ته زحمت نه واى ورکړى.

- ما ګومان کاوه چې روغه شوې يم.

نرملا له لږ څنډ وروسته وويل: ما چې نه وليدې حيرانه شوم، نوم دې څه دى؟

- بي بي زما نوم ساوترې دى

-ستا کومه خور خو به دسومنات په درمسال کې نه وه؟

-نه!

- د سومنات په درمسال کې د يوې نجلۍ څيره کټ مټ تاته ورته وه، ته مې چې وليدې داسې راته ښکاره شوه چې هغې نجلۍ څيره بدله کړې ده او راغلې ده.

روپ وتي په ويريدلې لهجه وويل: په يوه څيره د دوو نجونو ليدل څه د ويرې خبره ده؟

نرملا ځواب ورکړ:

خبره اصلاً داسې ده چې هغه نجلۍ د درمسال ديوي شوه او بيا د ديوتا دربار ته ورسيده، هغه زما ډيره يادېږي

-او تا داسې وګڼله چې ستا يادونو هغه زما په څيره تاته راوستله.

- نه زه وويريدم.

روپ وتي د موسکی کیدو هڅه وکړه ویې ویل: اوس دې چې زه ولیدم ویریږي، خو به نه!
- نه خو ته به ژمنه کوې چې روغه شې زما لیدو ته به راځې.
روپ وتي ځواب ورکړ: خامخا به راځم.
نرملا لږ په بې پروایی د پتنوس څخه دسمال لرې کړ.
چې په یوه زرین ساړي (د هند او پاکستان د ښځو ځانګړې لباس) دپاسه یو د سپینو زرو ډبلي ایښې وه. هغې ډبلي خلاص کړ، کړې یې راوایستلې او ویې لیدې.
نرملا بیا وویل: خورې! تا ډیر زحمت ایستلی دی.
- زما امید دی چې ته به دخپلې یوې غریبې خور سوغات رد نه کړې.
نرملا کړې بیرته په ډبلي کې کېښودې او ویې ویل: ته باور وکړه چې زه دا ډیره غوره تحفه ګڼم، زما د ګانې د اغوستلو مینه نشته، خو ستا دا سوغات به تل راسره وي.

.....

روپ وتي غوښتل چې د رخصت اجازه واخلي چې د ځنګ دروازه خلاصه شوه او سردار رګونات راغی. روپ وتي زرجګه شوه او لاس په نامه ودریده.
سردار پوښتنه وکړه:
ساوترې ته کله راغلې؟
- باداره اوس راغلم.
- اوس خو دې صحت ښه معلومیږي، دا یې وویل او بیا یې نرملا ته مخ واړاوه ویې ویل:
دا زموږ د نوي سردار میرمن ده، ددې میړه له سره تیر شو او زموږ د راجه ژوند یې وژغوره.
د روپ وتي په څیره کې بیا د اندیښنې نښې راښکاره شوې، نرملا ته یې کتل ویې ویل:
اوس اجازه راکړه، زما صحت ښه نه دی.
نرملا وویل: ډیر ښه، اوس ولاړه شه، آرام وکړه، خو د بیا لیدو ژمنه دې هیره نه کړې.

روپ وتي سردار او میرمن ته یې د درناوي مراتب پرځای کړل او له کوټې ووتله، سردار د نرملا په مخکې په یوه کرسۍ کیناست، نرملا تر لږ سوچ وروسته وویل:

کله چې زه په سومنات کې وم هلته په محل کې یو ځوان اوسیده، یوه سپاهي راته وویل چې هغه راجه دیوه زمري له حملې نه ژغورلی دی.

سردار وویل: دا هماغه دی، ما اوریدلي دي چې راجه سومنات ته د تلو لپاره خپل پیل ورکړ او هلته زموږ په ماڼۍ کې اوسیده.

- نوم یې څه دی؟

- رام نات.

- ته ددې نجلۍ نوم پیژنې؟

- هوکې، نوم یې ساوتري دی.

- تاته یې کور معلوم دی؟

سردار ځواب ورکړ: رام نات راته ویلې وو چې سومنات ته له راتلو دمخه یې خپله میرمن د پلار کره پریښې وه، د ساوتري پلار د کالنجر په سرحد کې په کوم کلي کې اوسیده. کله چې د مسلمانانو پوځ د ګوالیار له فتحې وروسته د کالنجر په لور مخه کړه، نو د ساوتري پلار د سرحدي پوځ له څو ډلګیو سره د خپلې سیمې د دفاع په جګړه کې ووژل شو.

د ساوتري مور پخوا مړه شوې وه، د پلار له وژل کیدو وروسته یې یو وفادار نوکر ورسره ملګری کړ او د رام نات په لټون پسې راووته. ناڅاپه د سومنات د زیارت کووونکیو له یوې قافلې سره ملګري شول، هلته چې رام نات د کالنجر له وضعې خبر شو په ساوتري پسې ورغی دا ممکنه وه چې رام نات د کالنجر ځمکه ګز او پل کولی او ساوتري به په سومنات کې هغه لټاوه، خو بګوان پر هغوی مهربانه شو او له سومنات څخه دیرش ، څلویښت میله لرې دواړه سره مخ شول، رام نات سومنات ته د تلو پرځای انهل واړه ته د تلو اراده وکړه، خو په لاره کې یې میرمن ناروغه شوه، دوی چې کله دلته را ورسیدل د ساوتري وضعه ډیره خرابه وه، ځکه خو ما هغوی دلته ایسار کړل.

دغه افسانه رام نات د سردار او نورو خلکو له نظره د ځان پټولو په خاطر جوړه کړې وه.

خو له سردار څخه د ځو نورو خبرو له معلوموالو وروسته د نرملا شکونه بیا راتازه شول.

هغې ته دا خبره ثابته شوه چې رام نات هماغه ځوان دی چې دې په سومنات کې لیدلی و. خو د روپ وتي په اړه چې دې څومره فکر کاوه هومره یې اندیښنه زیاتیده.

سردار ترې وپوښتل:

ته په څه باره کې چورتونه وهې؟

نرملا ځواب ورکړ: هیڅ نه، زه پردې خبره حیرانه یم چې د ساوترې څیره کټ مټ هغې نجلی ته ورته ده چې ما دسومنات په درمسال کې لیدلې وه.

سردار وویل:

په دې کې د حیرانی خبره څه ده؟ په نړۍ کې د ډیرو انسانانو څیرې سره ورته وي.

نرملا وویل: خو ما چې دغه نجلی ولیده وویریدم تا به د سومنات د پالونکیو له خولې د هغې نجلی په باب اوریدلي وي چې د سومنات د دیوي له تاج پر سرولو سره سمه د دیوتا دربار ته ورسیده.

ما چې ساوترې ولیده، داسې مې ګڼله چې د درمسال دیوي په یوه نوي بڼه زما مخې ته راغله. خو چې کله مې له دې سره خبرې وشوې ویره مې ورو ورو ولاړه، او ما داسې احساس کړه چې روپ وتي چې د درمسال دیوې شوه، له دې نجلی څخه ډیره ښکلې وه. بیا هم زه دومره وارخطا وم چې دې نجلی ته مې د ځان لخوا هیڅ سوغات ورنکړ، هغې ماته ډیره ګرانبیه تحفه راوړې ده، دا وګوره! نرملا د سپینو زرو ډبلي اوچت کړ اوسر یې لرې کړ، سردار ته یې وړاندې کړ. سردار له ډبلي څخه کړی راوایستلې ویې کتلې او ویې ویل: دا خو ربښتیا ډیرې ښې دي، زه افسوس کوم چې ساوترې زموږ له کوره تش لاس ولاړه.

نرملا وویل: زما اراده ده چې پخپله هلته ورشم او خپل امېل ورکړم.

- دا خو به ډیر ښه کار وشي، زموږ لوی راجه رام نات زيات مهربانه دی، اوموږ یې باید د میرمنې عزت وکړو، د هغه کور ستا د پلار جان د کور ترڅنګ دی ته چې هر وخت وغواړې په ګاډۍ کې کښینه او ورشه.

- نو بیا سبا ته به خامخا ورشم زما اراده ده چې پلار جان مې هم ووینم اوبیا راشم.

- ډېر ښه، سردار دا وویل او له کوټې څخه ووت.

ماسپښین قضا وْ چې د نرملا سترګې وغړېدلې یوه خدمتګاره راغله ورته وېې ویل:

لږ د وخته سردار صیب راغی چې ته یې ویده ولیدې دایې مناسبه ونه بلله چې راویښه دې کړي. سردار صیب ته خبر راغلی دی چې د سومنات لوی پیشوا له لوی راجه سره د لیدو لپاره انهل واړه ته ځي ، سبا شپې ته به هغه دلته پاتې کیږي، سردار صیب د هغه د درناوي لپاره مخې ته ورغلی دی. هغه به د شپې له مذهبي پیشوا سره پاتې کیږي او تر سبا ماسپښین پورې به له هغه سره یوځای دلته راورسیږي.

. . . . .

سبا سهار ته روپ وتي په یوه کوټه کې ناسته وه چې خدمتګاره په منډه ورغله او له دروازې څخه یې د ننه ورو کتل او وېې ویل: د سردار صیب میرمن راغلې ده؟

د یوې شیبې لپاره د روپ وتي وینه په رګونو کې وچه شوه. بیا ورو ورو جګه شوه او په لړزیدلیو او بې واکه ګامونو د هغې د هرکلي لپاره له کوټې څخه راووته، په دې ځنډ کې نرملا برنډې ته رارسیدلې وه.

نرملا وویل : ستا صحت څنګه دی؟

هغې په لړزنده غږ ځواب ورکړ: ښه یم، راځه تشریف راوړه!

- نرملا له دې سره کوټې ته ننوته او وېې ویل:زه تا زیاته نه پریشانوم،

روپ وتي په ویریدلې لهجه وویل:

نه څنګه دا ګومان کوې چې زه به ستا په لیدو اندیښمنه شم.

راځه مهرباني وکړئ!

نرملا د روپ وتي خدمتګارې ته وکتل او وېې ویل:

ته ولاړه شه او دغه دروازه بنده کړه ، زه له دې سره یوازې څه خبرې لرم.

خدمتګاره بهر ته ووته او دروازه بې بنده کړه، روپ وتي نور هم په ویریدلې لهجه وویل:

د يوازې خبرو لپاره د شابله خونه ډېره مناسبه ده.
- راځه!

روپ وتي او نرملا د شا کوټې ته ولاړې، دغه کوټه لږ څه تیاره وه، نرملا او روپ وتي يو د بل مخې ته په کرسیو کيناستلې، نرملا په چوپه خوله روپ وتي تـه کـتل او د هغې زړه درزیـده، بالآخـره نـرملا له خپلې غـاړې امـيل راوکيښ او ويې ويل:

تا ته مې دغه تحفه هیره شوه، واخله!
- نه دا ستا په غاړه کې ډیر ښه ښکاري.
- زما سره نور هم ډیر دي، ښايي تاته دا معلومه نه وي چې زما واده له ګانو سره شویدی، دایې وویل او نرملا هار د روپ وتي په غاړه کې ورواچاوه.

تر څو شيبو دواړو په چوپه خوله يوې اوبلې ته کتل، بیا نرملا وويل:

تاتـه ښايي معلومه نه وي چې ما ډیره موده د سومنات په درمسال کې تیره کړې ده.

ماتـه اوس معلومـه شـوه چې ستا مېړه په هغـه ماڼۍ کې ؤ چې زه پکې اوسيدم.

روپ وتي داسې احساسوله لکه زړه يې چې دریږي.
نرملا له لږ ځنډ وروسته وويل:
زمـا پـه ګومان ما ستـا خاوند ليدلی دی، هلتـه د هغه يو دوست هم ؤ د هغه نوم رنبير ؤ.

روپ وتي په ډوبيدونکي غږ وويل:
زه .... زه پـوره ډاډ درکوم چې زه کله سومنات ته نه يم تللې، زه له کالنجر څخه د هغـه پـه لټون پسې راووتم، زمونږ کاروان لا له سومنات نه ډیر میله لرې و چې هغه مې پیدا کړ، زه ناروغه وم ځکه هغه زه دلتـه راوستم.

نرملا وويـل: مـا خو دا نه دي ويلي چې ته هلته تللې وې، خو زما ګومان دی چې ستـا مېړه به کله د رنبير نوم درته یاد کړی وی، زه غواړم د هغه په اړه ډير څه واورم.

روپ وتي خپـل لویدونکي زړه ته د تکيې ورکولو هڅه وکړه، ويې ويل: تر اوسه هغـه ماتـه پـه دې نامـه د کوم دوست یادونـه نده کړې، خو زه وعده کوم

چې کله هغه راشي، ئو خامخا به پوښتنه ترې وکړم.

- نه، نه ته هغه ته داسې مه وايه چې ما د رنبير په باب پوښتنه کړې ده، د بګوان لپاره داسې ونه کړئ

- ښه ده پوښتنه به نه ترې کوم.

- ستا ميړه به څه وخت راشي؟

- د اوو شپو په وعده تللي دی، خو زما باور دی چې زر به راشي.

نرملا جګه شوه ويې ويل: ښه ده، زه اوس ځم. روپ وتي لاس په نامه ودريد، داسې يې احساسوله چې يو لوی مصيبت يې له سره تير شو.

نرملا دوو ګامونو اخستلو وروسته ناڅاپه ودريده او روپ وتي ته يې مخ راواړاوه، روپ وتي يو ځل بيا په زړه کې دناخوښی درزا احساس کړه.

نرملا وويل: نن پاتې ورځ زما په کور کې پاتې کيدل ضروري دي که نه نو تر ماښامه به مې مجلس درسره کړی و.

ته ولې نه راځې، راځه له ماسره ولاړه شه، دلته به يوازې څه وکړې! دواړه به په ګاډی کې ولاړې شو، نن زموږ کور ته د سومنات لوی پيشوا راځي، زه به ورته ووايم چې ستا د صحت لپاره دعا وکړي، راځه!

د روپ وتي له لړزيدونکيو شونډو نه نه، نه! ... غږ ووت او دا د بې روحه شي په څير درز په غولي راوغورځيده.

نرملا يوه شيبه حيرانه ودريده، بيا يې برنډې ته منډه واخسته او خدمتګارې ته يې غږ کړ.

لږ ځنډ وروسته چې کله روپ وتي راپه خود شوه، پر بستره پرته وه او نرملا يې سرته ناسته وه او د دې پر مخ يې اوبه شيندلې، د بوډۍ خدمتګارې نه پرته څلور ښځې چې دوې له نرملا سره راغلې وې او نورې د حويلی د نوکرانو ميرمنې وې د دوی شاوخوا ته راټولې وې.

روپ وتي د نرملا پر څيره سترګې ښخې کړې، نرملا په هغو چوپو کتو کې د هغه بې ګناه مجرم فرياد اوريده چې پر سر يې د جلاد توره پړکيږي.

هغې نورو ښځو ته وويل:

د کمزورۍ په وجه يې سر وګرځيد اوس دلته ستاسو يوې ته هم ضرورت نشته.

روپ وتي د لاس په اشاره د نرملا خبره تایید کړه او ټولې ښځې بهر ته ووتې، بیا دا ناڅاپه راپاڅیده کیناستله او ویې ویل: اوس ته غواړې څه وکړې؟

د نرملا پاتې شکونه هم ختم شول ویې ویل:

روپ وتي ! ته باید له مانه دومره ونه ویرېږې.

د روپ وتي سترګې یو ځل بیا د نرملا پر څیره ښخې شوې ، څه شیبه وروسته ناڅاپه ورټیټه شوه خپل سر یې د نرملا په پښو کې کیښود او ویې ویل:

نرملا ! د ځان لپاره نه، د رام نات لپاره د رحم خیرات غواړم.

که زما نه څه ګناه شوې ده ، نو د هغې سزا خو رام نات ته باید ورنکړل شي. د بګوان لپاره ما مذهبي پیشوا ته د سپارلو پر ځای په خپلو لاسو زندی کړه، بیا خو ما څه ګناه هم نه ده کړې ته دا نشې ویلی چې یوې ښځې ته دخپل عزت ژغورل ګناه ده.

روپ وتي سلګۍ وهلې، نرملا هغه په غیږ کې ونیوه راپورته یې کړه او سر یې په خپله غیږه کې ونیو ویې ویل: زما خورې! زه به ستا لپاره خپل ځان قربان کړم، خو ماته ووایه آخر دا څه راز دی؟

روپ وتي وویل: دا پوښتنه مه کوه نرملا!

د بګوان لپاره دا پوښتنه مه کوه. ستا به هم زما پر خبرو باور رانشي. د رښتیا خیره به تاته دومره ویروونکي وي چې زما د غوښو شکولو ته به چمتو شې، کوم څه چې زما سترګو لیدلي دي هغه به ستا غوږونه زغملی شي، ته به ما لیونۍ وبولې، ما به دښمن وګڼې.

- تاته په هر بګوان سوګند درکوم چې له مانه هیڅ خبره مه پټوه، زه به ستا مرسته وکړم، که ټوله نړۍ تا دروغجنه وبولي بیا به هم زه ستا پر خبره باور وکړم.

روپ وتي د نرملا پر څیره سترګې وګنډلې او خپله کیسه یې پیل کړه. د روپ وتي د کیسې له پای ته رسیدو وروسته چې نرملا په وار وار هغې ته له تسلي ورکولو وروسته بهر ته راووته ، نو د خیالونو په نړۍ کې یې یو توپان راالوتې و.

د سومنات په اړه د مینې او عقیدت جذبات چې دې خپله وروستۍ تکیه بلله په کرکه او حقارت بدل شوي وو.

د بوډا سردار سره له واده وروسته دا د ژوند له خوښیو او هیلو ډکه په څنګ شوې وه ، د خپل پلار پر هیلو یې چې ځان قربانولو، نو یو ډاډ یې دا و چې زما په دې قربانۍ به دیوتا خوښ شي.

زما د ژوند غمجنې شیبې به د هغه په یاد آبادې وي، زه به د هغو پنډتانو او مذهبي مشرانو چې شپه او ورځ د دیوتاګانو په یاد کې بوخت دي نمانځنه او درناوی کوم.

زه به د سردار په مال او شتمنۍ د غریبانو او بې وسو خدمت کوم، دیوتا به راڅخه خوښ وي او له مرګه وروسته به زما بیا زیږېدل له دې ژوند ښه غوره وي، خو د روپ وتي له داستان اورېدو وروسته ددې د ښایسته خیالونو نړۍ هم ویجاړه شوې وه، د دې حال او راتلونکي یو وچ او سپېره بیابان و او د تیرو وختونو لوري ته ورګرځېدل ورته له امکان څخه وتلي وو.

دا هغه مساپر ته ورته وه چې د ټولې آذوقې له ورکولو وروسته لاره غلطه کړي.

له ماښۍ څخه بهر په زرګونو تنه د مذهبي پیشوا د هرکلي لپاره راټول شوي وو ، د نرملا ګاډۍ چې هغوي ولیده یوې او بلې خواته شول او ګاډۍ مخې ته ورسیده چې نرملا له ګاډۍ څخه راکوزه شوه، زیاتو ښځو په خپل منځ کې کړه او دې ته ناکرارې وې چې مذهبي پیشوا به کله راځي، خو نرملا هغوی ته له خه ځواب ورکولو پرته ګړندي ګامونه واخستل د ماښۍ پوړ یوې کوټې ته ننوته دیوازې توب او بې وسۍ یو توند احساس یې په سترګو کې د اوښکو یو سیلاب راوخوټاوه.

دې په خپل زړه کې ویل:

رنبیره! ته دې د خپلې خور لپاره دنړۍ خوښې قربانولۍ شې، ته دیوه دوست لپاره خپل ژوند په خطر کې غورځولی شې، تا زما پلار د خپل پلار قاتل باله او هغه وخت دې بخښلو چې خنجر دې د هغه پر غاړه ایښی و، ته د روپ وتي او کامني د ژغورنې لپاره له خپل سر سره لوبیدلی شوای، خو ستا نظر زما د زړه تل ته ونه رسید، ته زما زاریو او اوښکو اغیزمن نه کړې، تاته

به دا هيڅکله هم معلومه نه شي چې اوس يوازې ستا ياد زما د ژوند وروستۍ تکيه ده.

کاشکي تا زما اوښکې ليدای شوای، زما آهونه دې اوريدای شوای، کاشکي تاته معلومه وای چې زه تر روپ وتي څو ځله زياته بې وسه او مجبوره يم.

يوه نوکره کوټې ته ورغله او د ډوډۍ په اړه يې ترې وپوښتل ، خو نرملا وويل:

اشتها مې نشته. لږ ځنډ وروسته بله خدمتګاره راغله ويې ويل چې د ښار د څو عزتمندو کورنيو ښځې درسره ګوري، خو نرملا هغې ته ځواب ورکړ چې په سر مې درد دی.

خدمتګارې وويل: که امر کوئ، طبيب راولم.

نرملا په غوسه ورته وويل: زما طبيب ته ضرورت نشته ، ورشه ټولو نوکرانو ته ووايه چې تر څو مو زه پخپله راونه غواړم يوه هم زما کوټې ته رانشي.

* * * * *

لمر لويدو ته نژدې له ماښې څخه بهر ، تل دې وي سومنات! ژوندی دې وي مذهبي پيشوا! نارې اوريدل کيدې، نرملا خپله کړکۍ خلاصه کړه ، بهر ته يې وکتل د ماښۍ له ځلورو ديوالونه لږ لرې په ميدان کې د ډيرو راټولو شويو خلکو نه وړاندې پنځوس شپيته تنه سپاره ښکاريدل ، پر هغوی پسې د پنځلس ، شل پيلانو يو کتار و . تر ټولو دمخکې پيل زرينه کجاوه د لمر په وروستيو وړانګو کې ليده. دماښۍ له دروازې څخه لږ ليرې د سپرو ډله يوې خواته شوه او خلکو د ليونيو په څير چيغې وهلې او تر ټولو د مخکيني پيل په لور ورمات شول.

د پيل تندی پر غميو او جواهرو پټ و په غاړه کې يې درond طلايي زنځير و چې يو زنګ پرې ځړيده. د طلايي کجاوې په شاوخوا په غميو ښکلي شوي پردې ځړيدلې وې، په کجاوه کې د سومنات لوی مذهبي پيشوا ناست و پر نورو پيلانو د سومنات نور پالونکي سپاره وو. او په هغوي پسې د سپرو يوه بله دسته ښکاريدله.

لږ ځنډ وروسته مذهبي پيشوا د سردار رګونات سره انګړ ته ننوت په دې پسې خو د سومنات پالونکي او د ښار مخور وو، په انګړ کې راټولې ښځې وړاندې ورتلې او د هغه پښې يې ښکلولې.

د نرملا له خولې ناڅاپه ووتل: دوکه، دروغ او ټګي... او بيا راغله پر کرسي کيناستله.

چې د ښځو جوش او بيروبار پای ته ورسيد، نو سردار دلاس په اشاره خلک چوپتيا ته وبلل او په لوړ غږ يې وويل: مذهبي پيشوا ډير ستومانه دی. هغه به سهار په تياره کې له دې ځايه روانيږي، ځکه خو اوس آرام ته اړتيا لري، له لوی راجه سره تر ليدو وروسته چې بيرته راستون شي، نو دلته به دوې- درې ورځې پاتې شي او تاسو ټول به يې د درناوي او احترام وخت ولرئ، ځکه خو اوس خپلو خپلو کورونو ته ستانه شئ.

نرملا تر ډيره پر کرسی ناسته وه، په کوټه کې تياره خپره شوه، يوه خدمتګاره يې کوټې ته ورغله او چراغ يې بل کړ ويې ويل: تا د ورځې هيڅ نه دي خوړلي، که اجازه وي ډوډۍ دې راوړم.

نرملا وويل: هوکې رايې وړه! سردار صيب خو به زما پوښتنه له چا څخه نه وي کړې؟

- نه ، هغه تراوسه پاس نه دی راختلی.

- ټول ميلمانه به همدلته پاتې کيږي؟

- نه بي بي! يوازې مذهبي پيشوا او څو پالونکي به دلته پاتې کيږي، نور ټول ميلمستون ته تللي دي.

- ښه ته اوس ډوډۍ راوړه.

لږ ځنډ وروسته نوکرې ډوډۍ راوړه، نرملا څو نمړۍ وخوړه او بيا کيناسته ، تر لږ ځنډ وروسته يې ستوماني احساس کړه، جګه شوه ، بلې کوټې ته ولاړه اوپر پالنګ پريوته.

لږ ځنډ وروسته سردار کوټې ته ورننوت او له ګيلې څخه په ډکه لهجه يې ورته وويل:

نرملا ته د مذهبي مشر د درناوي لپاره خامخا بايد لاندې راغلې واې.

نرملا جګه شوه کيناستله او وې ويل:

زما پر سر درد وُ، بیا د دومره خلکو مخې ته په ورتلو زه شرمیږم
د ښار خلك خو ما هماغه وخت رخصت کړل، اوس به پیشوا له ډوډۍ خوړلو وروسته په خپله کوټه کې یوازې وي، ما یوازې ستا پلار جان راایسار کړی دی.
د مذهبي پیشوا پښې ښکولول ستا فرض دي، هغه پخپله ستا په باب پوښتنه وکړه، هغه چې تاووینې ډیر به خوښ شي، زه لږ ځنډ وروسته تا ورولم.
سردار د نرملا د ځواب له اوریدو پرته ووت.
مذهبي پیشوا ته له ډوډۍ ورکولو وروسته سردار بیا راغی او نرملا بېله دي چې څه ووایي ورسره روانه شوه.
په لاندې پوړ کې په روښانه کوټو کې څو چاغ چاغ سرخریلي پنډتان په ټوکو ټکالو بوخت وو او د سردار نوکران د هغوی د خدمت لپاره ولاړ وو، د پیشوا تر کوټې پورې چې نرملا څو رسیدله، د کرکې توپان یې په زړه کې اوج ته رسیدلې وُ، هغه په یوه زرینه کرسۍ پلتی وهلې ناست وُ، جی کرشن یې په مخکې په یوه بله کرسۍ په ادب سرځوړند ناست وُ نرملا څو شیبې چوپه او بې حرکته ولاړه وه، بیا یې د سردار د اندیښنې د زیاتیدو نه بې پروا غوښتل د پیشوا پر ځای د خپل پلار پر پښو ورټیټه شي، جی کرشن هغه تر متو ونیوه، زر جګ شو او دا یې پیشوا ته ورتیل وهله وې ویل:
د لوی بادار، لوی پیشوا پښې ښکل کړه! راجه ګان او پاچاهان ټول دده د دروازې ګدایان دي، نرملاله مجبورۍ او بې وسۍ نه خپل ریږدیدونکي لاس دمذهبي پیشوا پر پښو کیښود، او هغه په بې پروایی یو لاس ددې پر سر راتیر کړ او وې ویل:
ښاده اوسې لورې!
نرملا جګه شوه ودریده، سردار ډاډ منه ساه واخسته، وې ویل: نن ددې طبعه ښه نه وه.
مذهبي پیشوا یوې تشې کرسۍ ته اشاره وکړه ویې ویل:
سرداره کښېنه! ته هم کښېنه لورې!
نرملا شاته شوه او دخپل پلار تر څنګ کښناستله او سردار له هغې سره په څنګ کې په بله کرسۍ کیناست ، سردار وویل: باداره! نرملا هره ورځ ته

بادولې ، پیشوا د نرملا پر مړاوې ځیره سترګې ښخې کړې ویې ویل:
خو نن داسې ښکاري چې دا زما په لیدو وویریده.
سردار ځواب ورکړ:
باداره! کله کله د دیوتاګانو مینه د پالونکیو په زړونو کې ویره هم پیدا کوي، او نرملا خو په هره خبره ویریږي، آبل پرون یوه عجیبه پیښه وشوه زموږ د یوه نوي سردار میرمن له یوې مودې راسې ناروغه وه، وړمه ورځ یې نرملا ته یوه تحفه راوړه او راغله.
کله چې ما دا ولیده، نو رنګ یې الوتی ؤ، ما...
نرملا د ډیرې اندیښنې او ویرې په حالت کې سردار ته وکتل او دخبرو دموضوع بدلولو په خاطر یې ویل: اوس بادار ته د آرام ضرورت دي تاسو یې اوس...
پیشوا په ډاډ وویل: نه سردار صیب پریږده چې خبره یې وکړي.
د نرملا زړه ولوید، سردار وویل: ما له دې وپوښتل چې ته ولې دومره پریشانه یې؟
وې ویل: دغه نجلۍ چې دا اوس راغلې وه د سومنات هغه دیوي ته ورته وه چې په لومړۍ شپه د دیوتا دربار ته ورسیده او په ټول ملك کې مشهوره شوه.
پر مذهبي مشر سکته راغله، خو له نرملا پرته دهغه د زړه په سهي کیفیت څوك نه پوهیدل، سردار خپلو خبرو ته دوام ورکړ وې ویل: باداره!
په دنیا کې د ډیرو خلکو ځیرې یوبل ته ورته وي او چې څوك یې ووینې دوکه پرې وخوري، خو د نرملا پردې خبره پوره باور راغلی ؤ چې هغه د درمسال دیوې ده اوپه یوه نوي ځیره دې ته راغلې ده.
خو چې کله ما بیا وپوهوله چې ددې نجلۍ نوم روپ وتي نه دی، ساوتري دي او له سومنات څخه نه، بلکې له کالنجر څخه راغلې ده، نو په ډیر زحمت دهغې بدګوماني لرې شوه.
جی کرشن ناځاپه مذهبي پیشوا ته وکتل او په وارخطایي یې وویل: څه خبره ده باداره! ستا طبیعت خو به ښه وي؟
د پیشوا په وچو کلکو سترګو کې د ژوند علامې راښکاره شوې او په

کمزوري غږ يې وويل:
زه ښه يم، زه بلکل روغ يم، تاڅه وويل، دا چې د کومې نجلۍ خيره روپ وتي نه ورته وه؟
- نه باداره! نرملا شکمنه وه او هغه ويريدلې وه.
- ډيره ښه ده، نرملا به روپ وتي په سومنات کې ليدلې وي، خو په دې کې د ويرې څه خبره ده، ډيرې ځيرې يو بل ته ورته وي.
- هوکې باداره! کله چې ما دا وپوهوله بيا يې پخپله دا ومنله چې دغه نجلۍ له روپ وتي څخه توپير لري.
-او هغه نجلۍ همدلته اوسي؟
- هوکې باداره!
- له خپل ميړه سره!
- هوکي باداره ، خو د هغې خاوند نن سبا په ختيځ سرحد کې دخپلو ځمکو د ليدلو لپاره تللي دي، نجلۍ دناروغۍ په سبب د سفر وړ نه وه، ځکه يې هغه همدلته پريښوده.
- کله يې واده شوي دي؟
- پردې زه سم خبر نه يم، خو د نجلۍ ميړه ويل چې د سومنات د زيارت نه دمخه يې واده شوی دی.
- نو هغه ددې ښار اوسيدونکی نه دی؟
نه باداره! هغه د قنوج اوسيدونکی دی، کله چې هغه د سومنات په لور تلو ، نو په لاره کې زموږ لوي راجه په ښکار کې ورسره مخ شوی ؤ، هغه د راجه ژوند ژغورلي ؤ، راجه يې ډير عزت کوي.
- ډير ښه ، دداسې سړي بايد عزت وشي، نوم يې څه شی دی؟
- رام نات.
د نرملا د صبر کاسه په تويېدو شوه، خو بيا يې هم خطر پر سر وليد ، د دفاع حس يې را ويښ شو ، هغې وويل: باداره!
سردار صيب پرما خاندي ، خو که تاسو هغه نجلۍ وليده، نو له معمولي توپير پرته به روپ وتي درته ښکاره شي، هغه معمولي توپير له لرې نه له ډير نژدې نه ليدل کيږي.

که تاسو ایساریدای ، نو ما به سهار درته رابللې وه ، پیشوا یوه سرسري خندا وکړه ویې ویل:
مور ته د لیدو هیڅ اړنیا نشته. مور پوهیږو چې په نړۍ کې یوازې یوه روپ وتي وه، اوس ته ورځه آرام وکړه، جي کرشن ته هم ولاړ شه، سردار صاحب ته لږ تم شه.

.....

نرملا پردې وپوهیده چې مذهبي مشر سردار ته څه وایي. له هغه ځایه دې نه د سردار د راایستلو لپاره یوازې تدبیر په نظر ورغی. له کرسۍ پاڅیده دوه درې ګامه یې واخستل او بیا ناڅاپه پر ځمکه کیناسته او سر یې په دواړو لاسونو ونیو.
سردار وویریده جګ شو. جي کرشن په منډه ورغی دایې تر مټ ونیوه او ویې ویل:
څه درباندې وشول لورې!
سر مې را باندې وګرځیده. سر مې له درده چوي. نرملا په زګیروی وویل:
سردار صیب هم وویریده وراندې ورغی. هغه د نرملا دوهم مټ ونیو ، پیشوا نه یې وکتل او ویې ویل:
زه به دا پاس ورسوم بیرته راځم
پیشوا ځواب ورکړ. هوکې ولاړ شه او ګوره د ویرې هیڅ خبره نشته . زه به یې لوی دیوتا ته سپارښت وکړم.
نرملا دجي کرشن او سردار رګونات په مرسته له کوټې راووته. داسې یې ښودله چې پردې د بې هوښۍ دوره راځي، خو چې زینو ته نژدې شوه د ځان راسنبالولو هڅه یې وکړه، څو زینې چې وختل جی کرشن لږ ډاډه شو سردار ته یې وویل:
سردار صیب زه به دا پاس وخېژوم ، ته د کوم طبیب بندو بست وکړه:
هغه وویل: زه یې اوس راغواړم او بیا ښکته کوز شو.
نرملا ناڅاپه د خپل پلار لاس ونیو ویې ویل:
پلار جانه زر پاس راځه! زه یوه ضروري خبره درسره کوم.
جی کرشن په ډیره وارخطایي په زحمت له دې سره په تګ کې ځان

برابراوه. نرملا هغه یوې کوټې ته بوتلو او دروازه یې بنده کړه ویې ویل: پلارجانه!

ما همدا اوس له ځانه سره کورته بوزه!

دا زما دمرګ او ژوند خبره ده. د بګوان لپاره سردار صیب پاس راوغواړه او ورته ووایه چې د ډاکټر راغوښتلو ته اړتیا نشته ، پر ما څو ځلې دغسې سرخوږ راغلی دي او دوایې زموږ په کور کې ده. خو نوکر یې ښایې پیدا نکړای شي، که ته هره پلمه ورته کوي، خو ما خامخا د٭سره بوزه. که نه نو سبا ته به زما مړی ګوري.

- مګر لوري ته خو راته ووایه!

نرملا دروازه خلاصه کړه ویې ویل: د بګوان لپاره!...

اوس له ما نه هیڅ مه پوښته. زما باور دي چې بهر ووزو ، زه به دې تسلې وکړم. د بګوان لپاره ورشه.

د جی کرشن پریشاني اوس په خفګان بدله شوه. له کوټې نه ووت او ګړندي د زینو په لور ولاړ.

په برنډه کې ځای ځای مشالونه بل وو.

هغه لا له زینو نه څو ګامه لرې و؛ چې سردار یې ولید.

هغه ترې وپوښتل: چیرته ځې؟

زه ستا لپاره درتلم. د نرملا حالت اوس لږ په ښه کیدو دی، سردار داډمنه ساه واخسته ویې ویل: ما په ډاکټر پسې سړی واستاوه اوس به راورسیږي.

جی کرشن وویل: زما په ګومان خو هغه سړي بیرته راوغواړه. نرملا پخوا هم څو ځلې له دې تکلیف سره مخ شوې ده. ما له یوه طبیب څخه دې ته دوا اخستې وه چې دهغې دوا په سبب سمدستي خوب پرې راځي، نرملا راته وویل چې د هغې دوا څو ګولۍ په کور کې دي سمبال کړې وې.

سردار وویل: نو ته سمدستي ورشه او هغه ګولۍ راوړه.

جی کرشن وویل: زه ویریږم چې په تلو راتلو او دوا پیدا کولو کې به ځنډ وکړم. نرملا ویل چې دوا مې په کوم صندوق کې ایښې ده. اوس ماته معلوم نه دی هغه په کوم صندوق کې ده. ځکه خو زه غواړم چې نرملا راسره بوزم.

اوس ددې وضعه لږه ښه ده. خو یو دوه ساعته وروسته بیا پرې د دورې

راتلو اندیښنه ده. ځکه خو ضروري ده چې سمدستي يې کورته راسره بوزم، که دوا پيدا شوه چې ويې خوري، سمدستي به پرې ويده شي. که نه وي د طبيب کور موږ ته لنډ دی هغه به ورته راوغواړم. زما دي ته هم پام دی چې مذهبي پيشوا تاته انتظار کوي ځکه خو ماته اجازه راکړه.

تاته د اجازې اړتيا نشته، ته نرملا تياره کړه، زه همدا اوس د ډولۍ بند و بست کوم.

له پيشوا سره تر لږو ډيرو خبرو اترو وروسته به زه پخپله هم ستا کره درشم او ددې احوال به واخلم.

جی کرشن وويل: ته ډير ستومانه يې، که ضرورت و، زه به پيغام درته رااستوم که نه ته دې آرام وکړه.

- که دا آرامه شوه هم ماته احوال راکړه. اوس زه لاندې ځم ډولۍ تياروم. ته نرملا لاندې راکوزه کړه.

لږ خند وروسته نرملا په ډولۍ کې کيناسته او دخپل پلار د کور په لور روانه شوه. جی کرشن پلی ورسره روان وي.

.....

د خپل کور درشل ته نژدې جی کرشن نوکر ودراوه او د دروازې د خلاصولو لپاره ورانديې ولاړ. خو نرملا غږ پرې وکړ چې پلاره د ډولۍ د ننه ورو ته ضرورت نشته. زه همدلته ښکته کيږم.

جي کرشن مخ راواړاوه ويې ويل:

ښه ده دلته يې کوزه کړئ اوتاسو بيرته ورځئ!

کله چې نوکرانو ډولۍ کوزه کړه، نرملا ترې ښکته شوه، هغوی تشه ډولي بيرته په اوږو کړه، جی کرشن په جيب کې لاس کړ څو طلايي سکې يې ورته ونيوې او ويې ويل:

دا پخپلو کې وويشئ!

نوکران په تياره کې ورك شول او نرملا خپل پلار تر لاس ونيو تر درشل يې لرې بوتلو او ورته ويې ويل:

موږ بايد خپل کورته تر ننوتلو دمخه بايد ډير فکر وکړو

جی کرشن وويل: اوس راته صفا ووايه ته څه غواړې؟

نرملا وویل:

پلار جانه! ما د نا لپاره ځان قربان کړ.

ما په خپل زړه کې ژمنه کړې وه چې ددې په بدل کې به هیڅ هم نه درنه غواړم. خو نن ستا په مخ کې ځولي غوړولو ته مجبوره یم. د ځان لپاره نه د یو بل چا لپاره! زما د یوې وړوکې غلطۍ په سبب دوه انسانان د مرګ خولې ته لویدلي دي، ته هغوی ژغورلي شې، خو که تا څه ونه کړل. نو ته به ما دهغوی د اور انبار ته له ورکوزیدو ایساره نکړای شې.

- ته د رام نات او دهغه د میرمنې په باب څه وایې؟

-هوکې، ساوتري هماغه دیوي ده چې د سومنات په درمسال کې یې روپ وتي بلله.

- ستا مطلب دادی چې روپ وتي ژوندۍ ده؟

- هوکې. او اوس چې پیشوا ته معلومه شوه چې هغه په دې ښار کې ده، نو ژوندۍ به یې پرې نږدي. اوس به هغه له سردار سره مشوره کوي. د خبرو وخت نه دی. موږ باید هغه نجلۍ له کوره راوباسو. او رام نات ته هم باید دغه پیغام ورسوو چې ژوند یې په خطر کې دی.

ما د روپ وتي کیسه اوریدلې ده او زه تاته داد درکوم چې که پیشوا له ماسره هغه سلوك کاوه چې له روپ وتي سره یې کړي دي. نو ته به د سومنات د درمسال د سوځولو لپاره چمتو شوی وې.

روپ وتي د دیوتا دربار ته ونه رسیده. بلکې له پیشوا نه یې خپل عزت وساته او دلته راغلې ده او دا هغه دیوتا ژغورلې ده چې د خپل پلار د قاتل پر غاړه یې د خنجر له ایښودلو وروسته هغه وباښه...

چې له مانه یې د خپلې خور د بدل اخستلو پر ځای خوندي تاته راواستولم.

پلارجانه! تاته په ژوند کې د نیکۍ یو فرصت برابر شوی دی. دا له لاسه مه ورکوه. زه هغه دلته راولم، ته آسونه تیار کړه. یو نوکر ورسره واستوه او یو بل رام نات ته واستوه. زه به روپ وتي راوغواړم.

نه نه! جی کرشن د نرملا مټ ونیو او ویې ویل: ته نشې تلای. د هغې نوکر به تا وپیژني او که ته روپ وتي راوباسې هم. نو د نړۍ هیڅ خواك به

يې د مذهبي پيشوا له کسات نه ونه ژغورلی شي.

- پلار جانه! د بګوان لپاره ما مه ايساروه!

که ما روپ وتي ونه ژغورلی شوای، نو تولې نړۍ ته به ووايم چې هغې ته يې د کومې ګناه سزا ورکړه. زه به د سردار او راجه په مخکې د پيشوا له ګناه نه پرده پورته کړم.

زه پوهيږم چې هغه به مې غوښې وشکوي، خو زه دې ته تياره يم.

جی کرشن وويل: ته روپ وتي چيرته استول غواړې؟

د هغې لپاره په قنوج کې د رنبير له کوره پرته بل د پناه ځای نشته، دې ته يوازې تر سرحد تيريدو پورې خطر دی.

جی کرشن وويل: زه پياري لال له هغې سره استولی شم.

خو اوس د هغې له کوره راايستل آسانه خبره نه ده. زه ددې نوکرانو ته د دوکې په خاطر د يوه عام سپاهي په بڼه ددې کور ته تلو ته چمتو يم. زه به نوکرانو ته ووايم چې رام ناټ له يوه پيغام سره رااستولی يم.

خو د دې به په څه باور راشي چې زه د دې د ژوند ژغورلو په خاطر راغلي يم؟

نرملا له خپل لاس څخه کړې راوويستې. جی کرشن ته يې ورکړې او ويې ويل:

د دې کړو د ورښودلو نه وروسته چې ته کومه خبره ورته وکړې. دا به يې ومني. دا هغې ماته راکړې دي. زه به له کوره بهر ولاړه يم.

جی کرشن کړې ورسره واخستې او ويې ويل:

اوس ته زما سره راځه، لومړی زموږ خپل کور ته تګ ضروري دی، بګوان دې وکړي چې اوس موږ ته لږ وخت په لاس راشي.

دوی ګړندي ولاړل او جی کرشن په درشل کې پهره دار ته غږ وکړ، هغه دروازه خلاصه کړه، د درشل دننه مشال بليده، جي کرشن دننه ووت. له پهره دار نه يې وپوښتل:

پياري لال چيرته دی؟

- باداره لکه چې ويده شوی دی.

اوس ويده شوی دی، ورشه هغه راويښ کړه او دلته يې راواستوه، او

پرځای یې تـه نـن ویده شه. هغه به دلته پهره وکړي، گوبند رام هم دلته راواستوه.

- ډیر ښه باداره! پهره دار دا وویل او ولاړ.

جي کرشن نرملا ته وکتل ویې ویل:

ته زر د ننه ولاړه شه کوم پخوانی شال دې راوړه.

نرملا په منډه دننه ولاړه او لږ ځنډ وروسته یې چې یو سوری سوری او زوړ شال یې پر سر وُ بیرته راووته. جي کرشن له پیاري لال سره د خپلو جامو له بدلولو وروسته د هغه زړه او خیرنه لونګۍ پر سر وتړله او بل نوکر گوبند رام په حیرانۍ ورته کتل.

نرملا په ناکراری وویل: دزځئ پلار جانه! ډیره ناوخته شوه.

جی کرشن نوکرانو ته وکتل ویې ویل:

موږ د لږ ځنډ لپاره بهر ته ځو،تاسو درې آسونه زین کړئ او د یوه اوږده سفر لپاره ځانونه چمتو کړئ.

نورو نوکرانو تـه بـاید دا معلومه نه شي چې تاسو چیرته ځی. که د طبیلې خواته کوم نوکر وي. نو هغه بل لوري ته واستوئ.

جی کرشن له نرملا سره بهر ته ووت. او نوکرانو په ډیره وارخطایی یو بل ته کتل

پیاري لال د جی کرشن په پخوانیو نوکرانو کې یوازینی سړي وُ چې د مصیبتونو په وخت کې یې هم د هغه ملګرتیا پرې نښوده . دهغه نور ملګري یو یو تري ولاړل او دوی یې پریښودل، د وطن یا د هغه هم پریشانه کاوه. خو د رنبیر ویري د هغه مخه نیولې وه.

د رنبیر له کلي ځخه لږ لرې دده د ورور او ځو نورو خپلوانو کورونه وو. او ده په دی تمه د جی کرشن ملګرتیا کوله چې کومه ورځ به بیا خپله سیمه ونیسي، او ده ته به خپل کلي ته دتلو لاره برابره شي.

گوبند رام په گوالیار کې دنرملا د ماما نوکر وُ او نرملا هغه له ځانه سره راوستلی وُ.

# مرستندوی

روپ وتی پرخپله بستره پرته وه. خو خوب یې له سترګو تښتیدلی و.
نوکره یې کوټې ته ورننوته او ویې ویل:
تراوسه پورې نه یې ویده شوې؟
روپ وتي ځواب ورکړ: ما ته خوب نه راځي.
- ډیوه مړه کړم؟
- نه نه. زه یې پخپله مړه کوم.
- دڅه شي ضرورت خو نشته؟
- نه نه ، ورځه ویده شه!
خدمتګاره د څنګ بلې کوټې ته ولاړه. روپ وتي لږ ځنډ وروسته د هغې خرهار اوریده. دا تر ډیره پر بستره پرته وه چې ناڅاپه یې بهر په انګړ کې د چا د خبرو غږ واورید او راجګه شوه. کیناستله. داسې یې احساسوله چې پهره دار له چا سره خبرې کوي. په بیړه راجګه شوه او له دروازې سره یې غوږ ونیو. لږ ځنډ وروسته یې په دهلیز کې د چا د پښو غږ واورید. دې په ویریدلی غږ وویل: څوك یې؟
د پهره دار غږ اوچت شو: تراوسه پورې ویښه یې دیوې!
- هوکې څه خبره ده!
پهره دار وویل: بهر یو سړی ولاړ دی او وایې چې د سردار رام نات پیغام مې راوړی دی.
روپ وتي په بیړه د دروازې زنځیر خلاص کړ. بهر ته راووته ویې ویل سړی پیغام راوړی او تا تر اوسه پورې بهر ایسار کړی دی؟
- په دې وخت کې د چا دننه راوستلو لپاره ستا اجازې ته اړ وم.

- هغه یوازې دی.
- هوکې! هغه دا هم وایي چې د سردار پیغام یوازې ستا لپاره دی.
- ښه ده، راېې وله. خو ګوره هوښیار اوسه
- ته غم مه کوه.
پهره دار دا وویل او بهر ته ولاړ. لږ ځند وروسته چې بیرته راغی، نو له هغه سره یو بل سړی هم و.
روپ وتي د دهلیز له یوې ستنې سره ولاړه وه. نا آشنا سړي له څه مقدمې پرته وویل:
زه سردار رام نات رااستولی یم او تاته یې یو ضروري پیغام راکړی دی. له ښار نه څو میله لرې زما آس له ستومانۍ څخه مړ شو، که نه له ماښام څخه د مخه به دلته را رسیدلی وم.
- هغه به کله راځي؟
- ډیر زر به راشي.
- هغه څه احوال رااستولی دی؟
نا اشنا سړی پهره دار ته مخ وراړاوه او وې ویل: ما ته د چا د وړاندې د خبرې اجازه نشته.
د روپ وتي په اشاره پهره دار د بهرنی درشل په لور ولاړ. او نا آشنا سړي یوې او بلې خواته وکتل .له خپل جیب څخه یې دوې کړې رااویستلې او روپ وتی ته یې وروړاندې کړې ویې ویل: دا واخله دا هغه رااستولی دي!
نا آشنا وویل: تاسو یې دننه په رڼا کې وګورئ بیا به درته معلومه شي چې چا رالیږلي دي.
روپ وتي د ننه ولاړه او چې کړې یې په رڼا کې ولیدې، وینې یې په رګونو کې وچې شوې.
نا آشنا وړاندې ورغی په دروازه کې ودرید او ورو یې وویل: د ویرې څه خبره نشته، زه جي کرشن یم، د نرملا پلار. نرملا ماته دغه نخښه ددې لپاره راکړه چې ښایی ته پر ما اعتماد ونه کړې. نرملا ددې حویلی شاته ولاړه ده. هغه ددې لپاره د ننه رانه غله چې ستا نوکران یې پیژني. که ته غواړې

چې خپل او د رام نات ژوند وژغورې . نو زما په وینا عمل وکړه. که نه نو ستا سره به زما او نرملا هم خیر نه وي

پیشوا ته معلومه شوی ده چې ته روپ وتی یې او ښایی لږ ځنډ وروسته د هغه سپاهیان دغه حویلی کلابنده کړي. نور د سوچ وخت نه دی ما له دې ځایه ستا دایستو بندوبست کړی دی.

مگر رام نات! روپ وتي په ډوبیدونکی غږ وویل.

جی کرشن دې ته ورنژدې شو ویې ویل:

که نه له دې ځایه ووتلې امکان لری د رام نات ژوند هم وژغورلی شو. که نه هغه چې ستا په بندی کیدو خبر شی د تیښتې هڅه به ونکړي، اوس زر له دې ځایه ځان باسه. یوازې زیور دې درسره واخله. په لاره کې به په کار درشي. گوره ستا پهره دار ته هم باید معلومه نه شي چې ته بهر ته وزې. ما یوه لاره سنجولې ده. ستا په طبیله کې خو به آس وي؟

هوکی په طبیله کې د یوه پر ځای دری آسونه دي.

نو نه له ما سره ولاړه شه پهره دار ته ووایه چې ما ته د بیرته ستنیدو لپاره د یوه آس ضرورت دی. کله چې هغه طبیلی خواته ولاړ شی نا ته به بهر ته دوتلو موقع په لاس درشی هغه به داسې وگڼي چې ته کوټې ته ننوتلې یې.

د حویلی شاته به نرملا ووینې ته له هغې سره کورته ولاړه شه. زه به له آس سره هلته درشم . که پهره دار د کوم بل پهره دار د راوېښولو هڅه کوله، نو ایسار یې کړه.

روپ وتي کړې جی کرشن ته بیرته وسپارلې او له یوه صندوق څخه یې گاڼه او د طلا سکې راوایستلې له جی کرشن سره بهر ته راووته، پهره دار له درشل څخه د باندې په انگړ کې ولاړ و ، روپ وتي هغه ته وویل:

گوره! دی باید همدا اوس بیرته ولاړ شي.

ولاړ شه له طبیلې څخه یو آس راوله زین پرې وتړه او ده ته یې وسپاره، او بل څوك یې د تلو او راتلو څخه خبر نشي.

ده ته غوره آس زین کړه، که نه سردار به خفه شي، او گوره د نورو نوکرانو دراوېښولو ضرورت نشته.

روپ وتی د خپلې کوټې په لور ولاړه او پهره دار د طبیلې په لور مخه کړه. کله چې پهره دار له سترګو پناه شو، نو روپ وتی په منډه ولاړه او له بهرنۍ دروازې ووته، جی کرشن دروند زنځیر ورنه خلاص کړاو لویه دروازه یې بیرته کړه او بیرته یې بنده کړه.

.....

لږ ځنډ وروسته د حویلی شاته نرملا او روپ وتی د جی کرشن د کور په لور روانې شوې، نرملا د هغې د تسلی لپاره وویل:

هغه نوکر چې زه ستا سره استوم ډیر وفادار دی، هغه ټول عمر په ګوالیار کې زما له ماما سره تیر کړی دی، ما هغه له هغه ځایه له ځان سره راوستلی و، پلار جان به مې د رام نات دخبرولو لپاره بل نوکر واستوی. بګوان به ستا مرستندوی وي. زما باور دی چې رام نات به درسره ملګری شي، تاسو ټوله شپه سفر وکړی او د ورځې په مهال په کوم ځنګل کې خوب کوي، افسوس چې ستا روغتیا ښه نه ده که چیرته د تم کیدو ضرورت شو. نو د لویو ښارونو پر ځای په وړوکیو کلیو کې ایسار شئ. چې له سرحده تیر شې بیا به تاسو ته هیڅ خطر نه وي.

روپ وتي د مننې اوښکی وڅڅولې ویې ویل:

نرملا! ته دیوی یې د بګوان لپاره رام نات خامخا خبر کړئ.

- ته غم مه کوه!

روپ وتي وویل. نرملا! رام نات ستا د زړه حال ماته ویلی دي. ته رنبیر ته څه پیغام لرې؟

- هوکې! هغه ته یوازې دوایه له نرملا نه چې تا کرکه کوله مړه شوه.

چې کورته نژدې ورسیدې له شانه یې د آس د پښو ترپهار واورید او دوی شانه وروکتل جی کرشن له آس څخه پلی شو ویې ویل:

روپ وتي! ته پردې آس سپره شه، نرملا له دې سره اوسه. زه به اوس ګوبند رام را سره راولم زما پر پیاری لال باور دی خو هغه باید پردې ټولو خبرو خبر نه شي.

چې کرشن په منډه د کلا د انګړ په لور ولاړ، روپ وتي پر آس سپره شوه . لږ ځنډ وروسته جی کرشن او ګوبند رام راغلل، ګوبند رام یو آس تر جلب نیولی و.

جی کرشن وویل:

ګوبند رامه ! ستا منزل د قنوج هغه کلی دی چې یو وخت زما په لاس کې و، د دغه دیوي د عزت دښمن ورپسې دی ځکه باید زر تر زره تر سرحده واوړئ.

نرملا وویل: پلارجانه! ما دغه دیوي ښه پوهولی ده اوس اجازه ورکړه، بیا یې ګوبند رام ته وکتل ویې ویل: ګوبند کاکا! ددې عزت او ددې ژوند زما ژوند وګڼه!

ناڅاپه د جی کرشن په زړه کې څه خبره راوګرځیده او وروړاندې شو . روپ وتی ته یې وویل: ته دې د خپل میړه لپاره داسې څه نخښنه راکولی شی چې ویې وینی او زما د استازی پر خبره باور وکړي؟

هوکې ! هغه به زما ګوتې وپیژني. روپ وتې دا وویل او بیا یی خپله ګوتی ورته راوایستله او جی کرشن ته یې ورکړه.

. . . . . .

له لږ ځنډ وروسته روپ وتي او ګوبند رام د شپې په تیارو کې ورک شول، جی کرشن له نرملا سره د خپل کور پر درشل ورننوتل چې پیاری لال له دوو آسونو سره اندیښمن ولاړ و. هغه په ویره ویره وپوښتل:

بادا‌ره! ګوبند چیرته ولاړ؟

- هغه ما د چا د رابللو لپاره واستاوه.

جی کرشن دهغه د راایسارولو لپاره وویل ما ددوو آسونو د پښو ترپهار واورید.

- له هغه سره بل څوك هم وو؟

- هوکې! له هغه سره یو بل سړی هم تللی دی. اوس ته دا راته ووایه چې سردار رام نات پیژنې؟

هغه چې په سرحد کې جاید اد ورکړی شوی؟

- هوکې! زه هغه ډیر ښه پیژنم.

هغه د خپلو ځمکو د لیدلو لپاره تللی دی او زه تا هغه ته وراستوم، ته سیده د ختیځ په لور ولاړ شه، چې دیونګړ ته ورسیدې له هغه ځایه پنځلس میله وړاندې چې د سیند پر غاړه کوم کلی دی هغه د راماو نات جایداد دی.

پیاری لال وویل:

صیب زه به هغه پیدا کړم، په هغه سیمه کې پر نوی سردار ښه مشهور شوی دی.

دا واخله! جی کرشن پیاری لال ته د روپو یوه ګوتیي ورکړه ویې ویل: هغه ته یې ورکړه او زما له طرفه ورته ووایه چې کومې نجلۍ دغه ګوتیي درته رااستولی ده هغه قنوج ته روانه شوې ده ځکه. خو ته دلته ښار ته د بیرته راتلو پرځای خپل دوست ته قنوج ته ولاړ شه.

نرملا وویل: نه پلارجانه! د هغه د تسلي لپاره دا کافي نه دي، زه هغه ته یو لیك لیکم.

- د څان له طرفه!

زه خپل نوم نه ورته لیکم خو هغه به وپوهیږي چې زه څوك یم

- خو که ستا لیك ونیول شو. نو بیا؟

که ونیول شو هم د هغه نجلۍ دښمن به د سردار رګونات دوړاندې زما له خولې دا اوریدل ښه ونه ګڼي چې ما دا لیك ولې لیکلی.

جی کرشن بې وسه شو ویې ویل: نرملا! چې څه دې زړه غواړي هغه وکړه. نن زما عقل کار نه کوي تازه دې ختو نه ورتیل وهلم چې بیرته راوتل ترې زما له وسه وتلې ده.

- نه پلارجانه! نن زه تا دآسمان په لوړو کې ګورم، ته لږ انتظار وکړه زه اوس راځم او ګوره اوس دې خپلې جامې واغونده.

نرملا د ننه کورته ننوته، جی کرشن له پیاري لال سره بیا جامې بدلې کړې او له درشل څخه بهر انګړ ته ووتل او قدم وهل یې پیل کړل، لږ ځنډ وروسته پیاري لال ته نژدې شو ویې ویل:

ته دروازه زنځیر کړه او که چا له بهر څخه وټکوله. نو د دروازې له خلاصولو څخه د مخه آسونه د طبیلې په لور وشړه. ازه اوس بیرته راځم.

نرملا په يوه کوټه کې ناسته وه ، ليک يې ليکلو. خدمتګارې له دروازې څخه وروکتل ويې ويل:

ستا درې واړه صندوقونه مې وليدل هيڅ :وا مې پکې ونه موندله.

نرملا وويل: ښايي د پلارجان په صندوق کې مې ايښې وي، ته ويده شه . زه به يې پخپله وګورم.

خدمتګاره ولاړه او لږ وروسته چې کرشن کوټې ته ورغی، نرملا ورته وويل:

پلار جانه ليک مې وليکه ته يې وګوره!

جي کرشن ورواندې شو ، ليک يې د ډيوې رڼا ته په ولاړې ولوست د نرملا د ليک مضمون داسې و:

رام ناته وروره!

کله چې ته له استازي نه وپوښتې چې زه څوک يم او د چا لور يم ستا به تسلي وشي چې دا څه مې ليکلي دي هغه دروغ نه دي.

د روپ وتي راز افشا شو، په دې کې څه زما غلطي وه ، هغه دښمن چې دا يې تاله منګولو څخه ژغورلې وه په دې ښار کې د هغې لټون کوي.

روپ وتي ويل چې رنبير دی ته خور ويلی دي. زه دا د رنبير په لور استوم څکه خو نه هم هلته ځان ورسوه . که بيرته راغلې ښرته دې خطر دي. استازي زموږ پخواني نوکر دی.

او زه دده په لاس تاته ددې ليک نه پرته د روپ وتي لاس نښه هم در راستوم

(ستا يوه خور)

جی کرشن وارخطا غوندې وويل که تا دليک په پای کې خپل نوم ليکلی وای هم څه فرق يې نه کاوه.

نرملا په ډاډه زړه ځواب ورکړ: هيڅ خبره نه ده پلار جانه! که زه خپل نوم وليکم هم او دغه ليک ونيول شي د سردار په مخکې به زما څخه له شکايت نه دمخه پيشوا د اومنی چې ساوتري روپ وني ده او دا چې د هغې په باره کې کومه خبره مشهوره کړې ده هغه د خلکو د دوکه کولو لپاره وه او دا داسې خبره ده چې مذهبی پيشوا به يې هيڅکله هم خوښه نه کړي. زما باور دی چې بياری لال به دغه ليک خوندي ورسوي. ناسو يوازې ده ته د انعام ژمنه وکړئ

جی کرشن بې خوابه غونډې وشو وې ویل: راځه اوس بېره کوه.

دوی دواړه چې درشل ته راورسیدل جي کرشن پیاري لال ته لیك ورکړ او وې ویل:

ګوره پیاري لاله! چې کله ته بیرته راستون شوې، نو دواړه موتی به دې د طلاو څخه درته ډك کړم. دغه لیك له رام نات څخه پرته بل چاته مه ښکاره کوه.

نرملا وویل زه به له سردار څخه یو څه ځمکه درته واخلم چې په ډاډه زړه ژوند پرې وکړای شې. رام نات که له تانه زما او د پلار جان د نومونو پوښتنه وکړي، نو ورته ووایه.

جی کرشن وویل خو که دغه لیك له رام نات پرته د بل لاسته ولوید ، نو څرمن به دې وباسم، اوس په بېړه له ښاره ځان وباسه . پیاری لال دروازه خلاصه کړه او آس یې تر جلب ونیو وې ویل:

باداره! پر بل آس به څوك ځي؟

جی کرشن له ډیر زغم څخه کار واخست وې ویل:

بل آس به همدلته وی د بګوان لپاره دروځه!

پیاري لال بهر پر آس سپور شو. جي کرشن مشال پورته کړ وې ویل: نرملا! ته اوس د ننه لاړه شه. له مانه غلطي وشوه چې دلته راغلم څوك می باید سردار ته استولی واي. چې ستا دوا پیدا شوه او اوس آرامه ویده یی اوس به زه دغه آس په طبیله کی پریږدم او بیا به څوك ورواستوم. خو ته ویده نه شې زما درسره ډیرې خبرې دي.

- ته تر سهاره له ماسره خبرې کولی شې.

د ننه نرملا تر څه ځنډه د جی کرشن د ورتلو انتظار کاوه ، د تیرو ذهني او بدني ستومانیو نه وروسته دی اوس سکون او ډاډ احساساوه. جي کرشن چې کوټې ته ورننوت د هغه په څیره یې د اندیښنې او خپګان نخښی ولیدې نرملا ترې وپوښتل:

پلار جانه! د بګوان له خوشاله کولو وروسته ته باید پریشانه نه وې.

جی کرشن بې سیکه غونډې دی ته نژدې پر کرسی کیناست وې ویل:

زه نر اوسه پورې داسې احساسوم چې دا هر څه ما دخوب په حالت کې کړي دي، معلومه نه ده چې مذهبي پیشوا به اوس څه کوي؟

هغه اوس څه نشي کولي، تر سهار به روپ وتي په میلونو لرې تللې وي او بګوان دی وکړي چې پیاري لال په وخت رام نات هم خبر کړي.

جي کرشن وویل: زه اوس د هغې په اړه نه ستا په باب فکر کوم، چې مذهبی پیشوا ته معلومه شي چې روپ وتي ورکه شوې ده، خامخا به پرتا شك کوي او دهغه بدل ډیر خطرناك کیدای شي.

- زه له دې نه ویریږم . زه غوارم چې روپ وتي تر سرحد د اوښتو فرصت ومومي.

پلار جانه!

آیا تا دا احساس نکړه چې پردې ټول کار کې بګوان ستا مرسته وکړه؟

جي کرشن وارخطا غوندې وویل: که بګوان په دغسې حال پر ما مهربانه وي. نو زما باور دی چې په نړۍ کې به ماته د ساه اخستلو لپاره هیڅ ځای پاتې نه شي. نرملا سره له دې چې ډیره هڅه یې وکړه. خو خپله خندا یې راقابو نکړای شوه.

......

بهر د چا د پښو غږ اوچت شو او جی کرشن وویریده جګ شو ویې پوښتل: څوك یې؟

یوه نوکر ځواب ورکړ: باداره! سردار صاحب راغلی دی.

جی کرشن نرملا ته اشاره وکړه، هغه زر له کرسۍ جګه شوه او پر بستره وغځیده ، سترګې یې پټې کړې.

جی کرشن بیا د دروازې په لوري ورغی وې ویل:

سردار صیب چیرته دی؟

د نوکرانو پر ځای سردار رګونات کوټې ته ورننوت او وې ویل:

ګوره زه پخپله راغلم. نرملا څنګه ده؟

- اوس ویده ده. موږ د دوا په لټون څنډ وکړ. ما همدا اوس نوکر دروا‌ستاوه. هغه ښایي نه وی دررسیدلي.

-نه. زه ډیر اندیښمن وم، غوښتل مې زر دلته راشم. خو پیشوا صیب تر ډیره زما سره خبرې کولې.
- مهرباني وکړئ!
- نه ! د نرملا خوب به نا آرام شي. زه بېرته ځم تاسو هم ویده شئ.
- تر لږ خنده کینه پر نرملا به تر سهاره د دوا اغیزه وي، که هغې ته ډول هم ووهل شي راویښه به نشي ، داډیره ښه دواده.
- د بګوان کار دی چې دوا مو ورته پیدا کړه سردار په ډاډ پر کرسۍ کیناست.

جی کرشن وویل: مذهبي پیشوا ماته لږ پریشانه ښکاریده. له تاسره خو به یې کومه خاصه خبره نه وي کړي؟

سردار ځواب ورکړ: پیشوا له لوی راجه سره د سومنات د دفاع په اړه د مشورې لپاره ځي د هغه دا ګومان دی چې محمود به خامخا پر سومنات حمله وکړي او د دیوتاګانو خوښه هم دا ده چې د هغه د سرتیرو مړي د سومنات تر دیوالونو لاندې تر پښو لاندې شي. د پیشوا هیله ده چې راتلونکې میاشت ټول راجه ګان په سومنات کې راټول شي او دغه سوګند وکړي چې د خطر په وخت کې به له خپل لښکر سره د سومنات ددفاع لپاره راټولیږي.

زموږ لوی راجه هغه ته مشوره ورکړې وه چې د انهل واړه پوځ په سومنات کې د راټولیدو پر ځای باید د کاتیاوار په سرحدونو کې د دښمن د لښکر مخه ونیسي، ځکه خو اوس پخپله لوی راجه ته ورځي. په دې وضعه کې زه هم له ده سره تلل ضروري بولم.

جي کرشن وپوښتل: ستا رایه څه ده؟

سردار ځواب ورکړ:

زما رایه هم داده چې دجنوب ټول راجه ګان د سومنات د دفاع لپاره راټول شي او موږ پر خپلو سرحدونو کلك شو. زما باور دی چې دښمن به پر سرحدونو ایسار کړای شو.

خو که موږ راایسار نکړای شو، نو شاته به راځو او ګام پر ګام به مقابله ورسره کوو. په دې ډول به تر سومنات پورې تر رسیدو پورې د دښمن زیات ځواك له منځه تللی وی او زموږ هغه لښکر به چې په سومنات کې راټول شوي

وې، هغوی په آسانی بشپړ برباد کړي، ترڅو چې د دښمن یو تن به هم زموږ د دیوتاګانو له عذابه روغ خلاص نشي، زما سره له خبرو نه وروسته پیشوا صیب وویل چې د شیوجی د درمسال پالونکیو سره د مشورې اړتیا ده چې باید انهل واړه ته له تلو مخکې یې ووینم ځکه خو هغه د خوب پر ځای درمسال ته ولاړ.

- همدا اوس؟

- هوکې! ما همدا اوس دی درمسال ته ورساوه او راغلم، پیشوا صیب په ګاډۍ کې د سپریدو پرځای پلی درمسال ته ولاړ، هغه خو دیوتادی، خوب او ستومانی پر هغه کله اغیزه کولی شي، خو د ځینو پالونکیو وضعه ډېره خرابه وه، غریبانو په لاره کې ارګمی ایستل.

جي کرشن وپوښتل:

هغوی ټول له پیشوا صیب سره ولاړل؟

- نه، یوازې اوه- اته تنه اوځو تنه سرتیری ورسره ولاړل.

- تا د دوی د درناوی لپاره خپل سرتیری ولې ورسره ونه لیږل؟

- ما خو همداسې غوښتل، خو پیشوا صیب وویل چې درمسال ته زموږ پر تلو باید څوك و نه پوهیږي، کله چې د درمسال دروازې ته ورسیدل زه یې هم را رخصت کړم. راته وې ویل چې د نرملا احوال واخله، موږ به پاتې شپه همدلته تیره کړو.

-هغه ته معلومه ده چې نرملا له ماسره راغلې ده؟

-نه، ما فکر وکړ چې پردې به پریشانه شی ځکه مې خبر نه کړ.

جی کرشن وویل: نو دلته ویده شه، زه به د سهار پاڅوم.

- نه اوس خو سهار ته ډیر وخت نه دی پاتې، زه باید کورته ولاړ شم، د پیشوا صیب انتظار به وکړم، بګوان دې وکړی چې هغه سهار ته د تلو اراده و خنډوی که نه نو زما به بده وضعه وي.

جي کرشن وویل: ودریږه زه تاته ګاډۍ تیاروم، ته ډیر ستومانه شوی یې.

سردار وویل: د ګاډۍ ضرورت نشته زه ستا آس راسره بیایم.

ددې خبرو په اورېدو کې چې نرملا په پټو سترګو اوريدې له خانه سره يې يوه پريکړه وکړه. جی کرشن او سردار له ځګيدو سره دا په بل لټ واوښته وغځيده او . اوبه. اوبه! يې وويل ورو يې سترګې وغړولې.

جی کرشن وويل: اوی يې درته راوړم لوری او له کوټې ووت.

سردار وړاندې ورغی په تندی يې لاس ورکېښود وې ويل: اوس دې وضعه څنګه ده؟

- زه بلکل ښه يم تا کله تشريف راوړی؟

- زه همدا اوس راغلم! سردار دا وويل او نرملا ته نژدې په کرسۍ کيناست.

- تا بايد خوب کړې وای، ما چې دوا وخوړه ويده شوم، پلار جان مې احوال درنکړ؟

-نه ، ماته دده احوال راونه رسيد ، که راغلی وای هم زما به ستا له ليدو پرته تسلی نه وای شوې. ما سهار وختی له پيشوا سره انهل واړه ته د تلو اراده کړې ده. هلته ښايي څو ورځې زه پاتې شم، ځکه خو د تلو نه مخکې ماته ستا په باب تسلي ضروری وه.

د دې ناروغۍ دې بايد سم علاج شي. زه چې بيرته راستنيدم منوراج راسره راولم.

نرملا وويل: نه. نه هغه ته زحمت مه ورکوه. زه د دغه دوا له خوړلو سره سمدستي آرامه شوم. افسوس کوم چې زما په سبب مذهبی پيشوا او نور ميلمانه پريشانه شول.

سردار ځواب ورکړ: نه، هغه هيڅ پريشانه نه شول، پيشوا خو پردې هم پوه نه و چې ته دلته راغلې يې.

نرملا وويل: ستا د رخصتولو لپاره زه بايد په کور کې وم.

سردار وويل: هوکې! که تا د پيشوا درناوی کړی وای، نو ډير به ښه وای، که دې وضعه ښه وي ، نو سهار به له روانيدو څخه وړاندې ګاډی درته راواستوم.

- زه بلکل روغه يم، که تاسو اجازه راکړئ. نو زه پلې له تاسره تلو ته تياره يم.

-زما هيڅ اعتراض نشته. خو ته به په زحمت شې.
- ښځې ته له خپل ميړه سره په تلو کې هيڅ زحمت نه وي. سردار په خپل زړه کې د خوښۍ ټکانونه احساس کړل . له واده وروسته د نرملا کړو وړو دی پردې سوچ مجبور کړې و چې ښايي دی د نرملا په پښو کې دخپلو ټولو شتو او دولت دځارولو په بدل کې هم ددې مينه ترلاسه نه کړي، پرده د منني احساسات غالب شول او وې ويل:
- نور راځه! ما ته تر دې زياته د خوښۍ خبره څه کيدای شي لږ څنډه وروسته جي کرشن د اوبو جام راوړو او کوټې ته ورننوت. نرملا جام د هغه له لاسه واخست.
سردار جي کرشن ته يې وکتل او وې ويل:
که تاسو اجازه راکړئ زه به نرملا له ځانه سره بوزم.
- که د نرملا وضعه ښه وي زما اعتراض نشته مګر اوس؟
نرملا څو غوړېه اوبه تر ستونې تيرې کړې او ويې ويل: پلارجانه! سردار صيب سهار له پيشوا صيب سره درومي او دده د رخصتولو لپاره زما په کور کې اوسيدل ضروری دي. په تازه هوا کې تګ به زما طبعه نوره هم ښه کړي.
مګر دا به عجيبه خبره وي. ښه ستاسو خوښه. لږ وروسته سردار او نرملا د خپل محل په لور روان شول.
سردار له ستومانۍ څخه بې سيکه و. خو بيا هم خوښ و. د جی کرشن د کور له درشل څخه چې ووتل د نرملا لاس يې په خپل لاس کې ونيو او وې ويل:
نرملا ! اوس به په هر ګام کې ماته ستا د تکيې ضرورت وي.
- نرملا ورو ځواب ورکړ: ستا خدمت زما فرض دي. سردار ددې لاس ورکش کړ پر خپلو شونډو يې ولګاوه ويې ويل: ته ديوی يې نرملا، او ستا دا پالونکي له دې پرته نور هيڅ نه غواړي چې ته کرکه ترې ونه کړې.
نرملا داسې احساسوله چې چا يې پر لاس بله سکروټه ايښې وي، څو شيبې بې حرکته وه. بيا يې لاس ورټول کړ ويې ويل: درځه!
سردار په غمجنه لهجه وويل: زه پوهيږم نرملا ته زما له سپينو ويښتو سره مينه نشي لرلي. زه له تانه يوازې د رحم سوال کوم.

نرملا په دردمنه لهجه وویل: داسې خبرې مه کوه، زه به تاته د ګیلې موقع درنکړم، راځه ته ډیر ستومانه شوی یې.
- نه نه، زما له تانه ګیله نشته، یو پالونکی له خپلې دیوی څخه د شکایت جرئت نشي کولی، سردار دا وویل او له دې سره ولاړ.
چې کور ته ورسیدل ورته معلومه شوه چې پیشوا لاته دې راغلی، نرملا ډاډمنه ساه واخسته، کله چې دا د پاسني پوړ یوې کوټې ته ننوته، سردار ورته وویل: نرملا! اوس سهار کیدونکی دی پیشوا به همدا اوس راورسیږي، ته پریوزه چې کله هغه راغی زه به دې راجګه کړم.
نرملا وویل: نه، تا ته د خوب ضرورت دي. امکان لري پیشوا صیب ځنډ وکړي او ته لږ د خوب فرصت ومومې، ستا سفر په مخکې دی، زه خو ټوله ورځ ویده کیدای شم.
سردار له ستومانی نه ځب شوې و هغه پر بستره پریوت او ویې ویل:
ډیر ښه زه به لږ ملا نیغه کړم.
نرملا په یوه کرسی کیناسته لږ ځنډ وروسته یې د سردار خرهار اوریده، نرملا د ډیوې په تته رڼا کې د هغې مخ ته وکتل او خپلې سترګې یې پټې کړې، ددې خیالونو د ماضي په لور منډې وهلې. هغه ماضی چې د رنبیر له خوبونو څخه ډکه وه. هغه ماضی چې ددې د ځوانی ټولې ولولې پکې مړې شوې وې، هغه ماضي چې بیرته ورګرځیدل ددې له توان څخه وتلی و او دی ته یې د آهونو او اسویلیو سوغات پریښود او د تیاره راتلونکی په لور یې ورټیل وهله، د نرملا ساه بنده غوندې شوه. جګه شوه او د کړکی په لور ولاړه، په سترګو کې راډنډ شوې اوښکی یې پاکې کړې، آسمان ته یې وکتل، پر ختیځ افق د سهار ستوری په راختلو و، ورو ورو د ستوریو رڼا ورکیده او د شپې تیارې د ورځې په رڼاګانو بدلیدې، لږ ځنډ وروسته دی د ماڼی په څلور دیوالي کې د آسونو د پښو ترپهار واورید او بیا یې ورسره جوخت څو تنه سپاره ولیدل چې له طبیلې څخه راووتل او په بل لور ولاړل. سپاره یې زر له سترګو پناه شول ، نرملا د بیرته راګرځیدو اراده کوله چې پیشوا یې د ماڼی په لور را روان ولید.
نرملا زر کوټې ته ننوته او سردار یې تر مټو ونیو او ویې خوځاوه ویې ویل:

پاڅه پیشوا صیب راغی.
سردار رګونات وبریده سترګې یې وموښلې او وې ویل:
پیشوا صیب چیرته دی؟
هغه لاندې دی خپلې کوټې ته روان دی.
بګوان دې وکړی چې د سفر اراده وځنډوي.
سردار دا وویل او په تالونو د دروازې په لور روان شو.
یو ساعت وروسته چې سردار بیرته راستون شو، نرملا پر کرسۍ ناسته وه او خوب زنګوله، سردار وویل:
اوف تراوسه پورې ویښه یې، ته باید ویده شوی وای.
- ما ستا انتظار کاوه.
- زه نن نه ځم، پیشوا صیب هم منډهیر ته د تلو اراده بدله کړه، د هغه صحت ښه نه دی. غواړې چې لوی راجه همدلته راوغواړي. ما دده پیغام راجه ته واستاوه.
نرملا وویل:
ستا له ویښولو نه مخکې ما د آسونو د پښو ترپهار واورید ګومان کوم چې له طبیلې نه څو سپاره بهر ته ولاړل.
- هوکې! هغه د پیشوا د ساتونکو له ډلې څخه وو.
پیشوا صیب هغوی د شاوخوا ګاونډیو راجه ګانو او لویو راجه ګانو لپاره واستول او دا پیغام یې ورکړ چې هغوی باید دده د درناوی لپاره دلته راشي.
پیشوا صیب ماته یوه عجیبه خبره وکړه.
- څه خبره؟
ویل یې چې یوه ښکلې نجلۍ د سومنات د درمسال د خدمتګارې په حیث راغلې وه، خو پالونکیو ته دا معلومه شوې ده چې هغه د مسلمانانو جاسوسه وه ځکه یې ونیوله، په تیرو ورځو کې هغه له جیل څخه وتښتیده.
له دې نه ښکاري چې د سومنات په ساتونکې پوځ کې هم ځینې کسان له هغې سره ملګري شوي دي، د سومنات جاسوسان له ډیرو ورځو راهیسې د هغې په لټه کې وو، اوس هغوی دا درك لګولی دی چې هغه نجلۍ زموږ په ښار کې له چا سره غلې شوې ده، زما پردې خبره باور نه راته. بیا مې هم د

پیشوا د تسلي لپاره مې د ښار د کلابندۍ امر وکړ ، اوس زموږ د سرتيرو په ملاتړ د سومنات پالونکی ښار کور په کور لټوي، که هغه نجلی وموندل شوه، نو دهغې د نورو ملګرو دپيدا کولو لپاره به دا سومنات ته بيولی شي، د سومنات په درمسال کې د دښمنانو د جاسوسانو موجوديت ډير خطرناک دی، ما په ښار کې ددې ډنډورې غږولو اراده کړې ده، چې د هغې نجلی پیدا کوونکی ته به ډير لوی انعام ورکړای شي، اوس ته آرامه ویده شه ، پیشوا صیب نن له ماسپښین څخه مخکې له چا سره نه ګوري.

نرملا غوښتل څه ووايي چې پوه بوډۍ ساه نيولی او وارخطا ورننوته د هغې کميس ځای ځای شکيدلی و او پر څيره يې د وهلو خاپونه وو.

سردار چې وليده وې پيژندله، دا د ده پخوانی خدمتګاره وه چې اوس يې د رام نات کورته استولې وه.

بوډۍ سلګۍ وهلې او د سردار پر پښو ورپربوته.

څو نوکرانې او نوکران له دروازې څخه بهر حيران او پريشانه دريدلې وو.

سردار بوډۍ تر مټو ونيوه، جګه يې کړه او وې ويل:

په تا څه شوي دي؟

- باداره ! زه ډاکوګانو ووهلم. هغوی د شپې په دريمه برخه کې پر ديوال راواوښتل او دننه کورته راغلل . پهره دار او درې نوکران يې ووژل. څلورم نوکر د ځنکدن په حال کې پروت دی.

بيا هغوی زه . د پهره دار ميرمن او باغوان لور ونيوو او په يوه کوټه کې يې واچولو دوه تنه مو توره ايستلی پر سر ودريدل، نورو کسانو کور ولټاوه او بيا يې له موږ نه پوښتنه وکړه چې د سردار ميرمن چيرته ده ؟ تاسو هغه چيرته غلې کړې ده؟

باداره! موږ ته هيڅ معلوم نه وو چې هغه چيرته وه، ما ورته وويل چې هغه د شپې مهال په خپله خونه کې وه او له حويلی څخه مې بهر ته د تلو په حال کې نه ده ليدلې. خو هغوی نه منله ويل يې دروغ وايې . بيا يې دوهم ځل کور تول ولټاوه. خو ساوتری هلته نه وه. بيا هغوی د کوټې دروازه بنده کړه او زموږ په وهلو يې پيل وکړ. د پهره دار ميرمن او د باغوان لور پردې خانونه خلاص کړل چې ددوی کورونه د حويلی په بله خوا کې دي. او د شپې مهال

یوازې زه د ساوترۍ په خدمت کې پاتې کېږم. ډاکوګانو هغوی په کوټه کې بندي کړی او زه یې حویلی نه بهر کښوتونو ته راوستم. دلته ددوی نور ملګري هم وو، زه یې په وهلو بې سده کړم. کله چې را په خود شوم هلته هیڅوك نه وو، زه له ویرې بیرته حویلۍ ته ولاړم نه. تر دې ځایه چې راتلم په لاره کې څو ځلې ولویدم.

سردار وویل: زما په ښار کې داسې جرئت څوك کولی شي! نه له هغوی نه څوك پیژندلی شې؟

نه باداره! هغوی پر خپلو مخونو نقابونه غوړولی وو

هغوی څو تنه وو؟

باداره! انو تنو پر حویلۍ حمله راوړې وه. او درې تنه ما په کښتونو کې ولیدل.

سردار وپوښتل:

د سردار رام نات د میرمنې په باب ته څه معلومات نه لرې؟

- نه باداره! زه هیڅ خبره نه یم. د شپې له ویده کیدو نه مخکې مې هغه په خپله خونه کې ولیده.

- اوس ته همدلته اوسه. سردار دا وویل او د دروازې په لور ولاړ. نوکران یې له خپلې مخې لرې کړل او بهر ته ووت.

نژدې ماسپښین په ښار کې ډنډورچیانو چیغې وهلې چې د رام نات پر کور د شپې ډاکوګانو حمله کړې ده. دهغه د میرمنې او د سومنات د درمسال څخه تښتیدلې نجلۍ درك معلوموونکیو ته یې د لویو انعامونو اعلان کاوه.

.....

له ماسپښین څخه لږ وروسته پیارۍ لال یوه وړوکې کلی ته ننوت، هغه له ستومانۍ څخه بې سیکه شوې و. آس یې ځواب ورکړې و. دکلي له ورېایه څخه بهر د یوې ونې لاندې څو کسان راټول وو. پیارې لال له کلیوالو خلکو څخه د کار اخیستلو په طریقه پوهیده.

لږه شیبه وروسته یوه کلیوال د ده د آس لپاره وابښه او اوبه راوړل. دوهم د ده لپاره ډوډۍ، شرومبې او کوچ راوړل.

د خپلې خېټې له ډکولو نه وروسته پیاري لال د لږ خندا لپاره د دمې جوړولو په خاطر وغځېد یوه کلیوال ترې وپوښتل:
باداره! ته له کوم لوري راغلی؟
د بادار په اورېدو پیاري لال په زړه کې یو ډول پوګنوونکی احساس وکړ ویې ویل:
ته د مندهیر سردار صیب پیژنې؟
- هغه څوك نه پیژني بادارهٔ ته دهغه....
پیاري لال یې خبره ورغوڅه کړه او په آمرانه لهجه یې وویل:
ګوره ! یاره ته آرام کښېنه.
یوه عمر خوړلي سړي وویل:
ستا آس ډېر ستومانه معلومېږي که دې خوښه وي زین ترې لرې کړم.
پیاري لال سر راپورته کړ او په آمرانه لهجه یې وویل: نه زه اوس روانیږم.
یوه بل کلیوال وویل:
بادارهٔ ستا آس ډېر ښکلی دی.
پیاري لال جګ شو وې ویل:
تاسو هغه په خغاسته کې نه دی لیدلی، زه د شپې وروستی برخه کی له مندهیر څخه راوتلی یم او دا دی دلته رارسیدلی یم.
کلیوال په حیراني وویل: دومره په بیړه؟
- هو نو!
څو تنه کلیوال یو پر بل پسې را پاڅېدل او تر آس راچاپېر شول، هغوی یې له غوږونو څخه د لکۍ تر وېښتانو پورې په ستاینه خولې خلاصې کړې، یوه ساده زړې کلیوال له پیاري لال څخه وپوښتل:
بادارهٔ ددې بیه به څومره وي؟
پیاري لال په غضبناك نظر هغه ته وکتل ویې ویل: ولې ته غواړې وایې خلې؟
هغه په عاجزۍ ځواب ورکړ: نه بادارهٔ ما هسې پوښتنه وکړه.
- نه وېې پېرهٔ ددې قیمت یوازې یو کلی دی.

ساده زړی کلیوال د وراخطایی په حال کې د خپلو کلیوالو کړسندې خنداګانې اوریدې، لږ لرې یو سپور رابښکاره شو چې ګړندی د کلي په لور را روان و او څو تنه کلیوال جګ شول د هغه ننداره یې کوله. پیاری لال هم سمدستی راکوز شو او په لاره کې یې ودرید. لږ ځنډ وروسته سپور د کلي څنګ ته راورسید، خو د آس د درولو هڅه یې ونکړه، کلیوال وویریدل او یوې او بلې خواته شول، سپور د یوې ګولۍ په څیر تیر شو، پیاری لال په پوره زور چیغې کړې:

رام نات باداره! ودریږه، ودریږه! رام ناته!!

خو رام نات د آس په ګردونو کې ورک شو، لږ ځنډ وروسته پیاری لال پر خپل آس سپور شو او په هغه پسې روان شو، خو د رام نات د آس په پرتله دده د آس تګ ډیر ورو و.

دی په دې امید روان و چې رام نات به په کوم ځای کې د دمې جوړولو لپاره خامخا دریږي، په لاره کې به چې کوم کلی راغی او یا به کوم مسافر په مخه ورغی د رام نات پوښتنه یې ترې کوله. دده د آس تګ ورو ورو نور هم کراریده. لوږ مازدیګر آس ځواب ورکړ او ودرید. پیاري لال به پونده کړ، خو هغه به د څو ټوپونو وروسته بیا ودرید، پیاري لال له مجبوری پلي شو. آس یې تر جلب ونیو او پلی روان شو. په دې سیمه کې تر لرې لرې پوزې له بوټو او ونو پرته هیڅ نه ښکاریدل.

پیاری لال تر ماښام د مخه کوم کلي ته ځان رسول ضروري بلل، کوم نیم میل چې نور ولاړ د آسونو د پښو ترپهار یې واورید، دی له خوږ څخه راجګ شو په یوه ونه وختوت، پنځلس تنه وسله وال سپاره چې نیزې یې په لمر کې بریښیدلې، پوره ګړندی دده په لور را روان و، دی زر بیرته روان شو، آس یې تر جلب ونیو اوپه ګڼو بوټو کې غلی ودرید.

د سترګو په رپ کې د سپرو ګردونه اوچت شول، پیاري لال آس تر جلب ونیو، خوږ ته ورښکته شو، له لږ پلی مزله وروسته بیا پر آس سپور شو، ستومانه آس خوړند سر ورو ورو روان و. له یو میل مزله وروسته پیاری لال یو کلیوال ولید چې پر خره سپور و، هغه ته یې په لاس اشاره وکړه او ورته ویې ویل:

له دې ځايه کلي څومره لرې دی؟
- باداره ! دوه ميله لاره به وي.
- تا په لاره کوم سپور وليد؟
- ما په لاره کې څو سپاره وليدل باداره! يوه ډله وه چې تيره شوه ښايي تا هم ليدلی وي.
- هوکې ! هغوی څوك وو؟
نه پوهيږم باداره! له خپل کلي چې راووتم شاته مې يو پوځ ښکاريدو، ځلويښت پنځوس سپاره وو چې وړاندې تير شول، لږ وروسته مې بيا وليدل چې همغو سپرو يو بل سپور راګير کړی دی، زه له خره ځخه ښکته شوم او له ويرې د يوه بوټي تر شا پټ شوم، سپرو له هغه سپاره څخه د وسلې غورځولو هيله وکړه، خو هغه ونه منله او ويې ويل چې تر څو ماته معلومه نه شي چې تاسو ما د چا په امر نيسئ ، وسله به ونه غورځوم.
پياري لال دهغه خبره ورغوڅه کړه ويې ويل:
دهغه سپار د آس رنګ مشکی و؟
هوکی !
ښه بيا څه وشول؟
بيا يو سړی راوړاندې شو د هغه څيره د مندهير د درمسال پالونکی ته ورته وه چې هر کال زموږ سيمې ته د قلنګ ټولولو لپاره راځي . هغه سپور وپوهاوه چې موږ تا مندهير ته له ځانه سره بيايو. چې هلته ولاړو تا ته به معلومه شي چې تا څه ګناه کړې ده. خو سپاره وويل:
زه پخپله مندهير ته ځم، تاسو په ما پسې راتلای شی.
تردې وروسته يو سپاهی ور وړاندې شو ويې ويل چې موږ د سومنات ساتونکي يو او تا د سومنات د مذهبی پيشوا په امر نيسو. دا خيال له زړه څخه وباسه چې د انهل واړه راجه او يا د مندهير سردار به ستا څه مرسته وکړي.
سپاره چې دا واوريدل توره يې راوکښله او د هغوی کلابندی يې ماته کړه غوښتل يې يوې خواته ځان وباسي. خو د يوه سپاهی نيزه دده د آس په سر ولګيده چې آس يې له دوه درې ځلې راپورته کيدو سره په ځمکه ولوېد.

سپور لا ځان نه و سنبال کړي چې څو سپاره يې له نيزو سره پر سر ودريدل، اوس ده ته د ماتې له منلو پرته بله لاره نه وه، درې ځلور سرتيري له آسونو ځخه پلې شول هغوی دده لاسونه په رسۍ کلك وتړل، ما غوښتل له هغه ځايه پښې سپکې کړم، خو يوه سرتيري ولیدم او په نيزه يې وزغلولم او خپلو ملګريو ته يې وروستم.

ما په ډير زحمت دوی پردې قانع کړل چې زه يو غريب دوبی يم او له ويرې په بوټو کې غلی شوې وم، له هغوی څخه څو کسانو بندی ورسره بوتلو او بيرته ولاړل او پاتې نور وړاندې تير شول، ته هغه پيژنې باداره !

- څوك؟

- هغه سپور چې هغوی ونيوه!

پياری لال آس ته پونده ورکړه او ويې ويل : نه!

آس بيا ورو ورو روان شو، پياری لال دوبی ته راوکتل او ويې ويل:

ته به له ما سره يوه سودا وکړې؟

- څه ډول سودا باداره ؟

- د خپل آس په بدل کې دې خر راکړه. دا بيا کومه ورځ مندهير ته راوله انعام به درکړای شي.

که ماته په راتلونکی کلی کې آس پيدا شو، نو ستا خر به همالته درته پريږدم.

دوبي د ځواب پرځای د خره پر ورمیږ د ډنډې يو ګوزار وکړ او د سترګو په رپ کې په بوټو کې ورك شول.

* * * *

سبا ته ماسپښين مهال نرملا په خپله کوټه کې ناسته وه ، دهغې په څيره کې د ستومانی او پريشانی نخښې وې چې سردار رګونات ورننوت او د نرملا په مخکې په يوه کرسۍ کيناست ويې ويل:

زه هيڅ نه پوهيږم مذهبی پيشوا د رام نات د جُرم له ښودلو څخه انکار کوي.

نرملا وپوښتل: تا له رام نات سره وليدل؟

- نه ، پیشوا چاته له هغه سره د لیدو اجازه نه ورکوي، هغه اوس د درمسال د ننه بندی دی، پر دروازه د پیشوا کسان پهره ولاړ دي، د ښار کوم بل چاته د نژدې ورتګ اجازه نشته.

نرملا وویل: آیا ته ددې واك هم نه لرې چې د خپل ښار د کوم سړي د بندی کیدو سبب وپوښتې؟

- د مذهبی پیشوا په مخکې زما ټول اختیارات هیڅ دي.

- ته ددې سیمې حاکم یې که رام نات څه ګناه کړې وي، نو هغه ستاسو محکمې ته باید حاضر شي، او رام نات کوم عام سړی نه دی د لوی راجه دوست دی.

- پیشوا که وغواړی ، نو ما هم نیولی شي.

- هسې له کومې ګناه پرته؟

-نه ولې داسې ګومان کوی چې مذهبی پیشوا رام نات بې له کومې ګناه نیولی دی؟

نرملا ځواب ورکړ: نه، ماته دداسې ګومان اړتیا نشته، زما باور دی چې رام نات څه ګناه نه ده کړې. که یې کومه ګناه کړې وي، نو هغه داسې ده چې په رسوا کیدو یې مذهبی پیشوا د خپلې بدنامی نه ویریږي.

رګونات په غوسه وویل: نرملا د بګوان لپاره را په خود شه. ته باید ددې مانۍ د کوم نوکر د وړاندې هم داسې خبره ونکړې.

نرملا وویل: پر ما د غوسې پر ځای ولاړ شه له مذهبی پیشوا وپوښته چې د درمسال دیوی ګانې د لوی دیوتا دربار ته ورسیږی بیا څنګه دی دنیا ته راځي؟

- نرملا پر تا څه شوی دي! د بګوان لپاره ما مه پریشانه کوه. زه په هیڅ نه پوهیږم.

نرملا څه ویل غوښتل چې جی کرشن په دروازه کې راښکاره شو ، او دا جګه شوه ودریده ، رګونات هم جګ شو، او د جی کرشن احترام یې پر ځای کړ، بیا یې هغه نژدې له ځانه سره کیناوه ویې ویل:

ما همدا اوس فکر کاوه چې تاسو راولم ، نرملا ډیره پریشانه ده، دا چا د مذهبی پیشوا پر خلاف پارولې ده.

تاسو یې وپوهوئ، د مذهبي پیشوا په اړه په زړه کې هم غلط تصور گناه ده.

جي کرشن ځان ناگمانه واچاوه او ویې ویل:
نرملا! ستا د بادار مذهبي پیشوا څخه څه گیله ده؟
نرملا ځواب ورکړ: هیڅ نه پلار جانه، ما ده ته ویل چې که پیشوا د رام نات څه گناه ثابتولی شي، نو دی ستاسو محکمې ته له وړاندې کولو نه ولې ویریږي.
رگونات وارخطا وویل: گوره نرملا! ما یوځل تاته ویلي دي چې زه د پیشوا پر خلاف څه نشم اوریدای.
نرملا ببله دی چې څه ووایي جگه شوه او په بیړه بلې کوټې ته ولاړه، رگونات په اندیښنه جي کرشن ته وکتل او ویې ویل:
زه هیڅ نه پوهیږم، بگوان پوهیږي چې پردې څه وشول.
جي کرشن ځواب ورکړ: نه د نرملا په خبرو باید اندیښنه ونه کړئ. دا ډیره زړسواندې ده، موږ چې کله په قنوج کې وو. نو دې هلته هم د ډیرو بدو دښمنانو د خلاصولو هڅې کولې، زه به یې وپوهوم.
رگونات له کرسي څخه جگ شو ویې ویل:
تاسو په ډاډه زړه خبرې وکړئ. زه یو ځل بښکته ځم!
رگونات له کوټې څخه ووت او جي کرشن له لږ ځنډ وروسته جگ شو د څنگ بلې کوټې ته ورننووت، نرملا د انگړ لوري ته ددریڅې په مخه کې ولاړه وه، جي کرشن نژدې ورغی ویې ویل:
لوري! له اور سره د لوبو هڅه مه کوه، که داسې خبرې د پیشوا تر غوږو ورسیدې، نو د هغه بدل به ډیر خطرناک وي، که هغه ته ټول حال معلوم شي، نو دقنوج تر ځنډو به په روپ وتي پسې لښکر واستوي، ستا که دځان او یا زما پروا نه وي لږ تر لږه د روپ وتي په خاطر څو ورځې خپله خوله پټه کړه. د نرملا سترگې راډکې شوې ویې ویل:
مگر پلار جانه! دوی به رام نات ووژني او روپ وتي به له دې پرته چیرته ژوندی پاتې شي!
جي کرشن ځواب ورکړ:

پیشوا به دې و نه وژني، تر څو روپ وتي دده منګولو ته نه وی ورغلي، د رام نات ژوند ته هیڅ خطر نشته، دا د روپ وتي نیکمرغی ده چې د پیشوا سرتیری یې د مندهیر په شاوخوا او د رام نات په سیمه کې لټهون کوي، که هغوی په لاره کې پیاری لال نیولی وای او هغه لیك یې ترې ترلاسه کړې وای، نو ستا لیك زموږ د تباهی لپاره بس و.

اوس هم زه ویریږم چې که د هغه پر موږ شك راغی، نو د پیاري لال غوندې نوکرانو څخه ربښتیا راویستل ورته آسانه دي، ته له سردار صیب سره باید داسې خبرې ونکړې، موږ چې د رام نات لپاره څه کولی شو، ومو کړل، اوس بګوان هغه ژغورلی شي. زموږ په وس کې هیڅ نشته زما سره وعده وکړه چې ته به پام کوې.

نرملا خپلې اوښکې پاکې کړې او ویې ویل:

پلارجانه! زه وعده کوم.

.....

په مندهیر کې د شیوجی درمسال د خپل لرغونتوب، پراختیا او دجوړونې د فن له مخې ډیر مشهور ؤ. د ډېرو تر څلورو دیوالونو دننه یو پراخه ډنډ ؤ چې د ډنډ په منځ کې د درمسال شانداره ودانۍ دریدلې وه. چې طلایی منارې یې تر لرې لرې پورې ښکاریدلې. د درمسال دننه زر دانې بوتان دریدلې وو. د ډنډ له څلورو خوا څخه درمسال ته د مرمرو لارې ورغلی وې، هره ورځ په زرګونو زیارت کوونکی په ډنډ کې لمبلو او بوتانو ته د نذرانو وړاندې کولو لپاره راتلل. په هیواد کې د شیوجی د ډیرو نورو درمسالونو د پالونکیو په څیر ددې درمسال پالونکیو هم د سومنات مذهبی پیشوا خپل مشر او پیشوا منلی ؤ او ددوی دعایداتو یوه برخه هر کال د سومنات درمسال ته استول کیده.

له تیرو دوو ورځو را په دې خوا دغه درمسال د سومنات د درمسال د پیشوا د بوختیدنو مرکز ګرځیدلی ؤ او دروازې یې د ټولو نورو زیارت کوونکو پر مخ بندې وې.

عامو پالونکیو ته هم له درمسال څخه د لرې تلو امر شوی ؤ، پر دروازو د سومنات سرتیرو پهره کوله . د سومنات دمذهبی پیشوا . له ملګریو او د

مندهير د څو پالونکيو نه پرته څوك پردې خبره نه پوهيدل چې د ننه څه پېښيږي، عام خلك يوازې پردې خبر وو چې رام نات يې د يوه بندي په توګه د ننه راوستلی دی. او ډير زر به د سومنات پر خلاف د يوې دسيسې د افشا کيدو اعلان وشي.

رام نات د درمسال دننه پر يوه ستنه پورې تړلی ؤ او يوه سپاهي د هغه پر لوخه شا د متروکی وارونه کول. د سومنات مذهبی پيشوا او څو پالونکي هغه ته نژدې ولاړ وو. کله چې رام نات سترګې پټې کړې او ورمېږ يې نرم وغورځاوه، نو پيشوا د لاس په اشاره سپاهي له متروکو وهلو څخه ايسار کړ، رام نات يې د سر له ويښتانو ونيو. ټکانونه يې ورکول او ويې ويل: ووايه هغه چيرته ده؟

رام نات سترګې وغړولې ځواب يې ورکړ:

زما د ژوند ختمولو لپاره تاته د پلمو ضرورت نشته. ما هغه په کور کې پريښوده او ولاړم. که هغه زما په غياب کې له کوره بې درکه شوې ده. نو له تا پرته پردې خبره بل څوك ښه نه پوهيږي.

يوه پالونکی وويل: باداره! دا ډير سخت سره دی. تر اوسه يې دماغ نه دی سم شوی!

مذهبی پيشوا وويل:

اوس به يې دماغ سم شي، دا يې وويل او بيا يې سرتيري ته اشاره وکړه او هغه يو ځل بيا پر رام نات د متروکو ګوزارونه پيل کړل.

لږ ځنډ وروسته چې د رام نات په څيرې د بې خودۍ نخښې راښکاره شوې، نو پيشوا سپاهي يو ځل بيا ايسار کړ او د اوبو راوړو امر يې ورته وکړ، يوه سپاهي د درمسال له دننه څخه يوه کوزه اوبه راوړې او رام نات ته نژدې يې کېښودې او يو جام يې ترې ډك کړ د رام نات پر مخ يې څاڅکې وروشيندل.

رام نات پر شوندو ژبه تیره کړه او سترګې یې وغړولې، پیشوا جام له سپاهي څخه واخست او د رام نات پر شوندو یې ولګاوه، خو چې هغه ایله یو غوړپ تر ستونې تیرې کړې پیشوا جام ترې لرې کړ او تولې اوبه یې پر ځمکه تویې کړې او ویې ویل:

که غواړې اوبه وڅښې؛ زما پوښتنې ته ځواب راکړه.

رام نات په غریو نیولي غږ وویل:

که ته زما پر ځای پردې ستنه تړلې وای او زما په لاس کې دغه جام وای، نو تراوسه به ددې ښار هر سړي ته دا معلومه شوې وای چې روپ وتي چیرته ده.

پیشوا وویل:

ستا لپاره وروستی چانس دی. له دې وروسته به زما په زړه کې ستا لپاره د رحم هیڅ ځای نه وي ، رام نات له لږ ځنډ وروسته ځواب ورکړ:

ته یوازې د روپ وتي په باب له ما نه ولې پوښتنه کوې د کامني په باب یې ولې نه کوې؟

د مذهبي پیشوا څیره ناڅاپه توره واوښته. د ډیرې وارخطایی په حال کې یې یوې او بلې خوا ته وکتل او ویې پوښتل:

د کامني په باب ته څه خبر یې؟

زه د هغې په اړه پردې خبر یم چې کله تا هغه د دیوتا دربار ته استوله په نیمایی لاره کې بیرته راوګرځیده او د هغې په بدل کې ستا څو پالونکی هلته ورسیدل.

که ته د هغه په اړه نور څه پوښتل غواړې. نو ما د مندهیر سردار او د انهل واړه د راجه مخې ته وروله، ووایه ولې چوپ شوې؟

آیا ته د سومنات ددیوي په باره کې پردې هم ځان نه خبروی چې هغه اوس چیرته ده او څه وضعه یې ده؟

مذهبی پیشوا تر لږ ځنده حیران ولاړ وو بیا وړاندې ورغی د سپاهی له لاسه یې متروکه واخسته او بې دریغه یې پر رام نات د وهلو پیل وکړ، یوه پالونکي وویل:

باداره، باداره! دی بې سده شوی دی.

- موږ ته تر اوسه دده ژوندی پاتې کیدل ضروری دي. که کامني هم د روپ وتي په څیر غلی شوې ده، نو ددې مطلب دا دی چې په سومنات کې به د رام نات نور ملګري هم وي. دده له وژلو څخه دمخه د هغوی درک معلومول ضروری دي، مذهبی پیشوا متروکه پرځمکه وویشته ویې ویل:

اوس د ده یوه شیبه ایسارول هم دلته سهي نه دي. ته یې سمدستي سومنات ته بوزه، که ده په لاره کې له چا سره د خبرو هڅه وکړه، ژبه یې غوڅه کړه. زه به د روپ وتی له لټون وروسته بیرته راځم. ورځه اوس تیاري کوه.

. . . . .

# خور او ورور

د شپې په وروستۍ برخه کې شمبونات د ماڼۍ دننه دروازې ته مخامخ په پراخه چوتره په درانه خوب ویده و. دده ښي او کیڼ لوري ته دوه نور نوکران هم پر کټونو پراته وو او خُریدل. پر آسمان وریځې راخپرې وې او فضا تر یوې اندازې ترینګلې وه، یو پهره دار د چوترې په لوړ منډه واخستله او شمبونات یې وخوځاوه او ویې ویل: شمبو کاکا! ژر شه چې رنبیر سردار راغی.

شمبو نات ژر شو سترګې یې وموښلې او ویې ویل:

کله راغی چیرته دی؟!

پهره دار دروازې ته اشاره وکړه او ویې ویل: هلته وګوره را روان دي. شمبونات په انګړ کې لږ لرې د یوه مشال لرونکي تر شا د ماڼۍ څو نوکرانو او پهره دارانو په منځ کې رنبیر ولید. هغه خپل ملګري راوېښ کړل او له خپل بالښت څخه یې پګړۍ راپورته کړه. ژر ژر یې پر سر وتړله او د انګړ په لور ورغی پګړۍ دده سرله ضرورت څخه ډېره لویه وه، د چوترې له زینو څخه چې کوز شو. د پګړۍ بل سر یې لاندې ځمکه جارو کوله، پهره دار په غلطۍ دده د پګړۍ په څنډه پښه کېښوده او شمبونات یوه جټکه احساس کړه او بیا یې د پګړۍ له بوجه سرخلاص شو.

په عامه وضعه کې دی د ماڼۍ دنوکرانو د داسې ګستاخۍ زغملو عادي نه و، خو چې رنبیر یې لنډ ولید، پهره دار ته یې یوازې دومره وویل: احمقه! بیا یې پګړۍ همالته پرېښوده اوپه منډه وړاندې ورغی.

- بادار‌ه! بادار‌ه! ته راغلې. د بګوان ډېره لویه مهرباني ده. شکنتلا دېوی له ډېرې مودې را په دیخوا ستا د راتلو لارې څارلې. دا یې وویل او بیا ور ټیټ شو. د رنبیر د پښو ښکلولو هڅه یې وکړه، خو رنبیر یې ژر لاس ونیول.

شمبونات دده سره خوا په خوا ملګری شو او ویې ویل باداره! موږ ډېر اندیښمن وو. شکنتلا دیوی سهار او ماښام ستا لارې څارلې. اوس به هم ستا په انتظار دهغې د کوټې ډیوه بلیږي.

دا په دغه ګرمی کې هم د شپې په هماغه کوټه کې ویده کیږي، زه له هغه خبر وم، باداره!

- نه کاکا! زه هغه پخپله راویښوم، رنبیر ګرندی د دروازې په لور ورغی.

په دې څنګ کې یوه بل نوکر یوه نوکره راویښه کړې وه او دروازه یې خلاصه کړې وه.

. رنبیر ننووت او د انګړ نه چې تیر شو د پاسنی پوړ پر زینو وخوت، لږ څنګ وروسته دی دخپل کور په یوه روښانه کوټه کې و، دهغه مساپر په خیر چې ډیره موده په بې اوبو او وښو بیابان کې له سرګردانی وروسته د خپلو هیلو بڼ وویني.

شکنتلا پرخپله بستره ویده وه او دده داسې احساسوله چې د وخت شیبې تم شوی دي، دده وړوکی خوږ لویه ښځه شوې وه. خو پر څیره یې تراوسه د یوې ماشومې معصومیت و. رنبیر تر څه څنډه چوپ او بې حرکته د هغې د بسترې په مخ کې دریدلی و او دې ته یې کتل، سترګې یې د مننې له اوښکو څخه ډکې شوې. بالاخره ورتیت شو خپل ریږدیدونکی لاس یې د شکنتلا پر تندی کیښود او په ژړغونی غږ یې وویل:

شکنتلا. شکنتلا!

- څوک یې! شکنتلا ټکان وخوړ او سترګې یې وغړولې.

- شکنتلا! زه رنبیر یم. هغه په لړزیدلی اواز وویل:

شکنتلا څو شیبې د سکتې په حالت کې رنبیر ته کتل، رنبیر دی ته نژدې کیناست او غیږ یې خلاصه کړه. دا جګه شوه او بې اختیاره دخپل ورور سره غاړه غړې شوه: وروره! وروره! تر دې زیات یې څه ونه ویلی شول. د الفاظو ځپې تر شونډو پورې رسیدې. خو په سلګیو بدلیدې او دی دیوې ماشومې په څیر په زوره زوره وژړل. ناڅاپه شاته شوه او په خبر یې رنبیر ته وکتل. د رنبیر له سترګو هم اوښکې روانې وې.

شکنتلا له لږ څنډ وروسته بیا چیغې کړې:

وروره وروره! ماته ووایه آیا دا خو به خوب نه وي؟
رنبیر دهغې په غاړه کې لاس ورواچول او بیا یې سر پر خپل تټر پورې کلك کړ ځواب یې ورکړ:
نه شکنتلا! دا خوب نه دی، نور به موږ یو د بل په باب خوبونه نه وینو، اوس به تانه د خپل ورور لپاره هره ورځ د ډیوی بلولو اړتیا نه وي.
لږ ځنډ وروسته ورور او خور یو بل ته مخامخ ناست وو او یو پر بل یې په اوښکو لمدې موسکاوې ښندلې، شکنتلا وویل:
وروره! ما به په خپلو خوبونو کې تل دا لیدل چې د شپې مهال ته راغلی وې، ددې کړکۍ له لارې!
رنبیر ځواب ورکړ: یو ځل زه ددې کړکۍ له لارې راغلی وم، خو دلته ستا پر ځای یوه بله نجلۍ وه.
د جی کرشن لور ما دهغې په اړه اوریدلی دی دا هغې ته زموږ نوکرې ویلې وو چې زما کوټې ته د شپې لکشمي دیوي راځي ځکه خو دی هم زما په خبر تو له شپه ډیوه بله ساتله. د کلي ښځو دا هم ویل چې دا یې له خپل پلار نه ډیره بل ډول وه. دا زما په ورکیدو ډیره خپه شوې وه او جي کرشن دی مجبور کړی و، چې زما د موندلو پر سرانعام وټاکي.
رنبیر وویل: شکنتلا! زه اوس اوس غواړم ستا په باب څه واورم.
شکنتلا وویل: نه وروره! اوس ته خوب ته اړتیا لرې. ډیر ستومانه یې. کله چې له خوبه راویښ شوې، نو بیا به څو ځاښته له تاسره کیسې کوم. دلته ښایی ستا ګرمي وشي، زه پاس په دالان کې تاته بستره غوړوم.
رنبیر وویل: اوس زما آرام ته اړتیا نشته، ستا په لیدو مې ستومانې لرې شوه.
نو زه څه د خوراك لپاره راوړم! شکنتلا دا وویل او جګه شوه او د دروازې په لور ولاړه. رنبیر وویل:
شکنتلا! ودریږه! ډوډۍ ته ضرورت نشته ، کوم نوکر ته ووایه چې زما لپاره یوازې د شرومبو یو جام راوړي. ډوډۍ ما په لاره کې له یوه سردار سره خوړلې ده

لږځنډ وروسته شکنتلا د رنبیر په مخکې په یوه کرسۍ ناسته وه او خپله کیسه یې ورته اوروله.

......

سهار کېدونکی و، د ځو ورځو پرله پسې نا آرامۍ سره سره رنبیر د ستوماني او خوب احساس نه کاوه. ناڅاپه یې له لرې یو غږ واورید او شکنتلا یې دلاس په اشاره چوپه کړه ویې ویل:

دا د څه غږ و شکنتلا! داسې احساسوم چې په کلي کې خوك آذان کوي.

شکنتلا په ځیرځیر خپل ورور ته وکتل او له لږ ځنډ وروسته یې ورته وویل:

هوکې وروره! دلته یو ناآشنا سړی راغلی دی. د هغه د خبرو په اوریدو د کلي څو تنه مسلمانان شوي دي. کاکا شمبو وایي چې د هغه په ژبه کې جادو دی.

- شکنتلا ته ویده شه. زه لږ بهر ته ځم!

رنبیر دا وویل: جګ شو. د دروازې په لور ولاړ.

شکنتلا لږ پریشانه شوه پوښتنه یې وکړه: وروره ته چیرته ځې؟

زه چې بیرته راغلم درته به وایم. رنبیر دا وویل او بهر ته ووت.

شکنتلا تر ډیره د اندیښنې په حالت کې ناسته وه. بیا جګه شوه بام ته وختله او په خلاصه هوا کې یې قدم وهل پیل کړل. له آسمان څخه وریځې لرې شوې وې، پرختیز افق د لمر راختو نښې راښکاره شوې. تر لږ ځنده پر بام له قدم وهلو وروسته شکنتلا په بیره بیرته راکوزه شوه. یوې خدمتګارې ته یې د ناشتې تیارولو امر وکړ او بیرته پاس وختله.

دی په وار وار له ځانه پوښتل: ورور مې چیرته ولاړ. ډیر ځنډ یې وکړ، بالآخره دالان ته ننوته د مرمر ډبرو په چوتره کیناستله.

ناڅاپه د رنبیر غږ اوچت شو، شکنتلا!

او دی په زړه کې دخوښۍ ټکانونه احساس کړل. جګه شوه، رنبیر په زینو کې ورښکاره شو او ورو ورو یې ګامونه اخستل، ددې په لور ور روان و.

شکنتلا له ګیلو څخه به ډکه لهجه وویل وروره! تا ډیر ځنډ وکړ زه اندیښمنه شوم ته چیرته تللی وې؟

رنبیر پر چوتره کیناست وې ویل: کینه شکنتلا!
شکنتلا کیناسته او رنبیر ته یې په پوښتونکي نظر وکتل، رنبیر له لږ
ځنډ وروسته وویل:
شکنتلا زه تاته یو زیری درکوم، زه ....)
هو وروره ووایه ولې چوپ شوې...
زه ویریږم چې ته له مانه مروره نه شې.
وروره زه چې له تا نه مروره شم ژوندی نشم پاتې کیدای، زما لپاره
دښیګړی او بدی معیار ستا خوښه ده، زه پوهیږم چې ته څه غواړې ووایې،
همدغه که نه چې ته مسلمان شوی یې؟
- هوکی! خو تا ته څه ډول معلومه شوه؟
- لومړی ته دا ووایه چې تا ماته همدغه ویل غوښتل!
هوکې ما همدغه ویل، رنبیر په مینه د هغې پر سرلاس راتېر کړ او ځواب
یې ورکړ:
-او تا چې آذان واورید د لمانځه لپاره ولاړې!
- هوکې!
- وروره! زما به له تانه دا ګیله وي چې تا ماته دا خبر ولې لومړی نه
راکاوه. ماته خو هغه ورځ معلومه شوه چې ستا دوست دلته راغلی و.
- څوك. عبدالواحد؟
- هوکې!
- مګر هغه ته خو دا معلومه نه وه چې زه مسلمان شوی یم ما په هغه ورځ
کلمه وویله چې کور ته ستا د راتلو پیغام راورسید.
هغه ماته دا ونه ویل چې ته مسلمان شوي یې، خو دهغه د خبرو له
اوریدو وروسته زما زړه ګواهي راکوله چې د هغه یو دوست هم د هغه له
مذهب سره له مینې پرته نشي پاتې کیدای. بلکې دهغه دښمن به هم چې هغه
له نژدې ووینی له مذهب څخه یې کرکه نشي کولی.
- او زه له دې خبرې ویریدم چې که زما کشری خور زما له خولې د اسلام
خبره واوري زما د مخ د شکولو لپاره به تیاره شي

- نن له لمانځه وروسته ما په ډېره عاجزۍ دا دعا وغوښتله چې تاته خدای جل جلاله د اسلام دمنلو توفیق دروبخښي.
- د شکنتلا په سترګو کې د خوښۍ اوښکې ځلیدې ویې ویل:
وروره! ستا دُعا قبوله شویده، ما له ډېرو ورځو راهیسې د اسلام پر حقانیت ایمان راوړی دی او نن به د کلي ټولې ښځې راوغواړم او دا اعلان به وکړم چې زه مسلمانه شوې یم.
لږ ځنډ دواړو چوپ یو بل ته کتل. بیا د شکنتلا پر شونډو شوخه موسکا راوغوړځیده ویې ویل:
ته خو به پردې خبره خپه شوی نه وې وروره!
- زه هیڅکله له تا نه نشم خفه کیدای. زه پر تا ویاړم. که پر دې خبر وای چې زما د خور ضمیر دومره روښانه دی. نو دومره موده به زړه نا زړه نه اوسیدم. ماته دُعا کوه چې خدای همت او ټینګار راکړي.
- وروره! ته داسې ویلو ته ضرورت نه لرې. زما ټولې دعاګانې ستا لپاره دي. زما نه پرته د کلي ډېر نور کسان ستالپاره دعا کوي.
- رنبیر وویل: زه چې نن کله لمانځه ته ولاړم. نو جمعه ولاړه وه. زه په وروستي صف کې ودریدم. له لمانځه نه وروسته چې خلکو ولیدم له خوښۍ راسره تر غاړې وتل امام هم په غیږ ستړی مشی راسره وکړه. ما له دوی سره وعده وکړه چې نن به د ماسپښین له لمانځه نه وروسته د کلي ټولو خلکو ته اسلام ته بلنه ورکوم.
شکنتلا ځواب ورکړ:
د اسلام د مُبلغ میرمن نژدې هره ورځ ماته راځي، ما هم له هغې سره وعده کړې وه چې کومه ورځ مې ورور راشي زه به دکلي دټولو ښځو په مخکې دمسلمانیدو اعلان کوم.
رنبیر وویل: فرض کړه که ما د جهالت لاره نه پریښودای بیا به دې څه کول؟
- وروره زما باور و چې ته د اسلام له رڼا نه سترګې نشې پټولی.
- بوازې د عبدالواحد له خبرو څخه ستا پردې خبره باور شوی و؟

شکنتلا ځواب ورکړ: زما بوازې دهغه له خبرو څخه پردې باور نه و شوی. بلکې د جي کرشن له لور سره چې نا کوم سلوك کړی و هغه هم ماته ددې یقین راکولو لپاره کافي و، چې ستا په خیالونو کې یو لوی انقلاب راغلی دی.

کله چې ما دغه کیسه د اسلام د مُبلغ میرمنې ته وکړه. هغې هم دا وویل چې ستا ورور تر ډیرې مودې له اسلام نه لرې نشي اوسیدای.

رنبیر وویل:

ما له دین سره خپل نوم هم بدل کړی دی او سر له نن څخه به دې ته خپل ورور د رنبیر پرځای. یوسف بولې:

- یوسف! زما دا نوم ډیر خوښ دی ورورہ. اوسر له نن څخه به دواړه یو بل په نویو نومونو پیژنو.

- تر اوسه پورې ما ستا لپاره په نامه فکر نه دی کړی.

-تا ته د فکر کولو ضرورت نشته د اسلام د مُبلغ میرمن ماته زبیده وايي. او زما هم دغه نوم خوښ دی

تر ماښامه دغه دوه نوي نومونه د کلي د هر واړه او زاړه خولو ته لویدلي وو.

په یوه اونۍ کې دننه د کلي تر نیمایي زیاتو کسانو اسلام ومانه او د ختو په هغه سپاچه چې اتو لسو کسانو په جمع لمونځ کاوه د یوه جومات جوړیدل پیل شول. د رنبیر په نوکرانو کې شمبونات تر ټولو وړاندې شو کله چې هغه ته معلومه شوه چې رنبیر او شکنتلا مسلمانان شوي دي. نو دې نیغ مُبلغ ته ورغی او ترې ويې پوښتل: د یوسف څخه مطلب څه دی؟

مُبلغ ځواب ورکړ: یوسف د یوه پیغمبر نوم دی

- پیغمبر څوك وي؟

-خدای چې کوم بندګان د نورو انسانانو د لارښوونې لپاره استوي، هغه ته پیغمبر وايي.

- د یوسف دکوم نوکر نوم ستا زده دی؟

-دهغه د کوم نوکر نوم خو ماته معلوم نه دی . خو له دې څخه ستا هدف څه دی؟

بادار! زما مطلب دادی چې زموږ سردار مسلمان شوی دی او هغه خپل نوم بدل کړی دی. یوسف یې نوم ایښی دی. زه هم غواړم مسلمان شم او زما هیله ده چې تاسو زما نوم هم بدل کړئ.

- نو تاسو لومړی مسلمان شئ بیا به پر نامه فکر وکړو.

- زه تیار یم.

لږ ځنډ وروسته شمبونات چې بیرته مانۍ ته راغی او ټول نوکران یې راټول کړل. اعلان یې وکړ چې زه مسلمان شوم او زما نوم ابراهیم دی.

هر څوک ښه واوری که له دې وروسته چا راته شمبونات وویل خبر به یې نه وي.

.....

یوسف به ټوله ورځ یا د جوماټ د جوړولو په کارکې بوخت و او یا به شاوخوا کلیو ته تللو او د اسلام تبلیغ به یې کاوه. زبیدې د کلي د مُبلغ له میرمنې څخه د قرآن درس لوستلو د کلي د نویو مسلمانو ښځو لپاره ددې د کور دروازه خلاصه وه او هغوی به هم له زبیدې سره د قرآن درس وایه.

د شپې مهال له ویده کیدو څخه دمخه خور او ورور ترځنده یو له بل سره خبرې کولې.

د تیرو وختونو خبرې چې زبیدې به یوسف ته دخپلو ستونزو کیسې کولې. ده به بیا زبیدې ته د ننده د جیل کیسې کولې د یوسف په زیاترو داستانونو کې د عبدالواحد یاد خامخا راتللو. د ورور له خور سره بیدریغه مینې او عقیدت زبیدې ته د عبدالواحد شخصیت نور هم درونډ او اوچت کړ،له وروستي ملاقات وروسته عبدالواحد ددې د هیلو او آرزوګانو مرکز شوی و، او دا به د هغه د همیشنی ملګرتیا له تصور سره خوښه او را تازه شوه. خو کله به یې چې د ورور د خبرو له اوریدو وروسته داسې احساس کړه چې دا هسې د خوبونو په نړۍ کې اوسي. دې به زیاتره دا سوچ کاوه چې عبدالواحد یاغیانو د ورمیږونو ماتولو او د لویدلیو د راپورته کولو. د مظلومود اوښکو پاکولو او سرګردانه انسانانو ته د لارې ښودلو لپاره پیدا شوی دی. هغه زما له کومې ښیګنې څخه اغیز من شوی نه دی.

که زما په ځای کومه بل نجلی په مصیبت کې راګیر شوی وای، نو ده به هغه هم د پام اړولو حقداره بلله. له داسې خیالونو سره به ددې زړه د لېږ خند لپاره ولوید

بیا به دی د لومړي لیدو تصور کاوه او په زړه کې به یې داسې سوالونه ورته راپیدا شول زه چې هغه ولیدم د څو شیبو لپاره ولې هك پك شو؟

دا آشا څوك ده؟ هغه ددې پوښتنې له ځوابه راته انکار وکړ؟

یوه ورځ یوسف د ننده د کوم بندي کیسه کوله ، زبیدې زړه نا زړه وپوښتل:

وروره ! د عبدالواحد میرمن ژوندی ده؟

یوسف ځواب ورکړ: تر اوسه د هغه واده نه دی شوی.

زبیدې لږ له جرئت څخه کار واخست وبې ویل:

که ته بده نه منې زه د یوې خبرې پوښتنه کوم.

- وپوښته؟

-آشا څوك ده؟

یوسف حیران شو ویې ویل:

تاته د آشا په باب څنګه معلومات وشو؟

- زه د هغې په باب هیڅ خبره نه یم. کله چې ستا دوست لومړی ځل زه ولیدم، نو له خولې یې بې اختیاره د آشا لفظ ووت.

بیا پریشانه غوندې شو ویې ویل چې ستا څیره یوې بلې نجلی ته ډېره ورته وه او زما نظر دوکه شو، بیا چې هغه دلته راغلی و، نو ما په دې ګومان چې آشا ښایی دده میرمن وي دهغې په باب د پوښتنې هڅه وکړه، خو ده دا راته وویل او چوپ شو چې ته اوس دا پوښتنه مه کوه، کله دی چې ورور راشي ، نو د آشا په باب به دې په ډېر څه خبره کړي.

یوسف وپوښتل: آیا ده وویل چې ستا څیره آشا ته ورته ده؟

- هوکې!

- یوسف له لږ خند وروسته وویل:

هغه پخپله مانه د آشا کیسه اورولې ده او دادومره دردناکه ده چې که یې ته واورې تکلیف به شې.

- زه به يې خامخا واورم وروره!

ډير ښه، يوسف دا وويل او د عبدالواحد او آشا کيسه يې پيل کړه، کله چې هغه د دغه دردناکې کيسې وروستۍ برخې اورولې، نو د زبيدې له ستر گو څخه اوښکې څڅيدلې.

عبدالواحد اوس دې ته يو معما نه و، بلکې يو داسې انسان و چې له ټول شان او عظمت سره د چا د مينې تکيې ته اړ و.

آيا زه ده ته آشا کيداى شم؟ دى به په وار وارله ځانه دا پوښتنه کوله.

پر بستره د پريوتو نه وروسته دى ته تر ډيره خوب ورنغى، د آشا نوم يې په وار وار په غوږو کې کړنگيده، بيا دا د خوبونوړى ته تللې وه، دا آشا وه او له عبدالواحد سره يې د غرونو شرشرو، خوړونو زړه وړونکې منظرې ليدلې، له دې وروسته د راجه سپاهيانو دوى تعقيبول او دوى په يوه لوړ غره منډې وهلې، دا ستړې شوې وه، عبدالواحد لاس ورکړى و د غره ځوکې ته چې ورسيدل په مخکې يې يوه تياره کنده وه او د وړاندې تلو هيڅ لاره نه وه. بيا د راجه سپاهيانو دوى ونيول او د توري ديوې مخې ته يې راوستل. يو ويرونکى انسان چاړه په لاس کې ولاړ و دوى چيغې وهلې، موږ خوشي کړئ، د بگوان لپاره موږ خوشي کړئ!

.....

يوه ورځ ماسپښين يوسف ساه نيولى د خپلې خور کوټې ته ورننوت او په زوره يې وويل:

زبيدې! زبيدې هغه راغى.

زبيدې ټکان وخوړ ويې ويل: څوك؟

- عبدالواحد، ما ته همدا اوس دهغه احوال راورسيد هغه له غزني څخه قنوج ته رارسيدلى دى او زه سبا ته هغه ته ورځم.

د زبيدې مخ له خوښۍ وبرقيده ويې ويل:

ته به بيرته کله راشې؟

يوسف دى ته مخامخ په کرسۍ کيناست ويې ويل:

زه به ډير زر بيرته راشم.

- ته هغه ورغوښتې يې؟

- نه. هغه استازی زما د ځای معلومولو لپاره را استولی دی، استازي يې دا هم وويل چې که هغه زيات مصروف نه وای، نو پخپله به راغلی وای.
زه اوس د دې لپاره ورځم چې دی دلته راوبولم، زما له هغه سره يو کار هم دی.
زبيدې دخپل زړه پر ټکانونو د راقابو کيدو هڅه وکړه ويې ويل: څه کار؟
يوسف تر لږ ځنډ سوچ وروسته وويل:
زبيدې! کله چې زه ستا په باب فکر کوم زما خيالونه يوې او بلې خواته له سرگردانۍ وروسته پر عبدالواحد ودريږي، زما زړه گواهي راکوی چې له ده پرته ستا د راتلونکی ښه ساتونکې بل څوك نشي کيداي، زما پردې هم باور دی چې تاسو به يو بل ته د تقدير لخوا ښه ملگري ثابت شی. زه له تلو د مخه ستا اجازه غواړم.
زبيدې د ځواب پر ځای خپل مخ په دواړو لاسونوپټ کړ.
يوسف له لږ ځنډ وروسته وويل:
زبيدې ستا خو به زما پر انتخاب څه اعتراض نه وي؟
زبيده بيله دې چې څه ووايي په منډه بلې کوټې ته ولاړه. يوسف تر ډيره پر کرسۍ ناست و، بيا يې وويل: زبيدې! دلته راشه.
زبيده زړه نا زړه له شرمه را تو له غونډې بيا دده مخې ته ودريده. سترگې يې پر ځمکه ښخې وې. او پر باړخوگانو يې د حيا سرې اوسپينې څپې راتلې. يوسف هغه تر لاس ونيوه او په خپل مخ کې يې کينوله او ويې ويل:
زبيدې! رام نات او روپ وتي تر اوسه بايد دلته رارسيدلی وای، زه د هغوی په باب انديښمن يم. که زه ستا په باب يوه ورځ وړاندې خبر وای، نو له دوی سره به راغلی وای.
زه اوس پر دې ويريږم چې د کاتياواړ د حدودو څخه د تيريدو په وخت کې نيول شوی نه وي که زما په غياب کې دلته را ورسيدل، نو خيال يې ساته. رام نات زما سره نيکي کړی دي. هغه زما ژوند ژغورلی دی، هغه ته دا احساس مه ورکوه چې په نړۍ کې يې هيڅوك نشته.
- نه غم مه کوه وروره! زه په ډيره ناکرارۍ د هغوی د راتلو انتظار کوم.
يوسف له کرسۍ جگ شو ويې ويل: ښه، زه اوس ځم.

زبیدې زړه نا زړه وویل: وروره! زه له تانه یوه پوښتنه کوم بده خو به نه منې؟

- نه وپوښته!

-تاته معلومه ده چې نرملا اوس چیرته ده؟

- ما ددې هڅه ونکړه چې هغه له سومنات څخه چیرته ولاړه، خوتاته هغه ولې دریاده شوه؟

-وروره! ماته په وار وار دا په خیال کې راځي چې هغه ستا له خوا د ښه سلوك حقداره وه،دکلي ښځو ماته وویل چې زما د ورکیدو نه وروسته به دا! درمسال ته ولاړه او زما لپاره به یې دعاګانې کولې، جی کرشن دی مجبور کړ چې زما د درك معلومونکو لپاره یې انعام وټاکه.

هغې ستا د ژوند د ژغورنې هڅه هم وکړه. نوکرانو ماته وویل چې ددې اوښکی تر هغو وچې نه شوې تر څو یې چې دا خبر وانه ورید چې ته روغ ووتې او کله چې دی دغه مانۍ پریښوده . نو ژړل یې. وروړ جانه! کله چې هغه دلته وه، نو ستا په زړه کې کله دا خیال راتیر شوی دی چې هغه له تا سره مینه کوي؟

یوسف ځواب ورکړ: هغه مهال ما یوازې همدا فکر کولی شوای چې هغه د جي کرشن لور ده.

- او اوس؟

- اوس د هغې په اړه فکر کول څه ګټه لري . زموږ لارې یو له بله د تل لپاره بیلې شوې، یوسف دا وویل او جګ شو او د سفر لپاره د جامو بدلولو لپاره بلې کوټې ته ولاړ.

• • •

د یوسف له سفر څخه یوه اونۍ تیره شوه ، نږدې ماسپښین پر آسمان وریځې راخورې وې او نری نری باران اوریده. زبیده د یوې کوټې د کړکۍ په مخکې ناسته وه او لاندې یې کتل، ناڅاپه بهر په برنډه کې دچا د پښو غږ اوچت شو او دی مخ وراړاوه ، دروازې ته یې وکتل ، چې یوسف کوټې ته ورننوت او دا جګه شوه ودریده.

- کښېنه زبیدې! هغه یې پر سر لاس کېښود وېې ویل زبیده کېناستله، یوسف له خپلې ملا څخه توره را خلاصه کړه پر دیوال یې پر یوه میخ ځړوله او بیا زبیدې ته نژدې کېناست.

زبیدې په تیتو تیتو سترګو خپل ورور ته کتل، د هغې زړه بې دریغه درزیده، یوسف وموسکل او ددې کاینات د خوښیو له کړسندو خنداګانو څخه ډک شول.

یوسف وویل: زبیدې! د راتلونکې سپوږمې په پنځم ستا ورا راځي، ماته ددې ضرورت نه و چې له عبدالواحد څخه غوښتنه وکړم، کله چې ما هغه ته وویل چې زه د یوې غوښتنې لپاره راغلی یم، نو هغه وویل ودرېږه، یوځل زما یو خواست واوره بیا دده له خبرو اوریدو وروسته ما داسې احساس کړه چې دهغه له نظره هیڅ خبره پټه نه ده، زبیدې ته د یوې خدمتګارې نه د یوې ملکې په حیث هغه ته ورځي.

زما اراده وه چې ستا واده ډېر په ډنګ ډونګ وکړم. خو عبدالواحد دغسې روایتونه نه خوښوي له هغه سره به په ورا یوازې پنځلس- شل کسه راځي . عبدالواحد له ما سره وعده کړې ده چې هر کال به د خپلې رخصتی ورځې دلته تیروي.

مابښام دا خبر په شاوخوا کلیو کې خپور شوې و چې د یوسف د خور واده د قنوج له پوځي والي سره کیدونکی دي. او ښځې او نارینه به ډله ډله یوسف او زبیدې ته د مبارکی لپاره راتلل.

یوولس ورځې وروسته زبیدې د خپل کور پر بام نویې میاشت لیدله، بیا یو سهار دی د واده جامې اغوستې وې او د ماهی په یوه پراخه کوټه کې ناسته وه، دکلي له ښځو پرته د شاوخوا کلیو دمسلمانو او نا مسلمانو سردارانو میرمنې او لورانې پرې ورټولې وې، یوه نجلی په منډه ورغله او د ننه یې چیغې کړې: ورا راغله.

د سترګو په رپ کې څو نجونو په منډه دکور د بام سر ته ځانونه ورسول، پاتې ښځې له کوره بهر میدان ته ووتلې او د ورا د راتلو په انتظار شوې. د ماهی له درشل څخه بهر د خلکو ګڼه ګونه ډېره زیاته وه، وراوال چې دروازې ته رانژدې شول له آسونو پلې شول، د سیمې مخورو د هغوی پر غاړو کې د

ګلونو امیلونه ورواچول، ورا ټول له زوم سره پنځلس تنه وو، په هغوی کې اته تنه د پوځ افسران او نور د قنوج مخور سرداران وو، کله چې دغه خلك انګړ ته ننوتل. نوښځو د سیمې د رواج سره سم یو زاګ پیل کړ.

ورا میلمستون ته مخامخ په یوه لویه خیمه کې کیناستله. عبدالواحد له خپلو جامو څخه یو ترکی ښکاریده، د خیمې پر شاوخوا راټولو خلکو سترګې پر هغه ګنډلې وې.

لږ ځنډ وروسته چې د نکاح مراسم ادا شول. نو دګاونډ د یوه نوابزاده سردار لور د زبیدې په غوږ کې وویل:

په بګوان سوګند ستا میړه خو دیوتا ته ورته دی. سبا ته نوکرانو د زبیدې ډولۍ اوچته کړه او بهر ته ووتل، د یوسف په سترګو کې بې اختیاره اوښکی راغلې.

له دروازې څخه بهر یې چې عبدالواحد او دهغه ملګري رخصت کړل، یوسف بیرته کور ته ننوت نو هرڅه ورته غمجن ښکاریدل. ده بیله دې چې له چا سره څه خبره وکړی د پاسنې پوړ یوې کوټې ته ولاړ ، دروازه یې بنده کړه او پر یوه کرسۍ کیناست.

بیا یې د یوه ماشوم په څیر وژړل او ویل یې:

زما خورې. زما شکنتلا. زما زبیدې!!

چا دروازه ور وټکوله ده غږ وکړ:

څوك یې؟

خدمتګارې ورغږ کړ، باداره! زه یم.

- څه خبره ده؟

خدمتګارې ځواب ورکړ : باداره یوه ښځه غواړی له تاسره ووینې.

- هغه څوك ده، زه اوس له چا سره نشم لیدای:

چا په کمزورې غږ وویل: صیب زه روپ وتي یم.

-روپ وتي ! یوسف په بیړه دروازه خلاصه کړه. له خدمتګارې سره یوه کمزوری او ډنګره ښځه ولاړه وه. یوسف څو شیبې حیران هغې ته کتل بیا یې وویل:

رام نات چیرته دی؟

د روپ وتي له سترګو اوښکې وبهېدلې او په سلګيو کې يې وويل:
زه خبره نه يم. زما ګومان دئ چې هغه به دلته را رسيدلی وي. زه له منډهير څخه له يوه بل سړي سره دلته راغلم. د ناروغۍ په سبب په يوه ځای کې موږ ايسار شوو، تراوسه هغه بايد دلته رارسيدلی وای، زه ويرېږم چې هغه نيول شوی نه وي.
يوسف وويل: راځه د ننه کينه په ډاډ خپله کيسه راته وکړه.
روپ وتي په يوه کرسۍ کيناسته.
يوسف ترې وپوښتل:
ته اوس دلته راورسيدې؟
- نه زه پرون ستاسو کلي ته راورسيدم، خو تاسو د خپلې خوو په واده مصروف وې ځکه خو مې مناسبه ونه بلله چې انديښمن دې کړم. موږ د يوه بزګر کره وو.
- ستا سره څوک دی؟
-زما سره د جي کرشن يو نوکر دی.
- کوم جي کرشن؟
- د نرملا پلار، که هغه زما مرسته نه وای کړې. نو تر اوسه به زه بيرته سومنات رسول شوې وم.
ماته د ټوله کيسه وکړه. يوسف دا وويل او په يوه کرسۍ کيناست او روپ وتي په تفصيل سره خپله کيسه ورته وکړه.
يوسف تر ډيره پورې سر ځوړند اچولې ؤ. بيا يې وويل:
په داسې وضعه کې رام نات له تا نه څو ورځې وړاندې بايد دلته رارسيدلی وای.
زه ويرېږم چې هغه په کوم مصيبت کې نه وي راګير شوی. خو ته ويرېږه مه، زه پخپله منډهير ته ورځم. دهغه احوال به واخلم. دجي کرشن نوکر چيرته دی؟
روپ وتي ځواب ورکړ: ما هغه له دروازې څخه بهر پريښود.
يوسف وويل: زه په راتلونکې اونۍ کې د خپلې خور د ليدو لپاره قنوج ته تلم.

خو اوس به هغې ته ووايم چې مندهير ته ځم.

هغوی به ډير لرې نه وی تللي ، زه تر لږځنډه هغه ووينم او بيرته راستنيږم، او سبا ته به له لمر ختو مخکې روان شم، د جي کرشن د نوکر نوم څه دی؟

روپ وتي ځواب ورکړ: ګوبند رام.

-زه هغه ميلمستون ته استوم، ته همدلته آرام وکړه، نوکره به ډوډۍ درته راوړي، يوسف دا وويل او بهر ووت.

نژدې ماسپښين يوسف بيرته راستون شو او روپ وتي ته يې وويل:

زما خور به راتلونکی هفته بيرته راشي، که عبدالواحد فرصت ومومند ، نو هغه به هم څو شپې همدلته ورسره و اوسي، ستا د علاج لپاره يوه ښه طبيب ته اړتيا ده، ما عبدالواحد ته وويل، هغه وعده وکړه چې قنوج ته ورسيږي يو ښه طبيب به د علاج لپاره راواستوی ، زه به سهار وختی ګوبند رام له ځان سره ملګری کړم او د مندهير په لور به ولاړ شم، هلته به دی زما په کار راشي.

# د دښمن په کور کې

ماښام مهال نرملا لاندې په بڼ کې چکر واهه چې ناڅاپه یې ګوبند رام ولید چې ددې پرخوا ور روان و، ډی د ویرې او اندیښنې په حال کې یوې او بلې خواته وکتل اوورانده ورغله، ګوبند رام لاس په نامه ودرید، په ملا خم شو او بیا یې وویل:
ما روپ وتي هلته ورسوله او راغلم.
نرملا ډاډمنه ساه واخسته ویې ویل:
ته څه وخت بیرته راستون شوې؟
- زه همدا اوس راورسیدم . سردار په کور کې نه و، ځکه پخپله تا ته راغلم چې خبر درکړم، ما د رام نات په باب ډیر بد خبر اوریدلی دی اوس د هغه د ژغورلو هیڅ لاره نشته؟
- نه . اوس له هغه سره مرسته زموږ له وسه وتلې، ته هم ډیر ناوخته بیرته راغلی. زما د روپ وتي په هکله ډیره اندیښنه وه
- د هغې د ناروغۍ په سبب په لاره کې څو ورځې موږ ایسار شوو.
نرملا وپوښتل: رنبیر په خپل کور کې و؟
ګوبند رام ځواب ورکړ:
هوکې! هغه اوس له ما سره راغلی دی.
د یوې شیبې لپاره د نرملا وینې په بارخوګانو کې راټولې شوې، بیا یې په ریږدیدلی غږ وویل:
رنبیر له تاسره راغلی، چیرته دی؟
- ما هغه په درم شاله کې پریښود او راغلم
- هغه دلته دڅه لپاره راغلی دی؟

- د رام نات د احوال لپاره.
- تا ته د هغه د خور په اړه څه معلومات شته؟
- هوکې! کومه ورځ چې موږ هلته ور ورسیدو په هماغه ورځ یې دخور ورا راغلې وه د هغې واده د قنوج له مسلمان حاکم سره شوی دی.
- له مسلمان سره؟
-هوکې! رنبیر هم مسلمان شوی دی.
- تا خو به دا خبره په ښار کې بل چاته نه وی کړې؟
- نه، تاسو ډاډه اوسئ، زه به دغه خبره هیچا ته هم و نه کړم.
-له ماسره وعده وکړه چې زما پلار جان ته به هم دغه خبره نه کوې.
- زه وعده کوم.
-رنبیر ته معلومه ده چې ته زما دلته ماته راتلې.
-هوکې! هغه پخپله زه تاته را استولی یم هغه غواړي له تاسره وګوري.
-نرملا له لږ ځنډ فکر کولو وروسته وویل:
ته هغه ته زماله لوري ووایه چې که ته تر اوسه پوری موږ د کرکې وړ نه بولي، نو زموږ د کور دروازه دې پر مخ بیرته ده. په درم شاله کې دی د تم کیدو ضرورت نشته. که هغه زما بلنه ومني نو دلته یې راوله . زه به هم هلته ځان درورسوم په کور کې که کوم نوکر دهغه په باب پوښتنه وکړه، نو ورته ووایه چې له ګوالیار څخه زما ماما زما پلار ته د څه ضروری کار لپاره رااستولی دی.
ګوبند رام وویل:
که سردار صیب له تا نه پوښتل چې په دې وخت کې ته د پلار کورته د څه لپاره ځې، نو څه به وایې؟
- هغه سومنات ته تللی دی، خو که هغه دلته وای هم د پلار جان کره دتلو لپاره ماته له ده څخه د اجازې ضرورت نشته.
د ګوبند رام له رخصتولو وروسته نرملا خپلې مانۍ ته مخه کړه، هغې په خپل زړه کې په یوه وخت کې خوښي، ویره او خپګان احساساوه . دهغې پښې ریږدیدلې. لږ ځنډ وروسته په بګۍ کې کیناستله او دخپل پلار کورته روانه شوه.

* * *

نرملا د یوې کوټې په دروازه کې ولاړه وه او انګړ ته یې کتل، پیاری لال ګړندی ګامونه اخستل او وړاندې ورغی وې ویل:
تاسو زه رابللی یم.
دی وویل:
هوکې! زه دا پوښتنه کوم چې پلار جان تر اوسه پورې ولې رانه غی؟
- بي بي! هغه ماته دا وویل او ولاړ چې تر ماښامه به بېرته راشي. خو امکان لري چې هغه د بل کلي د کښت د لیدو لپاره تللی وي او نن شپه همالته ایسار شي.
- ته همدا اوس پر آس سپور شه، ورته ورته ووایه چې یو میلمه راغلی دی، سمدستي کور ته راشه!
- میلمه چیرته دی؟
-ته وخت مه تیروه میلمه به تر لږ ځنډه راورسیږي.
پیاری لال وویل: د ګوبند رام احوال درته راغلی؟
نرملا ځواب ورکړ: هوکې! خو اوس د خبرو وخت نه دی، ته سمدستي پلار جان ته ورشه او درسره راېې وله.
پیاري لال غوښتل چې نور څه ووایي، خو چې د نرملا وضع یې ولیده چوپ د طبیلې په لور روان شو، نرملا تر لږ ځنډه په برنډه کې قدم واهه، بیا کوټې ته ولاړه او پر یوه کرسۍ کیناستله. د رنبیر په اړه یې هره شیبه اندېښنه زیاتیدله، یوسف او ګوبند رام د چې کرشن کور ته ننوتل ګوبند رام د یوسف آس تر جلب نیولی و، له دېرشل څخه دننه یوه نوکره ولاړه وه، هغه وروړاندې شوه، له یوسف څخه یې وپوښتل:
ته د ګوالیار څخه راغلی یې؟
یوسف ددې پوښتنې پر ځواب فکر کاوه چې ګوبند رام وروړاندې شو، ویې ویل:
هوکې! دی دننه درسره بوزه!
نوکرې وویل: راځه!

یوسف په نوکره پسې روان شو، له پراخ انګړ څخه تیر شول او بیا یوې برنډې ته ورننوتل خدمتګاره د یوې روښانه کوټې په دروازه کې ودریده او ویې ویل:

تاسو د ننه تشریف یوسئ! زه به نرملا دیوي راوغواړم.

یوسف زړه نازړه کوټې ته ننوت او پر یوه کرسۍ کیناست، هره شیبه د هغه د زړه درزا ګړندۍ کیدله، لږ ځنډ وروسته یې ښي لاس ته د یوې بلې کوټې د دروازې د خلاصیدو غږ واورید، مخ یې ورواړاوه او ناڅاپه جګ شو او ودرید.

نرملا په دروازه کې ولاړه وه، یوسف سترګې ښکته واچولې، خو یو تصویر یې پرلپسې د ذهن پر پرده ګرځیده.

نرملا وړاندې ورغله ویې ویل: مهرباني وکړئ!

یوسف بیا پر کرسۍ کیناست.

نرملا له لږ ځنډ وروسته وویل:

پلار جان نن د کښتونو د لیدو لپاره تللی و، هیله ده تر لږ ځنډه پورې راورسیږي.

یوسف وویل:

ته خبره یې چې زه د څه لپاره راغلی یم؟

نرملا د یوسف په مخ کې پر بله کرسۍ کیناستله ویې ویل:

هوکې خبره یم! خو اوس د رام نات ژغورل د چا د وس خبره نه ده، هغه د سومنات د مذهبي پیشوا سره بندي دی.

- ستا باور دی چې هغه تر اوسه ژوندی دی؟

- هوکې! هغه به ونه وژني، هغه هره ورځ تر مرګ د سختو سزاګانو لپاره ژوندی ساتي، له هغه څخه به دا پوښتي چې روپ وتي چیرته ده؟

له مندر څخه د هغې ایستونکی څوك وو، زه پوهیږم چې هغه ستا دوست وو او ته به پرې ډیر خپه وې، خو دریغه چې ما یې مرسته کولی شوای.

یوسف وویل:

تا چې تر اوسه پورې څه کړي دي زه ستا او ستا د پلار مننه کوم.

- ستا له خولې زما لپاره دا ډېر لوی انعام دی، زه غواړم یوه وعده راسره وکړې.

ووایه!

- له ماسره وعده وکړه چې سومنات ته به په رام نات پسې نه ورځې.

یوسف ځواب ورکړ: زه پوهېږم چې اوس زه هلته ورشم هیڅ هم نشم کولی، خو که کومه ورځ ما ته دا هیله راپیدا شوه چې له خپل سره پر تیریدو دخپل دوست ژوند ژغورلی شم،نو هلته به خامخا ورځم.

- زه هم همدغه وایم چې که ته اوس هلته د ورتلو خطر ومنې هم د خپل آشنا لپاره هیڅ نشی کولی.

- زما سمدستي هلته د تلو اراده نشته، خوهغه ورځ به زر راشی چې د سومنات دیوالونه به زما لاره بنده نه کړي.

تر لږ ځنډ دواړه چوپ وو بیا نرملا جگه شوه ویې ویل:

زه ستا لپاره ډوډۍ راغواړم.

- نه ما ډوډۍ ماښام خوړلې ده.

- نه اوس مې هیڅ شی ته ضرورت نشته.

نرملا مایوسه بیرته پر خپل ځای کیناستله او ویې ویل:

ستا په خور چې خبره شوم ډیره خوښه شوم، که ته بده نه منې زه د هغې د واده لپاره یوه تحفه استوم.

یوسف موسکی شو ویې ویل: ستا تحفه هغې ته ورسیده.

-کومه تحفه؟

- هغه بنگړی چې تا هلته پریښي وو.

-هغه زما نه وو، د نرملا په سترگو کې اوښکي وځلیدې.

یوسف وویل: پلار جان دې تر اوسه رانه غي، زه پخوا له دې چې له دې ځایه ولاړ شم غواړم له هغه سره ووینم.

نرملا ځواب ورکړ: ما په هغه پسې نوکر استولی دی.

- خو نن ته نشي تلای.

- دا ستا حُکم دی؟

- نه ، هیله ده، که څه هم زه اوس له تا څخه د هیلې حق هم نه لرم.

یوسف غوښتل څه ووايي خو ناڅاپه يې احساس کړه چې ديوه پاڼ پر ځنډه دريدلی دی، دده ضمير ويل: يوسفه را سنبال شه تير وختونه بيرته نشي راګرځولي، ستاسو ترمنځ يو لوړ ديوال دريدلی دی، ستاسو لارې د تل لپاره يوله بله بيلې شوی دي، هغه د درد او غم له زوره سترګې پټې کړې.

نرملا ښايي دهغه له څيرې څخه د زړه کيفيت احساس کړی وي، په ريږديدونکی غږ يې وويل:

رنبيره! رنبيره ماته وګوره!

د يوسف ټول بدن په لړزه شو، سر يې پورته کړ او نرملا ته يې وکتل، د هغې له سترګو اوښکی روانې وې، يوسف بيرته سترګې ښکته واچولې او په دردناك آواز يې وويل:

نه نه، زه تا ته د کتلو هيڅ حق نه لرم. په ژوند کې زموږ لارې له يو بل څخه د تل لپاره بيلې شوی دي، زما نوم رنبير نه دی يوسف دی.

- زه خبره يم چې ته مسلمان شوی يې. خو زه به په هره لاره کې په تا پسې درځم.

د يوسف حواس پوره راويښ شول جګ شو ويې ويل:

ته ماته په وار وار دا احساس مه راکوه چې ما دلته په راتلو اشتباه وکړه.

نرملا وويل: زه تا له تلو څخه نشم راګرځولی خو زه به هميشه په تا پسې چيغې وهم.

يوسف لږ په نرمه لهجه وويل:

خو نرملا اوس ستا واده شوی دی.

هغه په سلګيو شوه ويې ويل: پر ما ملنډې مه وهه رنبيره! زما قربانۍ ته واده مه وايه، زما له هغه نه کرکه ده.

د يوسف زغم پای ته ورسيد، بيله دې چې څه ووايي د دروازې په لور ولاړ، نرملا چيغې کړې:

ودريږه، رنبيره له مانه مرور مه ځه! زه ليونۍ يم ومې بخښه.

يوسف ودريد، خو په هغه کې دا همت نه و چې بيا سترګې پورته کړي او نرملا ته وګوري.

خدمتګاره ساه نيولی د نه ورننوته او ويې ويل:

یوسف غوښتل څه ووایي خو ناڅاپه یې احساس کړه چې دیوه پاڼ پر څنډه دریدلی دی، دده ضمیر ویل: یوسفه را سنبال شه تیر وختونه بیرته نشي راګرځولی، ستاسو ترمنځ یو لوړ دیوال دریدلی دی، ستاسو لارې د تل لپاره یوله بله بیلې شوی دي، هغه د درد او غم له زوره سترګې پټې کړې.

نرملا ښایی دهغه له څیری څخه د زړه کیفیت احساس کړی وي، په ریږدیدونکی غږ یې وویل:

رنبیره! رنبیره ماته وګوره!

د یوسف ټول بدن په لړزه شو، سر یې پورته کړ او نرملا ته یې وکتل، د هغې له سترګو اوښکی روانې وې، یوسف بیرته سترګې ښکته واچولې او په دردناك آواز یې وویل:

نه نه، زه تا ته د کتلو هیڅ حق نه لرم. په ژوند کې زموږ لارې له یو بل څخه د تل لپاره بیلې شوی دي، زما نوم رنبیر نه دی یوسف دی.

- زه خبره یم چې ته مسلمان شوی یې. خو زه به په هره لاره کې په تا پسې درځم.

د یوسف حواس پوره راویښ شول جګ شو ویې ویل:

ته ماته په وار وار دا احساس مه راکوه چې ما دلته په راتلو اشتباه وکړه.

نرملا وویل: زه تا له تلو څخه نشم راګرځولی خو زه به همیشه په تا پسې چیغې وهم.

یوسف لږ په نرمه لهجه وویل:

خو نرملا اوس ستا واده شوی دی.

هغه په سلګیو شوه ویې ویل: پر ما ملنډې مه وهه رنبیره ! زما قربانی ته واده مه وایه، زما له هغه نه کرکه ده.

د یوسف زغم پای ته ورسید، بیله دې چې څه ووایي د دروازې په لور ولاړ، نرملا چیغې کړې:

ودریږه، رنبیره له مانه مرور مه ځه! زه لیونی یم ومې بخښه.

یوسف ودرید، خو په هغه کې دا همت نه و چې بیا سترګې پورته کړي او نرملا ته وګوري.

خدمتګاره ساه نیولی د ننه ورننوته او ویې ویل:

نرملا ديوي! سردار صيب راغی.

نرملا خپلې اوښکې پاکې کړې هغې ته يې وويل:

ورشه دلته يې راوله.

خدمتګارې مخ واړاوه اوله دروازې څخه يې بهر ته وکتل، ويې ويل:

هغه دی راغی!

يوسف زړه نا زړه ولاړ و، جی کرشن کوټې ته ورننوت، نرملا هم جګه شوه ودريده.

جي کرشن چې يوسف تـه وکتل سترګې يې پرې ښخې کړې او ويې ويل:

ته!

زما دا اميد نه و چې ته به يو وخت زما کور ته د ميلمه په توګه راشې.

يوسف د هغـه لاس پـه لاس کې ونيو او تر لږ ځنډه دواړو چوپ يو بل ته کتل.

جي کرشن بيا وويل: مهرباني وکړه!

يوسف پر کرسۍ کيناست.

جی کرشن له هغه سره نژدې کيناست نرملا ته يې وويل: کينه لوری ! تا ده ته ډوډۍ راوړی که نه؟

- نه پلار جانه! دی زموږ دکور ډوډۍ نه خوري.

يوسف وويـل: مـا پخوا له دې چې دلتـه راورسيږم ډوډۍ مې وخوړله، خو ستاسو د ګيلې لرې کولو لپاره د څو غوړ په شيدو څښلو ته تيار يم.

نرملا وويل : زه به يې اوس راوړم او بيا له کوټې ووتله.

جي کرشن او يوسف تر لږ ځنډه په چوپتيا يو بل ته کتل ، بيا جي کرشن وويل:

هغه نجلۍ تاسو ته در ورسيده؟

يوسف ځواب ورکړ: هوکې! زه د هغې په اړه ستا مننه کوم، زما خور هم کورته راورسيده.

څه وخت؟

- هغه پر ګواليار د مسلمانانوله حملې نـه سمدستی وروسته رارسيدلی وه، زه په سومنات کې ناوخته خبر شوم.

-هغه چيرته وه؟
-په ګواليار کې يې د يوه بې وزله بزرګر کره پناه اخستې وه.
جي کرشن له څه سوچ وروسته وويل:
ښايي ستا زما پر خبره باور رانشي، خو بګوان پوهيږي چې ما ستا د خور لپاره دعاګانې کولې.
زما له لور سره چې تا کومه ميړانه کړې وه، هغه يو کانې هم ويلې کولی شي، نن چې زما اروا ته کومه آرامي ورپه برخه شوه ددې اټکل ښايي ته ونکړای شې.
نرملا د سپينو زرو په يوه جام کې شيدې راوړې او کوټې ته ورننوته. يوسف د هغې له لاسه جام واخست او شيدې يې وڅښلې چې جام يې بيرته ورکړ ويې ويل:
اوس خو دې له مانه څه ګيله نشته؟
نرملا پر خپلو غمجنو شونډو د موسکا راوړو هڅه وکړه ځواب يې ورکړ:
نه!
خدمتګاره بيا کوټې ته ورننوته او د نرملا له لاسه يې تش جام واخست او بهر ته ولاړه. نرملا د خپل پلار په اشاره هغه ته نژدې په يوه کرسۍ کيناسته.
يوسف وويل: زه د رام نات په احوال پسې راغلې يم.
جي کرشن وويل:
زه افسوس کوم ما دده د خبرولو هڅه وکړه، خو زما د نوکر لږغفلت خبره خرابه کړه اوس هغه د مذهبي پيشوا په زندان کې دی، کاشکې ما دهغه لپاره څه کولی شوای.
د مذهبي پيشوا په وړاندې ددې هيواد تر ټولو لوی واکمن هم سون نشي وهلې.
رام نات اوس يوازې کوم غيبي ځواك ژغورلی شي.
يوسف وويل:
هغه ځواك چې د سومنات اوسپنيزې دروازې ماتې کړی راپيدا شوی دی، کومه توره چې محمود غزنوی له تيکي را ايستلې ده هغه ددې هيواد په سلګيو، زګيرويو او څنکدن کې دپراته انسانيت د فرياد ځواب دی.

جي کرشن وویل:

ستا باور دی چې هغه به تر سومنات پورې ورسیږي؟

- زما باور دی.

-تاته د هغو ځواکونو اندازه معلومه ده چې دهغه د لارې بندولو لپاره سره یو کیږی او سنبالیږي؟

- هوکې!

- ته له دی سره دا وایی چې محمود به سومنات فتح کړي؟

- هوکې! زما باور دی چې دهغه لاره هیڅوك هم نشی نیولی، تقدیر چې د کوم هدف د بشپړیدو لپاره غزنوی محمود غوره کړی دی، هغه به پوره کیږي، هغه به د یوې تالندی غوندې راشي او د سومنات پر دروازه پهره پوځ به د خس او خاشاك په څیر په مخه کړي.

له خپلې لور څخه د روپ وتي د کیسې له اوریدو وروسته د مذهبی پیشوا په باب د جي کرشن عقیدت په کرکه بدل شوی وُ خو پر دې بر سیره دسومنات د بُت او د درمسال په باب دهغه عقیده او درناوی پر ځای وو، ځکه یې د خبرو اترو د لوری بدلولو په نیت وویل:

زما په خیال ته ستومانه شوی یې اوس باید ویده شې.

-نه! زه اوس له تاسو څخه اجازه غواړم.

-په دې وخت کې به چیرته ولاړ شې؟

- زه غواړم بیرته خپل ځای ته وګرځم.

جي کرشن وویل:

وضعه داسې ده چې زه تا راایسارولی نشم.

د مذهبی پیشوا جاسوسان د رام نات د دوستانو او ملګرو لټون کوي، په دې ښار کې د هغوی د جاسوسانو شمیر زیات هم دی.

یوسف وویل: له تلو وړاندې تا ته یوه ضروري خبره کوم.

- ووایه!

د قنوج راجه ستا د ځمکې یوه برخه زما پلار ته ورکړې وه. زه غواړم چې ستا کوم جایداد زموږ په واك کې بیرته یې تاته وسپارم، زما خور هم زما سره په دې پریکړه کې شریکه ده.

جی کرشن حیران شو، یو څل یې نرملا ته او بیا یوسف ته وکتل او ویې ویل:

زه ستا په مطلب ونه پوهیدم.

زما مطلب دا دی چې ما پریکړه کړې ده چې ستا ماڼۍ او جایداد بیرته تاته وسپارم.

جی کرشن په غمجنه لهجه وویل: رنبیره! زه پخوا د شرم او پښیمانۍ تر بار لاندې خولم یم د بګوان په خاطر ما نور مه شرمنده کوه.

یوسف اندیښمن شو ویې ویل: که زما له خبرو نه تاته څه صدمه رسیدلې وي، نو بخښنه غواړم، خو تاسو باید زما په اخلاص شك ونکړئ.

- زما ستا پر اخلاص شك نشته، خو د هغې ماڼۍ او ځمکې یاد ماته له زغم څخه وتلی دی.

یوسف وویل: موږ باید تیر شوی وختونه هیر کړو ستا ځمکه له ما سره امانت ده، ته چې کله وغواړئ بیرته یې اخستی شې.

- مګر هغه ځمکه خو له ما نه ستا پلار نه د قنوج راجه اخستې وه، اوس پر هغې زما هیڅ حق نشته، که تاسو دا ګڼئ چې پر هغو زما څه پاتې دي، نو زه له خپل حق څخه تیر یم.

- نه، زه غواړم چې ته د وروستی پریکړې څخه پخوا ښه سوچ وکړئ، که تاسو کومه ورځ خپل وطن ته د راتلو پریکړه وکړې.

نو د خپل جایداد او ځمکې په اړه به دې ته ضرورت نه وی چې ماته خپله وعده رایاده کړې، اوس ماته اجازه راکړئ! یوسف دا وویل او له ځایه پاڅید.

جي کرشن وویل: تر لږ ځنډه کینه! زه له تا نه یوه پوښتنه کوم.

یوسف کیناست، جي کرشن له لږ سوچ وروسته وویل:

ددې خبرې ډیره موده نه ده تیره شوی چې ته یوه ورځ زما د وژلو په نیت راغلی وې او نن قنوج ته د راتلو بلنه راکوې، زه ددې بدلون سبب پوښتلی شم؟

یوسف ځواب ورکړ: زه چې په کومو تروږمیو کې سرګردانه وم هغه لرې شوی دي، اوس زه تا د سهار په رڼا کې وینم، اوس زما په مخ کې زما د پلار

قاتل نه دی، بلکې هغه انسان دی چې د یوې بې وسه نجلۍ په خاطر یې دخپل خان خطر ته ورکولو نه دریغه ونکړه.

- زه تا نه باور درکوم چې که ما ځان ته کومه لویه خطره احساس کړې وای، ما به د روپ وتي مرسته نه وای کړې.

- د سومنات د دیوتا له ناخوښۍ نه لوی خطر بل څه کیدای شي؟

- ما د سومنات پر خلاف بغاوت نه دی کړي، زما هیله دا وه چې روپ وتي د پیشوا له ظلم څخه وژغورم.

- هغه ورځ لرې نه ده چې سومنات د هغه له مذهبي پیشوا څخه زیات د کرکې وړ وبولي، ما چې د ننده په جیل کې د کوم لمر رڼا لیدلې ده، هغه دلته په راښکاره کیدو دی، زه د رڼا له لیدو وروسته هم تر یوې مودې په تیارو کې سرګردانه وم، تاسو هم ښایي همداسې وکړئ، خو هغه ورځ لرې نه ده چې زما او ستاسو لاره به یوه شي، زما په خیر به تاسو ته هم تر هغه وخته اطمینان په برخه نشي تر څو د هغو بې شمیرو دیوتاګانو څخه مخ وانه ړوی، دهغه خدای د لویي او پاکۍ په وړاندې سر ښکته نکړئ، چې ځمکه او آسمان یې پیدا کړي دي په پاچاهۍ کې شریک نه لري، هغه بتان به چې له پیړیو راسې یوه انسان د بل انسان د ښکار لپاره وسیله ګرځولې دی یو یو ماتیږي، د انسانیت شعار به اوچت شي. ټیټ ذاتې او لوړ ذاتې به یو له بل سره غاړه غړې شي . انسان به د رنګ او نسب څخه نه، بلکې د عملونو څخه پیژندل کیږي.

جي کرشن وویل: رنبیره! ته مسلمان شوی یې؟

هوکې! او زما باور دی چې د راختونکې لمر څخه به تاسو هم سترګې پټې نه کړئ، اوس ماته اجازه راکړئ او دا په یاد لرئ چې ما له کوم شرط پرته تاسو ته قنوج ته د راتلو بلنه درکړې ده.

جي کرشن وویل: ودریږه! زه له تا نه غواړم دا وپوښتم چې که مسلمان شم، نو آیا ته به خوښ شې، په نړۍ کې هر څوک په خپل ماحول داسې خلک را ټولول غواړي چې په خپل ګومان یې هغوی تر ټولو غوره خلک وي، زه غواړم پر دې وپوهیږم چې ستا په زړه کې ماته د اسلام د تبلیغ او بلنې خیال څنګه را پیدا شو، او تا د خپل پلار د قاتل په اړه څنګه دا خیال وکړ چې د یوه لوی

هدف لپاره ستا ملګرتیا کولی شي، زه پر دې پوهیږم چې تا زما ګناه رابخښلې ده، خو زه دا چیرته منلی شم چې له ما سره دې کرکه په مینه بدله شوې ده؟

- ته باید پردې حیران نشې، زه پخپله یو داسې چا اسلام ته ور وبللم چې ما خپل دښمن باله، د ننډنه په جګړه کې له ماتې خوړلو وروسته یوه غونډۍ ما خپل وروستي مورچل وباله، هغه له خپلو سرتیرو سره دغه غونډۍ کلابنده کړه، ماته د ځان ژغورلو او تیښتې هیڅ لاره نه وه، وروستۍ پریکړه مې دا وه چې د دښمن زیات کسان ووژنم او تر ځان یې تیر کړم، خو هغه خپل سرتیرې شاته کړل او پخپله یوازې مخکې راغی، په ژبه کې یې جادو و او د هغه دخبرو تر اغیزې لاندې زما ډیرو ملګریو وسلې وغورځولې، د هغه خوږې خبرې ماته په زهرو د ککړ نشتر په څیر وې، د هغه موسکا ماته د ښکنځل په څیر وه، وینې مې په جوش راتلې، هغه زما د غشي دم ته برابر شو او د یوې شیبې لپاره زما تر ټولو لویه هیله دا شوه چې له راتلونکې څخه بې پروا شم او هغه په یوه ګوزار دمرګ په خوب ویده کړم، خو هغه یوه داسې خبره وکړه چې پر ما د ژوندي پاتې کیدو هیله زوروره شوه، له هغه وروسته ماته معلومه شوه چې په دنیا کې هغه زما تر ټولو ښه دوست دی، که په جګړه کې موږ یو بل ته مخامخ شوی وای، امکان لري چې یا زه د هغه او یا هغه زما قاتل وای، خو نن زه هغه ته په ورور ویلو ویاړم، د هغه، هماغه مهال هم له ما څخه کرکه نه وه چې ما خپله لینده او غشي د هغه په لور ور اړول، د هغه تر ټولو لویه غوښتنه دا وه چې زه مسلمان شم.

جې کرشن وویل:
او اوس ته له همدې غوښتنې سره ماته راغلی یې؟

- هوکې ! خو زه به تر هغوی پورې تاته د اسلام د منلو و نه وایم تر څو ستا زړه د هغه په ریښتینولې ګواهي ورنکړي.

جې کرشن وویل: اوس زما په هیڅ خبره سر نه خلاصیږي ، زه یوازې پردې پوهیږم چې د سردار موهن چند زوی له مانه بدل اخستی دی.
اوس به پاتې ټول عمر زما اروا نا آرامه وي.

رنبیره ! نا زه و نه وژلم، خو زما دنیا دې ویرانه کړه، اوس زما سره د شتمنۍ او ځمکې هیله نشته د حکومت آرزو نشته، تا زما ټولې دلچسپۍ ووژلې.

یوسف له کرسۍ څخه جګ شو ځواب یې ورکړ:

زه به ډیر زر په دې بله دنیا کې ستا هرکلی کوم چې ستا له دنیا څخه ډیره پراخه ،ښایسته او له پسرلیو ډکه ده، هلته چې ارمانونه تل ژوندي پاتې وي، د ظلم او تیري مانۍ چې د مظلومو او بېوسه انسانانو له هډوکو څخه جوړې شوی دي، د یوې جټکې انتظار باسي، زه یوازې دا غواړم چې ته د هغو خلکو په کتار کې و نه اوسې چې رنګو دیوالونو ته تکیه کوي.

جی کرشن له خپلې کرسۍ څخه جګ شو ویې ویل:

کاشکي دغه خبرې زما دماغ ته راتلاي، زه یوازې پردې پوهیږم چې چاته لاس نشم ورکولی.

یوسف نرملا ته په داسې نظر وکتل چې د رخصتیدو اجازه ترې غواړي، هغه جګه شوه پلار ته یې وکتل ویې ویل: پلار جانه! ودریږه، زه د ده د خور لپاره یوه تحفه ورکوم، بیا بلې کوټې ته ولاړه.

....

جی کرشن او یوسف په چوپه خوله یو بل ته کتل ، نرملا بیا کوټې ته ورغله او د سپینو زرو ډبلۍ یې یوسف ته وړاندې کړه، یوسف ډبلی پرانیست په هغې کې یې یوه ښکلې ګوتیې ولیده ویې ویل:

زما خور به ستا د تحفې په لیدو ډیره خوښه شي، نرملا غوښتل څه ووایی ، خو د احساساتو له توپاني کیدو سره یې د څه ویلو توان نه درلود.

څو شیبې هغې سترګې چې په زرګونو هیلې او عذرونه پټې وو د یوسف پر څیره ښخې کړې.

یوسف جی کرشن ته وکتل ویې ویل:

درځه! دوی له کوټې څخه ووتل، نرملا حیرانه او چوپه ولاړه وه او په دهلیز کې یې د دوی د پښو غږ اورید، ددې پر سترګو ورو ورو د اوښکو پردې راوغوړیدې.

جي کرشن چې له یوسف سره انګړ ته ووت ، سپوږمۍ راختلې وه، د درشل مخې ته څو نوکران پر کټونو ناست وو او پخپلو کې سره ګړېدل، جی کرشن ، ګوبند رام ته غږ وکړ او هغه په منډه راغی جي کرشن ورته وويل:

ده ته زما مشکي آس زین کړه، او ګوره پیاري لال چیرته دی؟

- باداره! هغه د خپلې کوټې پر بام ویده دی.

هغه ته دلته راواستوه، او ته د یوه پرځاي دوه آسونه تیار کړه.

چې ګوبند رام ولاړ، یوسف له جی کرشن څخه وپوښتل دوه آسونه د څه لپاره؟

جی کرشن ځواب ورکړ:

زه غواړم یو نوکر له تا سره واستوم، د هغه کور ستاسو کلي ته نژدې دی، کله چې زه له هغه ځایه راووتم، دی راسره راغی، اوس یې د خپلوانو یاد ډیر ځوروي، هغه یوازې ستاله ویرې هلته د تلو جرئت نه کاوه. اوس به ته تسلې ورکړې، له ځان سره یې بوزه او له ځان سره یې نوکر وساته . هغه لږ احمق دي، خو وفادار دی. اوس د هغه دلته اوسیدل هسې هم سهي نه دي، ما دی د رام نات د خبرولو لپاره استولی و. زه ویرېږم چې که ده په سادګۍ چاته دا خبره وکړه چې ما د رام نات د ژغورلو هڅه کړې ده . نو پر موږ به مصیبت راشي، هغه دی راغی؟

پیاري لال سترګې مښلې او دوی ته نژدې ورغی، جی کرشن وويل:

پیاري لاله! که خپل کور ته ځې، نو ځان دې تیاروه!

باداره! ستا مطلب دادی چې زه خپل کورته د تلو لپاره تیار شم!

- هوکې ! تا ته هلته په تلو هیڅ خطر نشته، سردار رنبیر به پخپله له تا سره وي.

- سردار رنبیر!

- هوکې! سردار رنبیر ستا په مخکې ولاړ دی....

تا دی و نه پیژاند؟

پیاري لال د ځواب ورکولو پر ځای وارخطا شو یوسف ته یې وکتل.

یوسف وويل: اوس له ما څخه ستا د ویرې ضرورت نشته، ما ستا د ساتنې ذمه واري منلې ده.

جي کرشن وويل: ورځه زر ځان تيار کړه، ما ګوبند رام ته ويلي دي چې ستا لپاره يو آس زين کړي.

خو دلته بايد څوك ونه پوهيږي چې دی څوك دی.

- باداره! تاسو پر ما اعتماد وکړی، تر اوسه پورې ما د رام نات په اړه هم هيچاته څه نه دي ويلي.

خو تاسو بده مه منئ، زه يوازې ددې پوښتنه کوم چې دا همغه دی؟

- هوکې ! دا همغه دی؟

- باداره! زما مطلب دادی چې دي د سردار موهن چند زوی دی؟

-هوکي! که ستا باور نه راځي ورشه له نرملا څخه وپوښته، خو پر خبرو وخت مه تيروه.

- باداره ! ما وبخښه ، زما دا تمه نه وه چې هغه به دلته راشي، اوس به را تيار شم. دا يې وويل او د خپلې کوټې په لور يې منډه واخسته، له هغه ځايه يې د لرګي يو وړوکی صندوق راواخست بهر يې د سپوږمۍ په رڼا کې سرتري پورته کړ، په يوه وړوکي کڅوړه کې يې روپۍ راواخستې بيا يې دوه جوړه جامې راواخستې په يوه دسمال کې يې غوټه کړې، بيا يې په زړه کې څه وروګرځيدل، غوټه يې تر تخرګ لاندې کړه او د نرملا په لور ورغی،له هغې نه يې د څو پوښتنو څخه وروسته د زړه ټول شکونه لرې شول او په منډه د طبيلې په لور ولاړ، ګوبند رام له دوو آسونو سره را روان و. د هغه له لاسه يې د يوه آس جلب واخست او ويې ويل:

ګوبند رامه! زه ډير لرې ځم، زما په کوټه کې چې څومره شيان دي هغه ټول ستا شول ، لږ ځنډ وروسته جي کرشن له کلا څخه بهر له يوسف او پياري لال سره مخه ښه کوله.



# له ملتان څخه وړاندې

د کالنجر له وروستيو عملياتو څخه تر راستنيدو وروسته نژدې يو نيم کال د سلطان محمود پوځونو دجنوب لوري د جګړې محاذونو ته پام ونکړای شو، په دې موده کې سومنات د هندوستان تر ټولو لوی دفاعي سنګر شوی وٌ. د هيواد په سلګونو راجه ګانو او سردارانو خپلې کلاګانې خوندي نه بللې او د سومنات په د ننه کې يې پناه اخسته، د مختلفو درمسالونو پالونکيوله خپلو سرو او سپينو او بُتانو سره سومنات ته مخه کوله.

د سومنات پالونکيو د خلکو د وينې تودولو په خاطر د هيواد په اوږده او ساره کې سفرونه کول . دوی خلکو ته د سومنات د عظمت . هيبت او ځواک افسانې اورولې او هغوی يې په يوه محاذ کې راټولولو ته هڅول.

هره ورځ له مختلفو لوريو څخه د رضاکارو سرتيرو دلې سومنات ته رسيدلې.

"سومنات نه درومو" ناره د هيواد په هر ګوټ کې د هندوستان په ملي شعار بدله شوې وه.

له دوو نيمو کلونو تياري وروسته د سومنات ساتونکيو دا سوچ کاوه چې بنايي سلطان محمود بيرته راونه ګرځي او دوی به د خپل ځواک د ښوولو لپاره غزني ته ولاړ شي، بيا هغه ورځ هم راغله چې دهندوستان په شمال کې د پنځو سيندونو سيمه" پنجاب" د اسلام د غازيانو د آسونو تر پښو لاندې لړزيدله.

سلطان محمود په ۴۱۶ هجري قمري کال د شعبان په ۲۲ مه له غزني څخه کوچ وکړ او د روژې په پنځلسمه ملتان ته ورسيد. له ښاره بهر يې په يوه هوار ميدان کې پړاو واچاوه.

د هغه منظم پوځ ډیرش زره تنه ازمویل شوي سپاره وو. خو په لاره کې به هر پړاو کې د رضاکارو ډلې ورسره یو ځای کیدلې. د ملتان او سومنات تر منځ هغه بیابان پروت و چې په ویروونکې پراخې سینې یې پښه ایښودل مرګ ته د بلنې په معنی وه. په لاره کې تر څو پړاوه د سپرو او آسونو لپاره د اوبو او خوراك موندلو امید نه و. سلطان د هر سپاهي د ضرورت او اړتیا . د خوراك څښاك لپاره دوه، دوه اوښان تیار کړل. پر دې سربیره یې شل زره اوښان یوازې د اوبو وړلو لپاره برابر کړل. د روژې د میاشتې تر پایه د بیابان د سفر تیاری بشپړ شوی و. د اختر له لمانځه وروسته سلطان په منبر جګ شو او دخپل پوځ سرتیرو او رضاکارو غازیانو ته یې دغه وینا وکړه:

"زما ملګریو! تاسو به اوریدلي وي چې موږ سبا ته له دې ځایه روانیږو. زموږ منزل لرې او لاره یې سخته ده. د سومنات جګړه زما په نظر په هندوستان کې د کفر او اسلام تر منځ وروستی جګړه ده په دې جنګ کې زموږ له فتحې وروسته به د راتلونکو نسلونو لپاره د اسلام لورته د بلنې لاره خلاصه وي او زموږ له ماتې سره به د هغو خلکو حوصلې ماتې شي چې په دې هیواد کې د انسانیت شعار لوړ غواړي. تاسو هغه نیکمرغه کسان یاست چې تقدیر د باطل د وروستي سنګر نړولو ته غوره کړي یاست.

د شهرت او نومیالي ثوب لپاره موږ په ډیرو هیوادونو کې آسونه ځغلولي دي. خو نن چې زه تاسو ته د کوم هدف په خاطر د توري اوچتولو بلنه کوم هغه زما له ذات څخه ډیر اوچت دی. که پر تاسو کې کوم څوك داسې وي چې یوازې زما د خوښۍ په خاطر په جګړه کې برخه اخلي، نو هغوی باید بیرته ستانه شي، زه یوازې هغو غازیانو ته اړتیا لرم چې د شهادت آرزو لري.

سومنات د هغو تیارو وروستی پناه ځای دی چې موږ په هغو پسې د جمنا او ګنګا تر دښتو پورې تللي یو د سومنات د دیوالونو په مخه کې به ستاسو مقابله له هغو خلکو سره وي چې د کاڼو بوتان دخدای جل جلاله سره شریك ګڼي. د هغوی شمیر ستاسو له شمیر څخه او سامان یې ستاسو له وسلو او سامان څخه زیات دی. خو په یاد ولرئ!

د کومو مجاهدینو په وینو چې د تیر تاریخ روښانه بابونه لیکل شوي دي

• د هغوی شمیر د کفارو څخه تل لږ و. د زرو او یا سل زرو میړو بغاړې د

زمري له يو ځل غوريدو سره مقابله نشي کولی، د سومنات پالونکي د خپل لښکر پر شمير نازيږي، هغوي د خپلو بتانو پر مرسته تکيه کوي، خو که تاسو د زړه له اخلاصه پردې ايمان راوړی وي چې ماته او بری ستاسو د خدای جل جلاله په لاس کې دي، نو زه د بري زيري درکوم.

که تاسو يوازې د خدای جل جلاله د خوښي په خاطر پر مخ تلل غواړې، نو هيڅ دښته، غر او سمندر به ستاسو لاره بنده نکړای شي که تاسو غواړی چې د خدای جل جلاله دين لوړ وي، نو د دنيا ټول عظمتونه به ستاسو په پښو کې وي.

سبا ته د ملتان خلکو دغهستره قافله ليدله چې په ګردونو کې پټيدله او هدف يې سومنات و، د ستلج له سيند څخه له تيريدو وروسته دغه لښکر په هغه لويه دښته ورننوت چې د ريګونو څنډې يې د اُفق تر شنه آسمانه پورې غځيدلي ښکاريدې.

په دغه دښته کې ځای ځای له ځوزانو او وړوکو بوټيو پرته هيڅ هم نه وو راشنه شوي، د يخنی د موسم له پيل سره د دښتې د هوا په تودوخه کې هم په زړه پورې بدلون راغلی و. ټوله ورځ به مزله ستومانه پوځ به چې ماښام پړاو واچاوه، نو د دښتې چوپه غيرة به د اوښانو د برېږ او د آسونو د شيشنهار په نارو ډکه شوه، د شپې به سرتيري پر يخ ريګ ويده شول. د شپې په وروستی برخه کې به د نغارو غږ دوی له درانه خوبه راويښ کړل، بيا به د آذان غږ اوچت شو او دوی به د لمانځه لپاره راټول شول، د لمر لومړيو وړانګو به دغه قافله په داسې حال کې ليدله چې د بل منزل په لور به يې مزل پيل کړی و.

د خوراك او اوبو په ويش کې د بشپړې برابری او مساوات پر اصولو عمل کيده، سلطان او نورو لويو لويو سردارانو ته هم همدومره آذوقه "راشن" ورکول کيده څومره چې يوه عادي سرتيري ته حواله و.

په لاره کې سلطان د "لو درواه" په مشهوره کلا حمله وکړه، د کلا خلکو تر يوه وخته مقاومت او مقابله وکړه، خو د مسلمانانو د حملې په مخکې ټينګ نه شول. د سلطان سرتيري دغشو او ډبرولة باران څخه بې پروا پرې ورغلل او د زينو او کمندونو په واسطه پر کلا وروختل او د کلا ساتونکيو وسلې

وغورخولې ،له دې وروسته تقريباً له يوې مياشتې اوږده او له زغم نه وتلي سفر نه وروسته د سلطان پوځ د انهل واړه په مخکې و.

.....

د انهل واړه د راجه پر ځان اعتماد بې ځايه نه و، د هغه لښکر نژدې يو لك سپاره، دوه سوه پيلان، او نوي زره پلي سرتيري درلودل، هغه د سومنات مذهبي مشر پردې خبرې قانع کړی و، چې د دښمن پوځ د شمال له دښتې څخه د تيريدو خطر نشي قبلولی، ځکه خو سلطان محمود سومنات ته د رسيدو لپاره بايد د ختيځ له لورې يوه اوږده دوره ووهي، په داسې صورت کې که هغه سومنات ته د رسيدو دمخه د انهل واړه په لور مخه کړه، نو موږ به يې په شمال ختيځ سرحد کې مخه ونيسو که هغه له موږ سره له ټکر پرته د سومنات په لور وړاندې ولاړ، نو موږ به له شا څخه حمله پرې وکړو او هغوی به تيت او پرك کړو، خو ددښتې له لورې د سلطان د وړاندې راتلو خبر پر انهل واړه زلزلې ګډې کړې.

راجه بهيم ديو ديرش زره سپاره د سلطان دپوځ پرمختګ دمخنيوي لپاره واستول او پاتې پوځ ته يې چې په ختيځ سرحد يې اړولي وو د خپلې پلازمينې د ساتنې لپاره د راټوليدو حکم وکړ.

يو سهار بهيم ديو پر خپل تخت ناست و، دپاچاهۍ مشران او د شاوخوا باج ورکوونکي سرداران د خپلو منصبونو او رتبو په تناسب په دربار کې پر کرسيو ناست وو. لوی راجه تر څه وخته په چوپه خوله د دربار حاضرينو ته وکتل، بيا يې وويل:

زه افسوس کوم چې زموږ څو ملګريو زموږ له ملاتړ څخه لاس واخست او وتښتيدل، خو زموږ د پوځ شمير اوس هم له دښمن څخه څو چنده زيات دي.

موږ هيڅکله هم دا تمه نه درلوده چې دښمن به د دښتې د تيريدو جرئت وکړي، خو اوس موږ بايد پريشانه نشو، زما باور دی چې زموږ ديرش زره سرتيري به په شمال سرحد د دښمن د پرمختګ مخه ونيسي . خو که هغوي د دښمن د فشار له مخې په شا شول . نو د سومنات د دفاع جګړه به د انهل واړه د ديوالونو په مخکې کيږي او موږ به دښمن ته دا ور وښيو چې د انهل واړه روزل شوی پوځ د کالنجر او ګواليار له پوځ څخه بل ډول دي.

یو باج ورکوونکی راجه جګ شو لاس یې په نامه ونیول او ویې ویل:
باداره که اجازه وي زه څه وایم!
بهیم دیو وویل: ووایه؟
ـ باداره! زموږ هغه ملګري چې دلته د راټولیدو پرځای سومنات ته تللي دي، زه ورته د بې همتی پیغور نشم ورکولی، زموږ دهیواد یوه نجومي دا ویلي دي چې دښمن به سومنات ته خامخا رارسیږي، ستا په دربار کې چې کوم راجه ګان او سرداران شته دي، د زیاترو دا رایه ده چې د هیواد د نورو راجه ګانو او سردارانو په څیر باید زموږ لښکر هم په سومنات کې راټول شوی وای، د سومنات تر دیوالونو لاندې موږ تر دې زیات پر اعتماد او زړورتیا جنګیدلې شوای، زه ویریږم چې که په شمالي سرحد زموږ پوځ ماته وخوري، نو په انهل واړه کې به د خلکو مورال راولویږي او بې زړه به شي، بیا به زموږ نور ډیر ملګري هم ددې ځای پر ځای سومنات ته ولاړ شي.
راجه بهیم دیو احساساتي شو ویې ویل: که په تاسو کې څوك زموږ ملګري پریږدي موږ یې لاره نه نیسو، موږ به تر پایه پردې وعده ولاړ وو چې د محمود لښکر به زموږ د مړیو نه له تیریدو پرته، سومنات ته مخه نه کړای شي.
موږ د مندهیر پوځ ته هم د رسیدو امر کړی دی. یو عمر خوړلی سردار د څه ویلو لپاره پاڅید. خو ناڅاپه له مخامخ دروازې څخه د انهل واړه د پوځ مشر رانښکاره شو او لوی راجه او درباریانو یې په حیرانۍ هغه ته کتل. سالار چې تخت ته نژدې شو، فرشي سلام یې وکړ او بیا لاس په نامه ودرید.
بهیم دیو په غریو نیولي غږ ترې وپوښتل:
سر لښکر صیب! ته دلته د څه لپاره راورسیدې؟
ـ تېولواکه .... زه....
ـووایه ولې چوپ شوې!
- تېولواکه! افسوس چې ما کوم ښه خبر نه دی راوړی، زه د دښمن د لاس په ترڅلو کې بریالی نه شوم.
لوي راجه بهیم دیو وویل: ستا څیره هر څه پخپله وایي، ته ولې صفا نه وایې چې ماته دې خوړلې ده؟

- باداره! د دښمن يرغل داسې له اټكل څخه اوچت او ناڅاپي وُ چې زموږ پوځ د راسنباليدو فرصت ونه موند، د سترګو په رپ كې دهغوى لومړنيو ضربتي ګروپونو زموږ د ښې او كيڼ لوري ليكې ماتې كړې اوشاته ورسيدل، له هغو وروسته پاتې لښكر پر موږ راپريوتل. لوى راجه يې سمدستي خبره ورغوځه كړه وې ويل:

او بيا تاسو راوتښتيدلى، اوس غواړو پردې وپوهيږو چې څومره پوځ دې ژغورلى دې؟

- د دښمن زيان به زموږ تر زيان زيات وي؟

- هوكې باداره!

- زه پوهيږم چې ته به داسې وايې، د ماتې خوړلو نه وروسته هر سرلښكر همدغسې وايي، اوس زه دا پوښتنه درنه كوم چې د دې خبر د راوړو لپاره تا پخپله دلته ولې زحمت وايست؟

آيا په پاتې دوه ويشت زره سرتيرو كې يو هم ستا د احوال د راوړو وړ نه و؟

-باداره! څو داسې خبرې وې چې ستا دربار ته زما د حاضريدو اړتيا وه، زموږ زياتره سرتيري پردې ګومان دي چې دښمن ته يوازې د سومنات پر ډګر ماته وركول كيداى شي. زما انديښنه ده چې كه دغسې خلك بيرته راستانه شي. په ټول پوځ كې به بې زړه توب خپور كړي.

- زموږ د لښكر په منځ كې له پخوا څخه د داسې خلكو كمبود نشته. زموږ ځيني ملګري ستا د راتلو او خبر نه پخوا سومنات ته رسيدلي دي.

د لښكر مشر وويل: ټولواكه! زما يقين دى چې په انهل واړه كې زموږ پوځ د دښمن غاښونه بريښولى شي ، خو كاشكي چې موږ د خپلو ملګريو دغه انديښنه لرې كولى شواى چې سلطان محمود به له سومنات څخه پرته په هر ډګر بريالى وي.

- مګر تا خو پر دغه ګومان ملنډې وهلې.

- زه پردې اعتراف كوم چې د دښمن د ځواك په باب زما ټول اټكلونه غلط وو. هغه يو سيلاب دى او د ديوتاګانو له مرستې پرته هيڅ ځواك د هغه مخې ته نشي دريداى.

لوی راجه نورو درباریانو ته مخ واړاوه وې ویل:

اوس زموږ سرلښکر هم موږ ته دا مشوره راکوي چې خپل رعیت پرځای پرېږدو او سومنات ته وننوتو ، خو په یاد ولرئ کوم سرتیري چې یو ځل دښمن ته شا کړي، هغه بیا تېر نشي ورته ټپولی.

یوه باج ورکوونکي راجه وویل:

باداره! په جګړه کې دمورچل بدلول او تیښته یوله بل سره ډېر توپیر لري.

لوی راجه په درانه غږ وویل:

ماته ستاسو په خیر ملګریوضرورت نشته ،تاسو تلای شی! د دښمن د مقابلې لپاره زما خپل پوځ بس دی.

راجه نور څه ونه ویل او له درباره ووت.

لوی راجه بهیم دیو چیغه کړه:

په تاسو کې بل څوك هم شته چې له هغه سره ملګرتیا وکړی!

د باج ورکوونکیو راجه ګانو څخه دوه تنه نور او د ختیځ سرحد پنځه تنه سرداران هم جګ شول او بهر ته ووتل، په دربار کې تر لږ ځنډه چوپتیا خپره شوه.

بهیم دیو خپلې شونډې وچیچلې وې ویل:

که له دغو خلکو سره سومنات ته د تلو پلمه نه واي ، نو ژوندی به مې پر ځمکه ښخ کړي واي، موږ بې همته او غیرتي خلك په یوه ځای نه راټولوو، د لښکر مشر صیب! ته هم له هغوی سره تلای شې.

د لښکر مشر ورته وویل:

باداره! له وضعې څخه ستا خبرول زما ذمه واري وه،له دې وروسته چې ستا څه پریکړه وي دهغې عملي کول زما مذهب دی.

- اوس ته د لښکر د مشر په توګه نه ، د یوه عادي سرتیري په توګه له موږ سره ملګرتیا کولی شې، مهاراجه بیا د دربار حاضرو خلکو ته پام واړاوه او وې ویل:

زموږ وروستی پریکړه دا ده چې په همدې ځای کې به جګړه کوو. که په تاسو کې څوك زموږ له دې پریکړې سره موافق نه وي د هغه لپاره دا غوره ده چې سر له اوسه زموږ ملګرتیا پرېږدي.

یو سردار جګ شو ویې ویل:
باداره! زموږ مرګ او ژوند ستا سره دی.
لوی راجه وویل: زه یو ځل بیا پوښتم چې تاسو ټول له موږ سره ملاتړي؟
ټولو په یوه غږ وویل: هو باداره!
له دې وروسته تر څه وخته د جګړې په مختلفو وړاندیزونو خبرې وشوې او بیا دربار رنګ شو.

......

د شپې په دریمه برخه کې لوی راجه بهیم دیو له درانه خوبه راپاڅول شو او نوي د لښکر مشر دا خبر ورته اوراوه چې دمنظم پوځ پنځلس زره سرتیري له برطرف شوي سرلښکر سره سومنات ته تللي دي او په پاتې پوځ کې هم د بغاوت نخښې ښکاري.
لوی راجه له غوسې څخه ولړزیده ویې ویل:
تا ولې د هغوي د ایسارولو هڅه ونکړه؟
نوي سرلښکر ځواب ورکړ:
باداره! ما پوځ ته امر وکړ چې هغوی را کلابند کړي. خو چا زما دا امر و نه مانه. هغوی ټول دا وایي چې د سومنات د ساتونکو مخه نیول ګناه ده. زه د دوی دغه ګومان نشم لرې کولی چې له سومنات پرته به په بل ډګر موږ بریالي نه شو.
د پوځ افسران برالا دا وایي چې لوی راجه باید په انهل واړه کې د جګړې پریکړه بدله کړي، زه ویریږم چې تر سهاره د پوځ نورې ډلګۍ هم زموږ ملګرتیا پرې نږدي.
دښمن چې اته ځاښته مزل وکړي. دلته رارسیدای شي، موږ باید زر تر زره ددې خبرې پخلی وکړو چې په وروستي وخت کې به له موږ سره څومره پوځ پاتې وي، اوس پر پوځ برسیره د ښار خلکو ته هم د ډاډ ورکولو ضرورت دی. هغوی له خپلو کورونو څخه تښتي.
بهیم دیو وویل: ته همدا اوس چونې پریږده. خلك د ښار په پناه کې راټول کړه او ټولې دروازې بندې کړه. کاشکې ما داسې بې همته پر زنځیرونو تړلې د دښمن مخې ته غورځولي شوای.

د لښکر مشر زړه نا زړه وپوښتل: آیا د ټولواک همدا وروستۍ پریکړه ده چې موږ به په انهل واړه کې مقاومت کوو؟

- اوس زه کومه پریکړه نشم کولی، ته ولاړ شه!

سرلښکر له کوټې څخه ووت او لوی راجه بې سیکه پر کرسۍ کیناست، له بلې کوټې څخه ملکه راښکاره شوه او وړاندې راغله وېې پوښتل:

سرلښکر څه ویل؟

- هیڅ نه ، ویده شه!

ملکه دده مخې ته کیناستله او وېې ویل:

- خو ته ډیر اندېښمن یې،

لوی راجه څه ویل چې بهر یې د چا د پښو ترپهار واورید بیا دروازه په زوره وټکیدله:

باداره!

د راجه غوږونه له دغه غږ سره آشنا وو ویې ویل:

- د ننه راځه څه خبره ده؟

د محل داروغه کوټې ته ورننوت اوله څه مقدمې پرته یې وویل: باداره!

د ښار خلك د ماڼۍ په دروازه کې راټول دي او دښار د برهمنانو یو پلاوی همدا اوس غواړي له تاسو سره وګوري.

لوي راجه په بیړه بهر راووت چې لږ وړاندې یې په برنډه کې سرلښکر او د کلا پوځي سالاران ولیدل. سرلښکر ورووړاندې شو او ویې ویل:

بادارہ! وضعه خرابه ده خلك د ماڼۍ مخې ته راټولیږي او د پوځ ډیرې ډلګی له هغوی سره ملګري شوي دي، ما چې د هغوی وضعه ولیدله، بیا ستا خدمت ته راغلم.

بهیم دیو د وارخطایي په حالت کې وپوښتل:

هغوی څه غواړي؟

- باداره! هغوي یوازې" سومنات ته ځي". ناړې وهي، خو زما باور دي چې ستا څو خبرې به یې ډاډه کړي.

بهیم دیو وویل: راځئ!

يو سردار جګ شو ويې ويل:
باداره ! زموږ مرګ او ژوند ستا سره دی.
لوی راجه وويل: زه يو ځل بيا پوښتم چې تاسو ټول له موږ سره ملاتړی ؟
ټولو په يوه غږ وويل: هو باداره!
له دې وروسته تر څه وخته د جګړې په مختلفو ورانديزونو خبرې وشوې او بيا دربار رنګ شو.

.....

د شپې په دريمه برخه کې لوی راجه بهيم ديو له درانه خوبه راپاڅول شو او نوي د لښکر مشر دا خبر ورته اوراوه چې د منظم پوځ پنځلس زره سرتيري له برطرف شوي سرلښکر سره سومنات ته تللي دي او په پاتې پوځ کې هم د بغاوت نخښې ښکاري.
لوی راجه له غوسې څخه ولړزيده ويې ويل:
تا ولې د هغوی د ايسارولو هڅه ونکړه؟
نوي سرلښکر ځواب ورکړ:
باداره ! ما پوځ ته امر وکړ چې هغوی را کلابند کړي. خو چا زما دا امر نه مانه. هغوی ټول دا وايي چې د سومنات د ساتونکو مخه نيول ګناه ده. زه د دوی دغه ګومان نشم لرې کولی چې له سومنات پرته به په بل ډګر موږ بريالي نه شو.
د پوځ افسران برالا دا وايي چې لوی راجه بايد په انهل واړه کې د جګړې پريکړه بدله کړي، زه ويريږم چې تر سهاره د پوځ نورې ډلګی هم زموږ ملګرتيا پرې نږدي.
دښمن چې اته ځانته مزل وکړي، دلته رارسيدای شي، موږ بايد زر تر زره ددې خبرې پخلی وکړو چې په وروستي وخت کې به له موږ سره څومره پوځ پاتې وي، اوس پر پوځ برسيره د ښار خلکو ته هم د ډاډ ورکولو ضرورت دی. هغوی له خپلو کورونو څخه تښتي.
بهيم ديو وويل: ته همدا اوس چونې پريږده. خلك د ښار په پناه کې راټول کړه او ټولې دروازې بندې کړه. کاشکې ما داسې بې همته پر زنځيرونو تړلي د دښمن مخې ته غورځولي شوای.

د لښکر مشر زړه نا زړه وپوښتل: آيا د ټولواك همدا وروستۍ پريکړه ده چې موږ به په انهلواړه کې مقاومت کوو؟

- اوس زه کومه پريکړه نشم کولی، ته ولاړ شه!

سرلښکر له کوټې څخه ووت او لوی راجه بې سیکه پر کرسۍ کیناست، له بلې کوټې څخه ملکه راښکاره شوه او وړاندې راغله ويې پوښتل:

سرلښکر څه ويل؟

- هيڅ نه، ويده شه!

ملکه دده مخې ته کیناستله او ويې ويل:

- خو ته ډير انديښمن يې،

لوي راجه څه ويل چې بهر يې د چا د پښو ترپهار واوريد بيا دروازه په زوره وټکيدله:

باداره!

د راجه غوږونه له دغه غږ سره آشنا وو ويې ويل:

- د ننه راځه څه خبره ده؟

د محل داروغه کوټې ته ورننوت او له څه مقدمې پرته يې وويل: باداره!

د ښار خلك د مانۍ په دروازه کې راټول دي او د ښار د برهمنانو يو پلاوی همدا اوس غواړي له تاسو سره وګوري.

لوي راجه په بيړه بهر راووت چې لږ وړاندې يې په برنډه کې سرلښکر او د کلا پوځي سالاران وليدل. سرلښکر وروړاندې شو او ويې ويل:

باداره! وضعه خرابه ده خلك د مانۍ مخې ته راټوليږي او د پوځ ډيرې ډلګۍ له هغوی سره ملګري شوي دي، ما چې د هغوی وضعه وليدله، بيا ستا خدمت ته راغلم.

بهيم ديو د وارخطايي په حالت کې وپوښتل:

هغوی څه غواړي؟

- باداره! هغوي يوازې "سومنات ته ځي". نارې وهي، خو زما باور دي چې ستا څو خبرې به يې ډاډه کړي.

بهيم ديو وويل: راځئ!

لږ ځنډ وروسته راجه د ماڼۍ په دروازه کې ولاړ و او دخلکو ګڼې ګوڼې ته يې د څه ويلو هڅه کوله، خو دده غږ د "سومنات ته ځو" تراحساساتي نارو لاندې خپ شو.

راتلونکي شپه د سلطان محمود د پوځ له انهل واړه څخه يوازې يو پړاو لرې اړولي وو، لوی راجه بهيم ديو کنټ کوټ ته مخه کړې وه، له پيلانو پرته شل زره آسونه ورسره وو، د هغه ديرش زره سرتيري دسومنات د ديوتا په پښو کې د سرونو قربانولو لپاره روان شوي وو او پاتې نور د لويديځ غاړو په سيمو کې پناه اخسته.

.....

د سردار رګونات له ماڼۍ څخه بهر په يوه ميدان کې د منډهير او دهغې د شاوخوا سرداران له خپلو خپلو پوځونو سره راټوليدل، نرملا د ماڼۍ په يوه پراخه کوټه کې ناسته وه، يوه خدمتګاره نژدې ورغله او ورته وې ويل:

پلار جان دې راغلی دی.

نرملا وويل: هغه دلته راوله.

لږ ځنډ وروسته جي کرشن کوټې ته ورننوت او له څه مقدمې پرته يې وويل:

نرملا ته تر اوسه پورې نه يې تياره شوې؟

نرملا ځواب ورکړ:

پلار جانه! ما تر اوسه د منډهير د پريښودو پريکړه نه ده کړې.

- لوري ! اوس د فکر کولو وخت نه دي، د مسلمانانو پوځ انهل واړه ته نژدې رارسيدلي دي او د انهل واړه په باب چې وروستۍ خبر دي له هغې نه زما اټکل دا دی چې سلطان محمود به دلته په رارسيدوکې ځنډ ونکړي.

- د انهل واړه په باب تا څه اوريدلي دي؟

جی کرشن پر کرسۍ کيناست وې ويل:

سردار تا ته نه دي ويلي؟

- نه هغه ماته يوازې د سفر د تياري امر وکړ او وتلی دی د انهل واړه په باب هغه هيڅ هم نه دي ويلي.

جی کرشن وویل: زه خبر شوم چې د انهل واړه راجه چې د سلطان محمود د پوځ د مخې نیولو لپاره شمال سرحد ته پوځ استولی و هغه ماته خوړلې ده او د راجه له ملګریو څخه ځینې سرداران او راجه ګان له خپلو خپلو سرتیرو سره سومنات ته تللي دي. تیره شپه دغه پوځونه زموږ د ښار ترڅنګ تیر شوي دي. اوس معلومه نه ده چې د سلطان لښکر به څه وخت راورسیږي ، ته زرځان تیاره کړه.

نرملا وویل:

پلار جانه! زه غواړم همدلته واوسم.

جي کرشن وویل:

ګوره لورې! ساده کیږه مه، ته باید د مسلمانانو په باب دومره ډاډه نه وې، کله چې توپان راځي، نو له ونو او بوټیو سره کله کله میوه دارې څانګې هم ماتیږي، کله چې هغوی راشي، نو رنبیر غوندې خلك به تاته د پناه درکولو لپاره نه وي، تر څو دغه توپان نه وي تیر شوی، ته باید له منده‌یر څخه بهر وې، سردار خپله خزانه هم ماته راسپارلې ده، ستا په سبب به ماته د جګړې له ډګر څخه د لرې پاتې کیدو پلمه هم په لاس راشي، خو که ته دلته د پاتې کیدو ضد وکړې ، نو زه به له سردار سره ځم.

سردار ګړندي ګامونه اخستل او کوټې ته ورننوت ویې ویل:

ته تر اوسه پورې نه یې تیاره شوې! بیړه کوه.

جی کرشن له کرسۍ څخه جګ شو ویې ویل: موږ تیار یو، سردار نرملا ته وکتل ویې ویل:

نرملا د اندیښنې هیڅ خبره نشته، زما باور دی چې څو ته تر کنټ کوټ پورې رسیږې دا زیرې به واورې چې موږ د دښمن مخه بیرته واړوله.

نرملا وویل: ما خو اوریدلی دي چې د انهل واړه پوځ سرله اوسه تیښته پیل کړې ده.

سردار په غوسه ځواب ورکړ.

د څو بې همته سردارانو او راجه ګانو له تلو سره د انهل واړه په ځواك کې هیڅ توپیر نه راځي.

ته اوس بيړه کوه زه له تلو مخکې غواړم تا رخصت کړم. يو ساعت وروسته نرملا او جي کرشن د ښځو او ماشومانو له يوې قافلې سره د کنټ کوټ په لور روان وو، نرملا له خپلو دوو وينځو سره په يوه ډولۍ کې پر پيل سپره وه، پر پنځو نورو پيلانو د نورو سردارانو ښځې او ماشومان سپاره وو، او دوو پيلانو د سردار رګونات خزانه وړله، نورې ښځې او ماشومان او څو تنه بوډاګان پر آسونو او دغوايانو پر ګاډيو سپاره وو، نژدې يو نيم سل سرتيري د دوی د ساتنې لپاره ګومارل شوي وو. جي کرشن د دې قافلې لارښوونه کوله.

.....

د نرملا له روانو له وروسته سردار رګونات له شل زره سپرو او څلويښتو پيلانو سره د انهل واړه په لور روان شو، خو دوی لا زيات نه وو تللي چې د شمال لور ته يې يو پوځ وليد. سردار خپل پوځ ته د دريدو امر وکړ او يو تجربه کار افسر يې له څو سپرو سره يو ځای وړاندې واستاوه افسر چې بيرته راوګرځيد خبر يې ورکړ چې دغه پوځ له انهل واړه څخه راغلی دی، د لښکر مشر " تاکر داس" پخپله د لښکر قومانده پر غاړه لري.

سردار په وارخطايي وپوښتل:

دوی چيرته روان دي؟

- واکمنه ! دوي سومنات ته روان دي.

- مګر دا څنګه کيدای شي که د لوی راجه اراده داسې وای، نو موږ ته يې ولې په انهل واړه کې د راټوليدو امر کاوه او ټاکر داس خو اوس د لښکر مشر هم نه دی ، افسر وويل:

باداره! ما له هغه سره وليدل او ترې راغلم. هغه زما د ټولو پوښتنو په ځواب کې يوازې دا وايې چې سردار صيب ماته راواستوه، ګوره باداره! هغوی لاره هم بدله کړه ښايي هغوی له موږ نه لاره چپوي او وړاندې تلل غواړي ته زما تر راټلو پورې پوځ همدلته ايسار کړه . سردار دا وويل او پر آس يې پښه واړوله يو ساعت وروسته سردار رګونات بيرته راغي او د پوځ سرداران او افسران يې له نوي وضعې څخه خبر کړل. او د انهل واړه څخه راغلي پوځ وړاندې تللې و

د انهل واړه له مشرانو او د پوځ له سالارانو سره تر ډير بحث وروسته سردار پريکړه وکړه چې په راتلونکي سهار کې به پړاو واچوو او د انهل واړه له تازه وضعې به ځانونه خبر کړو، ځکه خو لمر لويدو ته نژدې دغه پوځ شمال لويديز لوري ته نژدې په درې ميلی کې د يوه وړوکي ښارګوټې څخه بهر پړاو واچاوه او ځو سرداران په يو شمير سرتيرو سره د انهل واړه د وضعې د معلومولو لپاره وخوځيدل.

راتلونکی سهار سردار د خپلو ليږل شويو کسانو له خولې اوريدل چې لوی راجه بهيم ديو د کنټ کوټ په لور تښتيدلی دی او د سلطان د لښکر مخکينيو ډلو له څه جګړې پرته د انهل واړه کلا نيولې ده، سردار پوځ ته د بيرته راګرځيدو امر وکړ، قضا ماسپښين دغه پوځ له منډهير څخه کوم شپږ - اوه ميله لرې په يوه کلي کې خپلو ستومانه او مزله ځپليو آسونو ته اوبه ورکولې چې يوه سرتيري د شمال لور ته اشاره وکړه او په لوړ غږ يې وويل:

باداره! يو بل پوځ را روان دی. سردار او د هغه ملګريو چې مخ ور واړاوه او ويې ليدل، نو پر افق يې تت غوندې د سپرو کتارونه وليدل. سردار وويل:

دا د دښمن سپاره نشي کيدای. هغوی دومره زر دلته نشي را رسيدای.

يوه عمر خوړلي سردار وويل: باداره! امکان لري چې دښمن خپلې مخکينۍ دستې مخکې رااستولې وي. موږ بايد سمدستي له دې ځايه ووزو. سردار په درانه غږ ځواب ورکړ:

که هغه د دښمن سرتيري وي، نو موږ به يې مقابله وکړو. زه د تښتيدونکيو ملګرتيا نشم کولی، ميړني تل پر خپل تبر ګوزارونه خوري.

د منډهير سردارانو د انديښنې، پريشانۍ او ويرې په حالت کې سردار رګونات ته کتل. هغه له آس څخه پلی شو او پر يوه پيل سپور شو، چيغې کړې:

نن د سومنات ديوتا تاسو ويني، موږ به په خلاص ډګر کې د دښمن مقابله وکړو.

لږ ځنډ وروسته د مندهير پوځ له کلي څخه بهر په يوه پراخ ميدان کې د "سومنات دې ژوندی وي" شعارونه ورکول را روان پوځ نژدې نيم ميل وړاندې ودريد د هغوی شمير د پنځوزور تنو په شاوخوا کې و.

د مندهير د سرتيرو وارخطايي ورو ورو په ډاډ او اطمينان بدليدله، د رګونات په امر يو سپور آس وزغلاوه او وړاندې ورغی، هغه له لږ ځنډ بيرته راوګرځيد او خبر يې راوړ چې دا د سلطان د پوځ سرتيري دي رګونات بيله دې چې انتظار وکړي پوځ ته يې د حملې امر وکړ او وړاندې ورغلل؟

د مندهير د پوځ په زړه کې د پيلانو ډلګۍ او ښي، کيڼ لور او شاته د سپرو ډلې وې چې ګردونه يې پورته کړل او وړاندې ورغلل، خو د سلطان د پوځ دغه ډلګي چې د انهل واړه له نيولو نه وروسته دلته رارسيدلې وې ډاډه پر خپل ځای ولاړ وو.

لږ ځنډ وروسته د مندهير د پوځ د مخکنيو ډلګيو سپاره د دښمن دواړو اړخونو ته وړاندې تير شول او غوښتل يې د دښمن پوځ راقابو او د پيلانو مخې ته را أيسار کړي، د پيلانو کتار برابر شو او وړاندې ورغلل. ناڅاپه د مسلمانانو پوځ هم وخوځيد او د تکبير نارې اوچتې شوې. د ترکمني شازلميو يوې ډلې د مندهير د پوځ په کيڼ اړخ حمله وکړه. او په هغه پسې د پوځ ټولنو ګروپونو د دښمن ليکې څيرې کړې او وړاندې تير شول. د ستر ګو په رپ کې د رګونات د پيلانو په مخ کې له ګردونو پرته بل څه نه وو. پخوا له دې چې د مندهير پوځ پر خپله وارخطايي راقابو شوی وای د مسلمانانو ډلګي پرې را غبرګې شوې او بيا يې حمله پرې وکړه چې د کيڼ لوري له ډلګۍ پرته د هغوی نور ګروپونه د پيلانو په لور ورټول شول.

عربو او افغاني څو ډلګيو د شا لخوا پرې راتاو شول او د پيلانو د صف او د کيڼ اړخ د ډلګيو تر منځ يې درز واچاوه..

لږ ځنډ وروسته د مندهير په پوځ کې ګډوډي خپره شوه، سپاره د څه نظم څخه پرته په وړوکيو ډلو وويشل شول، مسلمانانو به له يوه لوري حمله پرې وکړه. هغوی به يې تيت پرک کول او بل لوري ته به ترې ووتل.

د مندهير زيات سپاره له وارخطايي د خپلو پيلانو تر پښو لاندې شول او ووژل شول.

رګونات د بوډاتوب سره سره د همت او میړانې نه کار واخست هغه څو ځلې د پیلانو مخ واړاوه او پر مسلمانانو یې د حملې هڅه وکړه، خو دهغوی ګړندي آسونه به هر ځل د دوی له مخې لرې شول، او وبه وتل، یو ساعت وروسته چې د مندهیر د پوځ ځینې افسران او سرداران له خپلو پوځونو سره د جګړې ډګر پرېښود او وتښتېدل، رګونات دخپل پیل په کجاوه کې ولاړ و او دوی ته یې د خپل مذهب غیرت واسطه کاوه، ناڅاپه د دښمن د کوم سرتیري غشی راغی او دده پر ټټر ونښت او بیا په خپله کجاوه کې راوغورځید، د پیلانو د ډلې یوه افسر چې دغه وضعه ولیده خپلو سرتیریو ته یې د شاته تلو امر وکړ.

د مندهیر زیات پوځ پخوا له میدان څخه پښې سپکې کړې وې، له میدان څخه د پیلانو له وتلو سره پاتې پوځ هم وتښتید. مسلمانان تر درې میلو پورې په تښتیدلي پوځ پسې ورغلل او په سلګونو سرتیري یې ووژل، بالآخره د هغوی سالار هغوي ته د دریدو امر وکړ ویې ویل:

اوس موږ نور وړاندې نشو تللای زموږ آسونو ځواب راکړی دی، د ماښام له لمانځه وروسته به شاوخوا په کوم کلي کې پړاو واچوو. بیا یې یوه ځوان افسر ته مخ واړاوه ویې ویل:

تا چې لمونځ وکړ انهل واړه ته روان شه. او لوی سلطان ته خبر ورکړه چې له انهل واړه څخه تر مندهیر پورې لاره صافه شوې ده. موږ به سبا سهار ته د مندهیر د کلا د دیوالونو څخه بهر د مرستې انتظار کوو.

•••••

د مندهیر زیات اوسیدونکي چې له درمسال نه پرته هلته د لویو لویو سردارانو ماڼۍ وې د ښار د زړو او نیم ویرانو کورونو څخه بهر اوسیدل، سهار وختي د سلطان پوځ توپاني ډلګیو د ښار نه بهر د مرستې د راتګ د انتظار پر ځای پر ښار شاوخوا چکر وواهه او بیا له ختیځ لورې ښار ته ورننوتل، د مندهیر سرتیرو او عامو خلکو ښار خالي کاوه او د درمسال لورې ته ورتیولیدل، کله چې یرغل کوونکو د درمسال په لور مخه کړه، نو ګام پر ګام له مقاومت سره مخ شول، هغوی یو پر بل پسې حملې وکړې خو د درمسال دروازې ته په نژدې کیدو بریالي نه شول، د درمسال د ننه په زرګونو

انسانانو تر وروستی سلگی د جګړې سوګندونه اوچت کړي وو، کله به چې د حمله راوړونکو د فشار په سبب د دروازې د ساتونکيو يوه ډله په شا شوه، بله به ورته راوړاندې شوه او د هغوی ځای به يې ونيو.

د مندهير اوسيدونکي چې په کوم جوش او جذبه د درمسال په دروازه کې جنګيدل که يې په همدې جوش او جذبه حمله کړې وای او وړاندې راوتلې وای، نو هغوی ته د ګوتو په شمير حمله راوړونکي بيرته له ښار څخه ويستل آسانه وو، خو د ښار برهمنانو دوی ته ويلي وو چې که دوی درمسال پريښود او کوم نوي محاذ يې جوړ کړ، نو د ديوتاګانو عذاب پرې راپريوزي.

له ماسپښين څخه د مخه د درمسال په دروازه کې د مړيو انبار جوړ شو او د مندهير اوسيدونکيو دروازه بنده کړه، خو د حمله راوړونکيو د ډلې سرتيري يو ځای ترديوال واوښتل او دننه ووتل، د درمسال ساتونکيو غوښتل چې دغه ډله راايساره کړي، خو لږ ځنډ وروسته نوري ډلې هم تر ديوال واوښتې او دننه ننوتلې. هغوی د درمسال ساتونکي يوه لوري ته تيل وهل او د پاتې پوځ لپاره يې دروازې خلاصې کړې. د مندهير اوسيدونکي له څلورو خواو يوې خوانه ورتول شول او يوه درنه حمله يې وکړه. خو په هماغه وخت کې چې کله په درمسال کې دننه د مسلمانانو پښې ښوييدې د سلطان د پوځ لس زره تنه پوځ تازه راورسيد او د مندهير د اوسيدونکو همت ختم شو.

هغوی په وارخطايي يوه او بله خوا منډې وهلې. چا به له ديوال څخه د بهر ته وتلو هڅه کوله او څوك به ډنډ ته ورکوزيدل. د درمسال پالونکي چې اوس خپله ماته حتمي بلله وه د جنوب دروازه يې پرانسته او د پخواني ښار په لور ووت.

قضا ماسپښين چې سلطان محمود مندهير ته راورسيد، نو پر درمسال او ښار د مسلمانانو بيرغ رپيده او د ډنډ پرغاړه د زرو دانو بُتانو ټوټو دانسان په لاس د تراشليو خدايانو پر بې وسۍ او بې ثباتۍ اعتراف کاوه.

د مندهير د درمسال دولت له هغه خزانې څخه زيات و چې سلطان په انهل واړه کې غنيمت کړی و.

.....

# ستی کیدل

د سردار رګونات د تپی کیدو خبر د پوځ د ځو هغو افسرانو او سرتیرو نه پرته چاته نه و رسیدلی چې تر وروستی شیبې پورې له ده سره وو، د ښپې مهال یې مانی ته د هغه له رسولو وروسته د پوځ لوی سالار، د ښار ځو تنه مشران او د درمسال پیشوا له وضعې خبر کړل، هغوی د سردار د لیدو لپاره راغلل. د هغه وضعه نازکه وه. مذهبی مشر د ښار سپین روبو ته وویل:

که اوس د سردار پر تپي کیدو خبر شي. بې همتي به پکې خپره شي، ځکه خو دغه خبره باید خپره کړو چې سردار له ماتې وروسته کنټ کوټ ته تللې تر ځوله راجه بهیم دیو څخه د مندهیر د ساتنې لپاره مرسته وغواړي او بیرته به ژر راستون شي.

اتفاقاً د انهل واړه شاهي طبیب په مندهیر کې و. د سردار نوکر هغه د سردار د تپونو د پټی لپاره راوست. سبا ته چې د سلطان لومړنی ډلګی مندهیر ته ورسیدې ..نو د سردار د پوځ افسرانو د سردار مانی خوندی نه ګڼله هغه یې د یوه نوکر کورته یووړ او یو سپور یې جي کرشن ته له دې پیغام سره واستاوه چې سردار تپی شوی دی تاسو په لاره کې ایسار شی او د بل احوال انتظار وکړی.

د مندهیرله نیولو نه وروسته سلطان د رګونات په مانی کې اوسیده، خو دا ورته معلومه نه وه چې ددې مانی خاوند دلته نژدې په یوه تیاره او وړوکې کوټه کې پروت دی او زګیروی کوي. دریمه ورځ سلطان له مانی څخه وکوچیده . له هغې وروسته یې سردار بیرته خپلې مانی ته راوست. د منوراج طبیب پر علاج برسبره د هغه په حالت کې څه بدلون را نه غی. چې مانی ته

ورسيد. هغه په ړندو ړندو سترګو خپلو د احوال پوښتونکو ته کتل او په کمزورې غږ بې وويل: نرملا نه ده راغلې؟

منو راج خواب ورکړ.

هغې ته چې ستا د تپي کيدو احوال ورغی، په لاره کې ايساره شوه، نن سهار چې دښمن له دې ځايه وکوچيده په هغې پسې مو يو سپور واستاوه، زما باور دی چې تر سبا سهار به دلته راورسيږي.

خو سردار رګونات تر ډيره د هغې لاره ونه څارلی شوای. سبا ته د لمر ختو نه لږ وروسته چې نرملاله خپل پلار سره بيرته راورسيده، دهغې ميړه څو شيبې مخکې څو ځلې ددې د نامه له اخستلو وروسته مړ شوی و.

.....

نرملا د سردار له مړي سره ناسته وه او عمر خوړليو ښځو دې ته د يوې هندو ميرمنې وروستی ذمه واري پوره کولو د تياري مشوره ورکوله.

د منډهير اولس چې د مسلمانانو د لښکر له تلو څخه وروسته لږ او ډير بيرته خپل حواس خپل کړي وو د سردار له محل څخه بهر راټوليده د سردار مرګ ددوی په نظر د قوم د يوه ستر اتل مرګ و. جی کرشن نرملا دښار د ښځو په ګڼه ګونه کې پريښوده او ميلمستون ته ولاړ. هلته د سردار خپلوان دښار اميران او برهمنان وو، دوی د سردار پر مرګ وير کاوه. په دې کې د ښار مذهبي مشر چې دمنډهير له فتحې سره چيرته ورک شوی و. د درمسال له څو پالونکيو سره هلته ورسيد. هغه د جي کرشن او سردار له خپلوانو سره د رسمي خواخوږۍ نه وروسته وويل:

موږ پر دې خبره خپه يو چې سردار رګونات له خپل مرګ څخه وړاندې د خپل دين او وطن د دښمنانو انجام ونه ليدلای شو.

ديوتاګانو مسلمانان د تباهۍ په لاره برابر کړي دي، خو ددې مطلب دا نه دی چې موږ دی اوس آرام کښينو، کوم کسان چې د جګړې وړ دي، د هغوی دا فرض دی چې سومنات ته روان شي. اوس دښمن بيا دلته نه راځي. له هغوی څخه د بدل اخستلو يوازينۍ لاره داده چې موږ ورپسې ورشو. راجه بهيم ديو زموږ ديوتاګان ناراضه کړي دي، اوس زموږ په ټولنه کې د هغه لپاره هيڅ ځای نشته، که هغه بې همتي نه وای کړې. نو موږ به له دې تباهۍ

سره نه وو مخ شوي، يو برهمن ور وړاندې شو د مذهبي پيشوا په غوږ کې يې څه وويل او هغه جي کرشن ته مخ واړاوه ويې ويل:

سردار جي کرشن! زموږ رايه دا ده چې د سردار رګونات په وروستيو مراسمو کې بايد نور ځنډ ونه شي، زه چې له دې ځايه وزګار شم، غواړم سمد ستي سومنات ته ولاړ شم، تاسو د ننه ورشئ، نرملا ديوي تياره کړئ، جي کرشن ته پر دې پوهيدل ګران نه وو چې نرملا د څه لپاره بايد تياره شي، هغه په ډيره بې وسی يوې او بلې خواته وکتل او بيا يې له لږ سوچ وروسته ځواب ورکړ:

زما په نظر بايد موږ د سردار صيب د ټولو خپلوانو تر رارسيدو پورې انتظار وکړو، زما باور دی چې تر سبا پورې به راجه بهيم ديو هم راورسيږي.

پيشوا ځواب ورکړ! بهيم ديو له انهل واړه څخه له تښتيدو وروسته زموږ راجه نه دی. اوس هغه د سردرا رګونات په مراسمو کې هم د خپلوان په توګه برخه نشي اخستلای.

جي کرشن وويل:

- موږ لږ ترلږه د سردار د نورو خپلوانو تر راتلو بايد انتظار وکړو، کوم کسان چې له بهيم ديو سره کنټ کوټ ته تښتيدلي دي، اوس هغوی د سردار مړي ته د لاس ور وړو حق نه لري، د سردار صيب خپلوان هغه دي چې تر وروستی سلګی ورسره وو. تاسو بهر ووزې وګورئ د ښار ټول ماشومان او لويان د مانۍ د دروازې په مخ کې راټول شوي دي، په دوی کې په سلګونو داسې دي چې دا هيله لري چې پر دښمن پسې له ورتلو دمخه بايد د سردار صيب په وروستيو مراسمو کې برخه واخلي.

جي کرشن په دردناك غږ وويل:

مګر د سردار صيب دا هيله نه وه چې نرملا بايد دده له مړي سره ستی شي. هغه دغه رواج ډير د کرکې وړ باله او همدغه سبب و چې کله هغه د خپل سر خطر احساس کړ، نرملا يې بهر ته واستوله.

د ټولو سترګې د جی کرشن پر څيره ښخې شوې، د سردار يوه خپلوان وويل:

دا دروغ دي، سردار صیب له خپل مرګه وړاندې غوښتل چې میرمن یې په کور کې وی او وېې ویني.

پیشوا وویل : زه حیران یم چې د قنوج یو نوابزاده سردار د خپلې لور ستي کیدل نه خوښوی ، هغه هم د سردار رګونات غوندې خاوند سره.

د سردار یو د ماما زوی ارجن دیو په احساساتو راغی وېې ویل:

باداره! د قنوج د نوابزاده ګانو وینه سپینه شوې ده ، خو موږ ته په دې خبره کې د سردار چی کرشن د مشورې اړتیا نشته.

د ښار څو نورو لویانو په دې بحث کې برخه واخسته او جی کرشن داسې احساس کړه چې دده اعتراض او زاری بې ګټې دي، اوس د نرملا د ژغورنې یوازې یوه لاره ده، چې دی یې له ځانه سره په کوم لوري ورسره وتښتوي، تر لږ ځنډه له سوچ وروسته یې ناڅاپه لهجه بدله کړه وېې ویل:

تاسو ولې راپاریږۍ ! ما خو دا نه دی ویلي چې زه ددې رسم مخالف یم، ما یوازې د سردار صیب رایه تاسو ته واوروله . د سردار رګونات میرمنې ته له ستي کیدو پرته بله لاره نشته. او زما د لور په رګونو کې هم د یوه نوابزاده وینه چلیږي، که زه هغه را ایساره کړم هم دا به د سردار صاحب د مړي اورتون ته ځان وروغورځوي.

حاضرو کسانو ډادمنه ساه واخسته او مذهبي پیشوا وویل:

زما له تانه همدا هیله وه. زما په نظر خو نور باید ځنډ ونشي او له لمر لویدو مخکې باید وزګار شو.

د سردار رګونات یوه خپلوان وویل:

زموږ لخوا خو به ځنډ و نه شي باداره!

پیشوا جي کرشن ته مخ واړاوه وېې ویل:

سردار صیب چې کومه خزانه تاته سپارلی وه ،هغه چیره ده؟

جي کرشن ځواب ورکړ:

باداره! ما هغه خزانه دلته د راوړو پر ځای د سرتیرو له یوې ډلې سره کنټ کوټ ته واستوله، خو د نرملا ټول زیور ورسره دی، زما سره هم څه سره او سپین شته او زه غواړم چې دا ټول په همدې موقع صدقه کړم. د نرملا هیله ده

چې د سردار صيب ټول جايداد درمسال ته وقف کړي، د برهمنانو ځيرې وغوړيدې، خود سردار خپلوانو د وينو غوړپونه تر ستونې تير کړل.

مذهبي پيشوا وويل: ډير ښه سردار جي کرشن صيب! اوس ورځه تياري کوه.

جي کرشن جګ شو او ولاړ.

* * * * * *

لږ ځنډ وروسته د نرملا يوې خدمتګارې د هغې په غوږ کې غلي وويل: ستا پلار جان په بله کوټه کې ستا انتظار کوي.

نرملا جګه شوه او له خدمتګارې سره بلې کوټې ته روانه شوه، جي کرشن د ماښي په بل ګوټ کې د يوې کوټې پر دروازه ولاړ و، نرملا نژدې ورغله يوه شيبه ودريده او بيا بې اختياره په سلګيو شوه او د خپل پلار په غاړه کې يې لاس ور اميل کړل.

جي کرشن خدمتګارې ته وويل:

ته دې اوس د خپلو زړو جامو ځخه يوه جوړه راوړه، خو پام کوه چې څوك ورباندې خبر نشي، خدمتګاره ولاړه، جي کرشن نرملا تر مټ ونيوه او کوټې ته يې ورسره بوتله.

نرملا! کاشکې تا زما پر مشوره عمل کړی وای او دلته نه وای راغلې.

ماته ښه معلومه وه چې هغه به مړ شي او زه به يوځای ورسره سوځول کيږم. پلارجانه! زه له مرګه ويره نه لرم، خو د سردار پر اورتون ځان ورغورځول او ساه ورکول مې له زغم نه وتلي دي.

جي کرشن وويل: نرملا! اوس ستا د ژوند د ژغورلو يوازې يوه لاره ده، زما خبره په غور واوره، ستا خدمتګارې له موږ سره د ملګرتيا ژمنه کړې ده، اوس به هغه تاته د خپلو جامو يوه جوړه راوړي او را به شي. د جامو له بدلولو وروسته ته د ماڼۍ د شا له دروازې ځخه خپل کور ته ځان ورسوه، ما ګوبند رام د آس زين کولو لپاره استولی دی، هغه به ستا انتظار کوي، ته سمدستي د دروازې په لور وتښته، د مسلمانانو يوځ هماغه لوری ته تللی دی، که له دې ځايه څوك په تا پسې درځي، نو په هغه لوري به د درتلو جرئت نه کوي.

زما باور دی چې مسلمانان ستا کیسه واوري، پناه به درکړي، زه به ددې لپاره چې ته د تیښتې فرصت ترلاسه کړې، ترلږ ځنډه همدلته وم.
بیا ښایي په لومړي منزل کې درسره یو ځای شم.
نرملا وویل:
نه نه، پلارجانه! داسې نشي کیدای، زه تا دلته نشم پریښودای.
جي کرشن د هغې خبره ورغوځه کړه ويې ویل:
ماته دلته هیڅ خطر نشته، تر څو چې زه په ماڼۍ کې وم ستا په باب به له چا سره څه اندیښنه نه وي، د ماڼۍ د شا دروازه خلاصه ده، ما ولیده او راغلم. په دې بیر و بار کې به څوك تاته پام ونکړي، په سلګونو ښځې په ماڼۍ کې ګرځي راګرځي، ته یوازې باید دومره پام وکړې چې څوك دې په غور څیره ونه ویني.
- مګر پلار جانه...
جي کرشن ناتوانه شو ويې ویل:
د بګوان لپاره بحث مه کوه، ته پوهیږې چې له تا پرته زما ژوند هیڅ ارځښت نه لري، زه به له تا مخکې اور ته ځان وروغورځوم، خو زما د خبرې په منلو به ته هم زما او د ځان ژوند وژغورې. امید شته خو د اورتون له لمبو څخه څوك روغ راوتلی دی؟
نرملا! زما زړه ګواهي راکوي چې ته به ژوندۍ پاتې شې. بګوان چې د رام نات غوندې خلکو فریاد اوریدلی او مسلمانان یې د سومنات پر لاره وربرابر کړي دي، ستا مرسته به هم خامخا کوي، له همت څخه کار واخله لوړې!
خدمتګاره په تخرګ کې د جامولیه یوې غوټې سره کوټې ته ورننوته، نرملا د هغې له لاسه جامې واخستلې او ويې ویل:
پلار جانه! آیا ستا باور دی چې تاته څه خطر نشته؟
جي کرشن په بیړه ځواب ورکړ:
ماته هیڅ خطر نشته، د بګوان لپاره بیړه کوه.
نرملا د شا کوټې ته ولاړه او جي کرشن خدمتګارې ته وویل:

تا چې نن له ماسره کومه ښیګڼه کړې ده، ددې انعام ښایی زه د ژوند تر پایه درنکړای شم.
اوس باید نرملا د ماڼۍ د شا له دروازې څخه بهر ته وباسي.
د خدمتګارې په سترګو کې اوښکې ډنډ شوې ویې ویل:
د نرملا لپاره زه خپل ځان قربانولی شم.
جي کرشن وویل:
نرملا دې چې له دروازې نه بهر ته وایستله ماته خامخا خبر راکړه. له هغې وروسته ته هغې کوټې ته ورشه چې د سردار مړی پکې پروت دي، هلته چې کومې ښځې دی د نرملا په باب به اندیښنې کوي، ته هغوی په خبرو بوختې وساته.
نرملا د جامو له بدلولو وروسته د شا له کوټې څخه راښکاره شوه او جي کرشن بیله دې چې هغې ته د کومې خبرې فرصت ورکړي، د برنډې په لور تېله کړه. خدمتګاره له هغې سره روانه شوه او جي کرشن کوټه د ننه زنځیر کړه.

.....

د نرملا له روانیدو وروسته جي کرشن د ډیر غم په حال کې له دروازې سره غوږ نیولی و. کله به یې چې په برنډه کې د چا د پښو غږ واورید دهغه د زړه درزا زیاتوله. ورو به یې دروازه خلاصه کړه او برنډې ته به یې وکتل. خو چې د نرملا د خدمتګارې پرځای به یې بل څوك ولیدل بیرته به یې دروازه پورې کړه.
شیبه پر شیبه یې اندیښنه زیاتیده چې خدمتګاره تر اوسه پورې ولې بیرته راستنه نه شوه!
آیا دا امکان لري چې په دروازه کې نرملا چا پیژندلې وي؟ آیا دا امکان لري چې خدمتګارې ماته خبر راکول ضروري نه وي ګڼلي او نیغه د سردار کوټې ته ورغلې وي؟
له هغه سره ددې پوښتنو تسلې کوونکی ځواب نه و. په کوټه کې د ننه هره شیبه ده ته تر میاشتو اوږده ښکاریده او ساه یې بندیدله. له دروازې څخه

لرې شو په کوټه کې یې په قدم وهلو پیل وکړ چې بیا یې په برنده کې د پښو غږ واورید، دی بیا راغی او له دروازې سره یې غوږ ونیو.

چا دروازه وټکوله او ویې ویل:

دروازه خلاصه کړه!

د جی کرشن زړه ولوید او په خپ غږ یې وویل: څوك یې؟

بهر چا په آمرانه لهجه وویل:

دروازه خلاصه کړه! دا د سردار رګونات د ماما د زوی سردار ارجن دیو غږ و.

جي کرشن بیا په خپ غږ ورته وویل:

ستا له ما سره څه کار دی؟

ته یو ځل بهر راووزه، زه پوښتنه درنه کوم چې نرملا دیوي دې چیرته واستوله؟

جي کرشن څو شیبې حیران ولاړ و، بیا یې په لړزاندو لاسونو د دروازې زنځیر پرانیست په دهلیز کې پر ارجن دیو برسیره د مانۍ پنځه تنه نوکران او دوه د ښار برهمنان ولاړ وو، دهغوی څېرو ګواهي ویله چې نرملا دیوی په تېښته بریالۍ شوې نه ده.

جي کرشن د ارجن دیو لاس ونیو، سر تر پایه په عذر شو ویې ویل:

سردار ارجن دیوه! پر ما ورحمیږه!

نرملا زما یوازینۍ لور ده، هغه زما د ژوند وروستۍ امسا ده. زه پرته له هغې ژوندی نشم پاتې کیدای.

ارجن دیو وویل: نو هغې ستا په خوښه غوښتل وتښتي؟

- هوکې! هغه چیرته ده؟

ارجن دیو ځواب ورکړ:

ددې ځواب به د ښار د جرګې په مخ کې تاته درکړم، راځه لاندې!

جی کرشن وویل: د بګوان لپاره راته ووایه هغه چیرته ده؟

هغه لاندې ده او ترڅو چې د ستی کیدو رسم نه وی پوره شوی، مذهبي پیشوا صیب به یې ساتنه کوي.

جی کرشن بې اختیاره د هغه په پښو کې ورولوید او ویې ویل:

ارجن ديوه ! د هغې ژوند وژغوره پر ځای يې ما د سردار د مړی اورتون ته واچوه.

ارجن ديو وويل:

زه چې د يوه نوابزاده له خولې داسې خبرې اورم شرميږم، جی کرشنه په هوښ راشه دنيا به څه وايي؟

جی کرشن وويل: زه غواړم چې د خپلې لور ژوند مې وژغورم، د دنيا پروا نه لرم.

ارجن ديوه زما مرسته وکړه، زه به دا قنوج ته راسره بوزم، ته زما جايداد ځان ته اخستلی شې، خو نرملا پريږده.

ارجن ديو ځواب ورکړ: راجپوت پر خپل غيرت معامله نه کوي، تا بايد په دغو خبرو هغه ورځ سوچ کړی وای چې له سردار سره دې د خپلې لور واده کاوه.

جی کرشن جګ شو او په دواړو لاسو يې د ارجن ديو مټ ته جټکه ورکړه چيغې يې کړې:

ته نرملا له خپلې خوښې پرته د سردار له مړی سره نشې سوځولی، دا ګناه ده او زه دې ګناه ته اجازه نشم ورکولی.

ارجن ديو هغه په شا ټيله کړ او ويې ويل: ته ليونی شوی يې.

جي کرشن په منډه د هغې کوټې په لور ولاړ چې د سردار رګونات مړی پکې و، هغه په زوره زوره چيغې وهلې:

نرملا، نرملا! ښځې وويريدلې، يوې او بلې خواته شوې، جی کرشن چې نرملا هلته ونه ليده، د زينو په لور ورغې، لاندې ديوه پراخ دالان څخه د باندې د ښار خلك را ټول وو، جي کرشن هغوی په يوه او بله خوا لرې کړل، د ننه ورننوت، د منډهير مذهبی مشر د ښار له څو مشرانو او څو برهمنانو سره هلته ناست و، او نرملا د ډيرې بې وسی په حال کې د هغه مخې ته ولاړه وه.

جي کرشن نرملا، نرملا! چيغې کړې چې بيا نرملا چيغه وکړه، پلار جانه او ورسره غاړه غړی شوه.

نرملا ! زما لوري! زما ژونده، زه به تا ستي کيدو ته پرې نږدم، دغه خلك زما د يوې غلطۍ سزا تاته نشي درکولی، ته دوی ته ووايه چې د خپلې خوښې پرخلاف دې له سردار سره واده کړې و.

نرملا په زوره زوره ژړل، جي کرشن مذهبي پيشوا ته وويل:

تاسو ددې لپاره زما لور ستی کوی چې زيور يې تاسو ته په لاس درشي، خو تاسو له دې پرته چې دا اور ته وغورځوی، هرڅه درسره وړای شي، زه خپل جايداد درکولو ته هم چمتو يم. نرملا تاسو ته څه بد ندی رسولي، د بګوان لپاره دا پرېږدئ.

سردار ارجن ديو وويل:

دا ليونی شوی دی، له دې ځايه يې بوزئ . څو نوکران را وړاندې شول، جی کرشن يې تر مټو ونيو، د سردار رګونات يوه بل خپلوان نرملا تر مټ ونيوله، ترې کش يې کړه او دواړه يې سره بېل کړل، نوکرانو جي کرشن بهر ته بوتلو . هغه چيغې وهلې:

تاسو ظالمان يی، لېوان يې، خو په ياد ولرئ مسلمانان به بيا دلته راشی او له تاسو نه به د نرملا د مرګ بدل واخلي.

• • • • •

مذهبی پيشوا او د ښار څو تنه مشران په دې نظر وو چې جی کرشن جيل ته واستوی ، خو ارجن ديوله دې رايې سره مخالفت وکړ، ويې ويل:

په دی کې شك نشته چې د جی کرشن دماغ خراب شوی دی، خو موږ بايد دا هير نه کړو چې دي، د سردار صيب خسر دی، ترڅو د ستی کيدو رسم ترسره شوی نه دی ، ددې مانۍ کومه کوټه کې به بندی وي. زما باور دی چې تر يوه دوو ورځو پورې به يې بيرته دماغ سم شي، اوس بايد د سردار صيب د مړي په وړلو کې ځنډ ونکړو.

د ښار مشرانو د ارجن ديو له نظر سره اتفاق وکړ او جي کرشن يې د مانۍ په دريم پوړ کې په يوه کوټه کې بندی کړ. د مانۍ په يوه بله کوټه کې يې نرملا ته ګران بيه جامې او زېورات ورواغوستل او ښځې يې سينګار کړه، يوې عمر خوړلی ښځې هغه پوهوله:

لوري ! همت وکړه، ته باید پر دې وویاړې چې د سردار رګونات غوندې وطن پال سړی سره ستې کیږې، د منډهیر میرمنې به ستا پر نصیب رشک کوي، د خپل میړه د عزت خیال و ساته.

نرملا هکه پکه ناسته وه ، دا ټولې خبرې یې اوریدې . ددې سترګو ته د یوې تیارې خلا نه پرته هیڅ نه وو.

د ماڼۍ په دریم پوړ کې جي کرشن د دروازو د ماتولو له ناکامې هڅې وروسته له دیوال سره سرجنګاوه، د کوټې یوه کړکۍ انګړ ته خلاصه وه، خو د کړکۍ څخه ژوندی بیرون راوتل ممکن نه وو. جي کرشن له کړکۍ څخه بهر ته را وکتل او په زوره یې چیغې کړې:

د بګوان لپاره ما بهر ته وباسئ، زه په وروستیو شیبو کې غواړم له خپلې لور سره و اوسم.

خو د هغې چیغې د ګڼه ګوڼې په شورکې ورکې شوې، ماسپښین مهال د ناقوس له غږ سره له ماڼۍ څخه د رګونات مړی اوچت شو.

مخې مخې ته د برهمنانو یوې ډلې مذهبی سندرې ویلې، وریسې نرملا د یوې ناوې په څیر په نویو ښکلیو جامو اوقیمتی زیور سینګار شوې په یوه ګاډۍ کې ناسته وه.

جي کرشن په پوره زور چیغې کړې:

نرملا، نرملا! خو د نرملا تر غوږو دده غږ ونه رسید . بیا د خو ښځو او نارینه و د شور ماشور سره جوخت کوم دروند شی راولویدل چې غږ یې ټولو واورید چې د سترګو په رپ کې یه انګړ کې د ننه او بهر کریږی پورته شوې.

د نرملا پلار له کړکۍ څخه ځان راغورځولی ؤ او ځان یې وژلي ؤ. جلوس ودرید ، نرملا له ګاډۍ څخه کوزه شوه او په منډه ورغله د خپل پلار پر مړی ورپریوته او په سلګیو شوه، بیا یې د ښار خلکو ته مخ وروا ړاوه او چیغې یې کړې:

د بګوان لپاره زما د پلار مړی هم له موږ سره یوسئ، قضا ماسپښین د رګونات سره یوځای د جي کرشن مړی هم د سوځېدلو ځای ته واخستل شو او خلکو هماغه لوري ته مخه کړه.

• • • • •

د نرملا په غوښتنه يې د جي کرشن مړی ته لومړی اور واچاوه، کله چې لمبې پورته شوې، نرملا منډه واخستله غوښتل يې ځان پکې واچوي، ارجن ديو پوهيده چې دا د دغسې کار اراده لري، زر ورورانډې شو او تر مټ يې راونيوه، نرملا چيغې کړې:

پرې مې ږده ! زه د سردار پر ځای غواړم د پلار له مړی سره ځان وسوځوم، خو خلکو يې لاس او پښې وروتړلې، راپورته يې کړه او د رګونات د مړي سره يې د لرګيو په انبار کېښوده.

د سردار نوکرانو او خپلوانو د وچو لرګيو پر انبار دغوړيو کټوې ور واړولې.

بيا يې عود، عنبر او نور خوشبويه شيان راوړل او پر لرګيو يې ورکېښودل، څو برهمنان د اور له مشالونو سره دريدلې وو او د مندهير مذهبي پيشوا په سانسکرټ څه مذهبي بيتونه لوستل.

د نرملا سترګې د خپل پلار په اورتون ښخې وې او دې په زړه کې ويل:

پلارجانه ! ستا مړه کيدل غوره وو، لږ څنډ وروسته به د اور لمبې ما هم په خپله غيږه کې ونيسي، که ته ژوندی وای. نو زما کريږې به دې نه وای زغملې، اوس به زما د چيغو پر اوريدو څوك نه خپه کيږي. بيا يې رنبير ورياد شو او د مرګ څيره ورته ويروونکې شوه، دا د رنبير له خيالي تصوير سره په خبرو شوه او ويل يې:

کاشکې ته اوس دلته وای او چې د اور لمبې ماته را نژدې شوې وای، نو ما په لوړ غږ ستا نوم اخستی وای او ويلای مې چې رنبيره ! د قنوج څخه تر راتلو وروسته زما په ژوند کې هيڅ داسې شيبه ته ده چې زه ستا له ياد څخه غافله وم، ما به تل دا فکر کاوه چې ته به يوه ورځ راشې، ته راغلې، خو نظر دې زما د زړه تل ته کوز نه شو، زه تل ستا وم، خو تا تل زه پردی بللم، رنبيره ! رنبيره ! چيرته يې؟

له پيشوا سره د برهمنانو ډلې مذهبي سرود پيل کړ، د هغوی غږونه ورو ورو اوچت شول، د مذهبي مشر په اشاره د يو ځوان له بل شوې مشال سره ورانډې ورغی، نرملا د ډيره درده سترګې پټې کړې، خو په ګنه ګوڼه کې چا په زوره چيغې کړې:

پوځ راغی! پوځ راغی!

د سترګو په رپ کې ټولو خلکو په وارخطایی ختیځ لوري هغه لښکر ته سترګې ور واړولې چې په تراټ را روان و. چا په وارخطایی مشال وغورځاوه او د لرګیو د انبار پر څنډه اور بل شو.

د سپرو مخه د ښار لوری ته وه، خو د خلکو غیر معمولي ګڼې ګوڼې ددوی مخه د مړیو د سوځولو ځای ته ور واړوله، تر لږ څنډه څو سپاره له لښکر څخه بیل شول او د مړیو د سوځیدلو ځای ته ورنژدې شول.

. . . . . .

په خلکو کې ګډوډی خپره شوه، خو مذهبي پیشوا په زوره وویل: احمقانو! دا خو زموږ د هیواد سرتیري دي، تاسو ولې تښتئ؟

د لرګیو انبار ته ښه اور واچوئ، څو تنو خپل خپل مشالونه د لرګیو په انبار کې ښخ کړل.

خو د خلکو پام د مړي د سوځولو پرځای اوس را روان لښکر ته اوښتی و.

کله چې د سپرو ډله د اور انبار ته رارسیده، د اور لمبې نرملا ته نژدې شوې وې. خلك په چیغو او سورو سر شول او په یوه او بل لوری وتښتیدل. یو ځوان له آس څخه پلی شو او په منډه د اور په لور وړاندې ورغی. نرملا یې په ځپلو مزبوتو متو کې راواخیسته او له انبار څخه یې بهر ته راوایستله.

هغه بې هوښه وه. ځوان پر ځمکه څملوله او خنجر یې راویوست. د لاس او پښو پړی یې غوڅ کړل. په دې څنډه کې نور سپاره هم له آسونو پلي شول او د نرملا پر شاوخوا را ټول شول، ځوان له یوه سرتیري څخه اوبه وغوښتې، هغه د خپل آس له زین څخه پتك راوړ او وروړاندې یې کړ.

ځوان د هغې په مخ اوبه وشیندلې او ورته وې ویل: نرملا! نرملا!

نرملا په هوښ راغله، او سترګې یې وغړولې، سترګې یې د ځوان پر څیره ښخې شوې. دا یوسف و. د نرملا له شونډو یو کمزوري او ریږدیدونکی غږ اوچت شو:

رنبیره! ته راغلې. زه پوهیدم چې له مرګه وروسته به دوازه خامخا سره یوځای شو.

یوسف خپل لاس د هغې ورمیږ ته تکیه کړ او راپورته یې کړه ویې ویل:

نه ژوندی یې نرملا!

نرملا څو شېبې په حیرانۍ یوې او بلې خواته وکتل او بیا بې اختیاره له یوسف سره غاړه غړۍ شوه او په سلګیو کې یې وویل:

هغوي... هغوی زه له سردار سره ستی کولم. ته خو به اوس ما نه پرېږدی او نه به رانه ځې! اوس به زه ستا جدایي ونه زغملای شم. هلته ګوره هغه زما د پلار سوځېدلي مړی دي. په دنیا کې نور زما هیڅوک نشته. د یوسف په سترګو کې اوښکې راغلې ویې ویل:

نرملا زه به تا پرېنږدم او نه درنه ځم.

- زه یوه کونډه یم!

نرملا دا وویل او بیا یې په چیغو چیغو وژړل. یوسف دې ته ډاډ ورکړ ویې ویل.

ددې هیواد په نوی رواج کې کونډه د کرکې وړ نه ګڼل کیږي.

- زه رښتیا ژوندۍ یم رنبیره! او دا هم کوم خوب نه دی چې ته دلته یې؟

- نه دا خوب نه دی نرملا! جګه شه راځه له مور سره روانه شه.

- چیرته؟

- نن مور ستاسو په ښار کې پاتې کیږو.

نرملا جګه شوه او ودریده. په دې خنډ کې نور پوځ چې دوه زره تنه سپاره وو، هلته ورورسید، د پوځ ستر سالار عبدالواحد و. هغه له آس څخه پلی شو وړاندې ورغی، یوسف ورته وویل: دا نرملا ده، اوس یې دلته سوځوله.

عبدالواحد وویل: د خدای شکر دی چې مور پر وخت راورسیدو.

د نرملا په سترګو کې اوښکې راغلې ویې ویل:

که تاسو څو ساعته مخکې را رسیدلی وای، ښایی زما د پلار ژوند هم ژغورل شوی وای.

د عبدالواحد د څو نورو پوښتنو په ځواب کې نرملا د جي کرشن د مرګ کیسه ورته وکړه، له نرملا سره د خواخوږۍ او تسلیت نه وروسته عبدالواحد یوسف ته مخ وړ واړاوه:

مور به نن شپه په مندهیر کې پاتې کیږو او سبا ته به وختي له دې ځایه روانیږو.

سلطان به په لاره کې زموږ انتظار نه کوي، خو زما باور دی چې موږ به سومنات ته له جګړې پیلیدو څخه د مخه ورسیږو.

د ښار خلک په یوه او بله خوا تیت او پرک شوي و، خو د درمسال مذهبي پیشوا څو تنه سرداران او برهمنان لږ لرې ولاړ وو، هغوی په ویره ویره وړاندې ورغلل او د عبدالواحد په مخکې لاس په نامه ودریدل.

عبدالواحد ترې وپوښتل: ته څوک یې.

- باداره! زه ددې ښار مذهبي پیشوا یم.

- ورځه دښار خلکو ته ووایه چې سر او مال ته یې هیڅ خطر نشته.

- باداره! تاسو کوم ځایه راغلې یاست؟

- تاته ددې پوښتنې ضرورت نشته.

مذهبی پیشوا بیرته له خپلو ملګریو سره یو ځای شو.

****

د شپې مهال نرملا د ماڼۍ په یوه کوټه کې ناسته وه، یوې خدمتګارې له دروازې څخه ور وکتل او ویې ویل:

هغه پاس را روان دی!

نرملا وویل: دلته یې راوله!

خدمتګاره بیرته ولاړه، لږ ځنډ وروسته نرملا په دهلیز کې دچا د پښو غږ واوریده او دا ناڅاپه له ځایه جګه شوه ودریده.

چا ورو دروازه وټکوله، نرملا ورته وویل: راځه!

یوسف کوټې ته ور ننوت او له څه مقدمې پرته یې وویل:

ما له خپل سالار سره مشوره کړې ده، هغه ویل که د سفر ستونزې زغملی شې، نو تیاره شه، موږ به د شپې په وروستۍ برخه کې له دې ځایه خوځیږو.

نرملا یوسف ته وکتل او په سلګیو یې وویل:

زه تیاره یم.

یوسف وویل:

نرملا! اوس له صبر پرته بله چاره نشته.

نرملا اوښکې پاکې کړې ویې ویل: مهرباني وکړئ!

یوسف د دروازې په لور مخ واړاوه او ویې ویل.

نه ته اوس باید خوب وکړي.

خو نرملا وویل:

لږ ودریږه زه د شکنتلا او روپ وتي په باب درنه پوښتنه کوم.

یوسف ځواب ورکړ:

شکنتلا ډیره خوشاله ده او د روپ وتي صحت هم اوس له پخوا څخه ډیر ښه دی، خو د هغې د درد لپاره سره هیڅ علاج نه و، پردې تینګه وه چې له موږ سره راشي، ما په ډیر زحمت وپوهوله چې ته د دومره اوږده سفر توان نه لري، خدای دې وکړي چې رام نات ژوندی وی که نه دا به ورپسې لیونۍ شي.

نرملا وویل: که ستا اجازه وي، زه ګوبندرام راسره بوزم.

ګوبند رام دا اوس ما په لاره کې ولید ورته ومې ویل چې سهار وختي تلو ته تیار شه او ګوره ما ستا د ساتنې لپاره پردې مانۍ د خپلو کسانو پهره درولې ده.

نرملا ځواب ورکړ:

د اور له انبار نه چې ژوندۍ راووتم بیا مې له مرګه ویره نشته. آیا ماته د خپل هغه مالك ساتنه کافي نه ده چې د مرستې لپاره یې ته راواستولې؟

یوسف له لږ ځنډ وروسته وویل:

زموږ مزل به ډیر ګړندی وي. ځکه خو ته هم باید له موږ سره پر آس سفر وکړې.

نرملا ځواب ورکړ:

زما غم مه کوه ، زه له تاسره پلې مزله ته هم تیاره یم ، اوس په دې مانۍ کې ماته یوه ورځ پاتې کیدل هم ناشوني دي.

- ډیر ښه، اوس ماته اجازه راکړه ، یوسف دا وویل او بې له دې چې د نرملا د ځواب انتظار وکړي له کوټې ووت.

سبا سهار ته د قنوج د نویو مسلمان شویو خلکو لښکر د جنوب په لور مخه کړه، نرملا پر یوه آس سپره وه. له هغې سره دا غم نه و چې منزل یې کوم دی، همدا یې بس وو چې یوسف ورسره دی.

• • • • •

د سومنات په بندیخانه کې د رام نات لپاره هره شیبه تر مرګ زیاته ویروونکې وه، د لوږې، تندې او وهلو ټکولو له زغم نه وتلیو تکلیفونو سره سره ، ده د مذهبي پیشوا دې پوښتنې ته قانع کوونکی ځواب ورنکړای شو چې روپ وتی چیرته ده؟

په پیل کې یې داسې ګڼله چې روپ وتی د مذهبی مشر په واک کې ده، ځکه خو یې دې په عذاب کړ، چیغې یې کړې: تاسو ما وژلی شې، خو په دې ډول د مذهبی پیشوا پر ګناهونو پرده نشی اچولې، روپ وتي که ژوندۍ وی د پیشوا سره به وی که مړه شوی وي، نو هغه وژلی ده، خو څو اونۍ وروسته یې دا احساس کړه چې ښایی مذهبي پیشوا هم د روپ وتی په باب خبر نه وی چې څه شوه.او دا په منډهیر کې د هغه د راتلو له خبراوریدو سره چیرته غلی شوی وي.

یوه شپه مذهبی پیشوا دده خونې ته ورننوت او ویې ویل:

رام ناته! ستا ضد بې معنی دی. که روپ وتی ځمکې تیره کړې وي هم یوه ورځ به یې خامخا پیدا کړم.

هسې هم موږ ته له هغې څه خطر نشته. ددې هیواد یو سړی هم زما پر خلاف د هغې تورونو ته غوږ نه ږدي. خو ته که د روپ وتی درك په لاس راکوی . نو خپل ژوند ژغورلی شی. زه وعده کوم چې د روپ وتی به څه سختی نه کوو.

رام نات ځواب ورکړ: ته پوهیږې چې ستا پوښتنې ته له ماسره هیڅ ځواب نشته . ما روپ وتی په کوز کې پریښې وه او تللې وم، او وروسته چې بیا راتلم ستا کسانو زه ونیولم اوس زه تاته څنګه ویلی شم چې هغه چیرته ده؟

مذهبي پیشوا له لږ څنډ وروسته وویل:

ما ته معلومه شوې ده چې روپ وتی تا بیا نه ده لیدلې، خو غواړم پردې وپوهیږم چې هغه له کوره څنګه بې درکه شوه؟

رام نات په دردناکه لهجه ورته وویل:

کاشکې زه پردې خبر وای.

مذهبی پیشوا وویل:

زه تر لږ خنده دا فرض کوم چې روپ وتي ستا له خبرېدو پرته چېرته غلې شوې ده. خو ته باید ددې پوښتنې ځواب راکړې چې هغه له درمسال څخه څه ډول ورکه شوه. که ته د هغو کسانو پته راکړې چې روپ وتي یې له درمسال څخه وتښتوله. نو زه ستا د ژوند د ژغورلو ژمنه کوم.

رام نات له لږ چوپتیا وروسته ځواب ورکړ:

ته به ددې پهره دارانو په مخکې دا ځواب خوښ نه کړې.

پیشوا پهره دارانو ته اشاره وکړه او هغوی له کوټې څخه ووتل. رام نات وویل:

تا تراوسه پردې هیڅ سوچ نه دی کړې چې کوم پالونکی د کامني سره تللې وو چې هغه په سمندر کې وغورځوي بیرته ولې رانه غلل؟

څو شیبې د مذهبي مشرله خولې هیڅ ونه وتل بیا یې په خپ غږ وویل:

ته د هغوی په باب معلومات لرې؟

رام نات ځواب ورکړ:

زه د هغوی په باب دومره معلومات لرم چې په هغوی کې ځینې له کامني سره ملګري شول او هغه نور ملګري یې په سمندر کې وغورځول.

پیشوا چیغې کړې:

ته دروغ وایې. دا هیڅکله نشي کیدای. نه دداسې کیسو په اورولو ما نشی تیر ایستلی.

رام نات وویل: دا دروغ نه دي. پالونکي چې څو میله لرې ولاړل. کیښتی یې وسوځوله او بیا دوی تر سهاره دسمندر پر غاړه په ځنګل کې پټ وو. د کامني له روپ وتي سره خواخوږي وه، هغه زما او روپ وتي پر اړیکو هم خبره وه، سبا ته هغه د یوې کلیوالې ښځې په جامه کې درمسال ته ننوته او زه یې له ټولې کیسې خبر کړم.

ما بیا ټوله پاتې ورځ هغه پر کوټه کې پټه وساتله. بیا چې دشپې دنوی دیوي جشن نمانځل کیده، کامني ستا تر ماڼۍ پورې لاره راوښودله. هغې ته د درمسال ټولې پټې لارې معلومې وې. ځکه خو له څه ستونزو پرته ستا ماڼۍ ته درورسیدو. بیا چې کله ته له روپ وتي سره هلته راغلې. موږ په یوه خونه کې ستاسو انتظار کاوه. وروسته چې بیا څه وشول ددې اړتیا نشته چې زه

يې تاته ووايم تاته همدومره بس دی چې وپوهيږې چې ستا هغه د درمسال پالونکي چې د کامني ژوند يې ژغورلی وُ ستا مانې ته نژدې کب نيوونکيو په يوه کلي کې زموږ انتظار کاوه، د روپ وتی څو ګانې ددې لپاره بس وی چې کب نيوونکی پرې خوشاله شي، موږ دوې ورځې پر کيښتۍ سفر کاوه، بيا د مالابار يوه لويه کيښتۍ راته پيدا شوه چې سند ته تله موږ په هغو کې سپاره شوو، په لاره کې روپ وتي ناروغه شوه او زه له دې سره له کيښتۍ څخه پلې شوم. چې له څو ورځو مزله وروسته مو په منده‌ير کې پناه واخسته.

دغه کيسه د رام نات د څو ورځو او شپو د چرتونو حاصل وُ.خو پر پيشوا يې په زړه پورې اغيزه وکړه، او له څه ځنډ چورت وروسته يې وپوښتل:

کامني او د درمسال پالونکی چيرته دي؟

رام نات ځواب ورکړ: موږ هغه په کيښتۍ کې پريښودل. زما په خيال به هغوی سند ته رسيدلې وې. کامني ويل چې زه محمود غزنوی ته ورځم.

پيشوا وپوښتل: کامني او د درمسال پالونکيو ته دا معلومه وه چې ته منده‌ير ته روان يې؟

- هوکې! ما هغوی ته وويل چې د انهل واړه لوی راجه زما دوست دی او هلته ماته کوم خطر نشته. ستا په ګومان به زما پالونکی هم مسلمانانو ته ورغلي وي

زه په دې باب څه نشم ويلی. خو پر کيښتۍ مې چې له هغوی سره يوځای سفر کاوه داسې مې احساس کړه چې دوی پر خپلو تيرو ګناهونو پښيمانه دي.

هغوی له سومنات او دسومنات له مذهبی مشر څخه کرکه کوله.

- د کيښتۍ کپتان څوك وُ؟

- هغه يو مسلمان و، خو نوم يې ماته معلوم نه دی.

پيشوا له لږ ځنډ وروسته وويل:

ته په دروغ ويلو کې ډير هوښيار يې، خو ما نشې تير ايستلی، زما خدمتګاران له ما سره خيانت نشي کولی، ماته معلومه ده چې د سومنات پر خلاف ډيره لويه دسيسه روانه ده او ترڅو ماته دا معلومه نه شی چې په دې دسيسه کې څوك شريك دی ته به زما سره بندي وي.

- زما سره اوس ستا د جيل ويره نشته ، خو يوه غوښتنه درنه کوم.
- د څه شي؟
- ماته يوازې دومره ووايه چې روپ وتي چېرته ده.
او تا څه سلوك ورسره کړی دي؟
مذهبي مشر ځواب ورکړ ددې پوښتنې د ځواب له معلوملو نه وړاندې ته بايد دا راته ووايې چې په دې سيمه کې د دښمن جاسوسان څوك دي؟
زه کوم جاسوس نه پېژنم.
- ته په ډېروشيانو خبر يې او ښايي چې کله خپل نوي کور ته ولاړ شي، ډېرو شيانو ښودلو ته تيار شي، مذهبي پېشوا دا ووېل پهره دارانو ته يې غږ وکړ او پخپله له کوټې ووت.
په همدې ماښام رام نات يوې تر ځمکه لاندې سمڅې ته يووړل شو، په دغه تنګه او تياره پنجره کې رام نات ته ژوند يوه تکه توره او پای ته نه رسيدونکی شپه وه. هره ورځ به پهره داران راتلل او ده ته به يې ډوډۍ او اوبه راوړل بېرته به ولاړل. خو هيچا ته دا اجازه نه وه چې ورسره خبره وکړي، دوې مياشتې وروسته يوه ورځ پهره دار دی مذهبی پېشوا ته وروست.دا روغبړ ډېر لنډ و. مذهبی پېشوا ده ته ووېل چې که د دښمن جاسوسان وروښيې ، نو تا به خوشې کړو، خو د رام نات لومړنی او وروستی ځواب همدا و چې زه کوم جاسوس نه پېژنم. له دې وروسته څو مياشتې نورې تيرې شوې او رام نات داسې احساس کړه چې چا دې بندی کړې و دهغو هير شوی دي.
په دغه له زغم وتلي يوازې توب کې د روپ وتي ياد ده ته تسلی ورکوله،او د هغې ياد به د مايوسيو په تيارو کې د اميد د ډيوو بلولو ته چمتو کړ، ده د هغه لمر انتظار کاوه چې د سومنات تيارو فضاګانو ته ديوه نوی سهار پيغام راوړي. ده به د سومنات پر دروازې په خيال کې د هغه ستر انسان هرکلی کاوه چې د رهت پرڅنډه يې لومړنی ليدنه ورسره شوې وه.

Bawar.net

# وروستۍ جګړه

کله چې د سلطان محمود لښکر د لواده ته نژدې شو، ناڅاپه د ګردونو وریځ راښکاره شوه او هوا تیاره شوه، تر لږ ځنډه هوا دومره تیاره شوه چې خلکو په ماسپښین کې د شپې د وروستۍ برخې تیارې لیدلې، د سرتیرو لپاره څو ګامه لرې لیدل ګران وو. خو سلطان پردې خوښه رانغله چې مزل ودروي.

د دلواده برهمنانو خلکو ته ویل چې دا د سومنات د دیوتا کرامت دی. دغه تیارې ددې خبرې ګواهي ورکوي چې د سومنات د دښمنانو هر ګام د تباهۍ په لور دی.

د ښار مشرانو دا اعلان کاوه چې موږ ته د دښمن د مقابلې اړتیا نشته. د دښمن د بشپړې بربادۍ لپاره ضروري ده چې هغوی سومنات ته ورسیږي ځکه خو کله چې د سلطان لښکر ښار ته ننوت د ښار اوسیدونکو له څه تینګار پرته وسلې وغورځولې.

په دلواده کې عبدالله او دهغه څو ملګري د سلطان هرکلي ته ورغلل له هغوی څخه د سومنات د تازه وضعې د معلوملو نه وروسته سلطان د جنرالانو غونډه راوغوښته، په دې غونډه کې د عبدالله د ملګریو نه یو عرب ځوان هم و چې د سلطان زیاترو ملګریو نه پیژاند. سلطان نوموړی خپل ښې څنګ ته کیناوه او خپلو جنرالانو ته یې وویل:

دا زموږ نوی ملګری دی او سلمان یې نوم دی، تاسو به دې د سومنات په مهم محاذ کې وګورئ.

کله چې خبرې پیل شوې، نو د مجلس خلک وپوهیدل چې سلطان ته دهغه ځوان قدر او مرتبه بې سببه نه وه. د سومنات د کلا مزبوتوالی او دهغې د

پوځي ځواک په باب د ځوان معلومات ډیر زیات وو. د غونډې په پای کې د سلطان تجربه کار جنرالان یو یو جګ شول او ځوان ته یې لاس ورکړ.
سبا ته دوه زره تنه د نویو مسلمانانو پوځ د عبدالواحد په مشرۍ له قنوج څخه راغلی ؤ. د سلطان له پوځ سره یو ځای شو.
او دریمه ورځ سلطان له دلواده څخه وخوځید.

.....

د ۱۰۲۶ میلادي کال په ۶ مه نیټه چې د پنجشنبې ورځ وه، د سلطان محمود پوځ مخامخ د سومنات د درمسال طلایي قبې لیدلې. سلطان د آذوقې او نور سامان ګروپونه شاته پرېښودل او وړاندې ولاړ، هندوانو خپل ټول ځواک د کلا د ننه راټول کړي وو، ښار او شاوخوا کلي نژدې خالي پرېښودل شوي وو، د سلطان لومړنیو ډلګیو له څه مقاومت پرته هغه ونیول.
تر دې وروسته سلطان د کلا په لور وړاندې شو او نژدې ماسپښین کلا ته نژدې د سلطان پوځ یوه عجیبه ننداره لیدله. د سومنات زیات ساتونکي په برجونو کې ودریدل. په ډیر جوش او خروش یې یرغل راوړونکیو ته د یرغل بلنه ورکوله. چا به دوی ته کنځلې کولې او چا په زوره زوره ویل چې نور به له دې ځایه روغ ولاړ نه شي.
د سومنات دیوتا به له تاسو نه ددې هیواد د ټولو دیوتاګانو د سپکاوي بدل واخلي.
د برجونو په څیر د کلا د ننه ودانۍ پر بامونو هم د انسانانو ګڼه ګوڼه وه. د کلا په پراخه انګړ کې هم د پښې اینبودو ځای نه ؤ.
د ډیرو زیاتو انسانانو شور او چیغې د یوه اور غورځوونکي غره د راخوټیدونکي لاوا د راوتلو له ګړزهار نه زیاتې هیبتناکې وې، داسې احساسیدله چې ددې هیواد ټول اوسیدونکي راټول شوي او د سومنات په څلور دیوالي کې ننوتلي دي.
سلطان خپلو ساتونکیو ګروپونو ته حُکم وکړ چې نور لښکر آسونه شاته بوزي. بیا یې په داده زړه د ماسپښین لمونځ اداکړاو دالله له دربار څخه یې د فتحې او برۍ دُعا وغوښته. بیا یې خپل سرتیري مخاطب کړل او په لوړ غږ یې ورته وویل.

غازیانو!

دهند پر ځمکه د کفر او اسلام وروستی جګړه ده، موږ د سومنات په تیارو کوټونو د خدای جل جلاله د توحید د بیرغ رپولو ژمنه کړې ده . او اوس زموږ په مخ کې دوې لارې دي.

که ستاسو ایمان لړزیدلی نه وي، نو له دې ازموینت څخه به سر لوړي او ویاړمن وزو، راځئ دلته ژمنه وکړو چې سبا ته به د جمعې لمونځ په سومنات کې دننه ادا کوو.

فضا د الله اکبر غړونو ولړزوله، سلطان پر آس سپور شو، پر لښکر راوګرځید، سالارانو ته یې لارښوونې وکړې او بیایې د حملې امر وکړ. د سترګو په رپ کې د مسلمانانو پوځ د راپورته شوی څپې په څیر د سومنات د برجونو او دېوالونو په لور ورغی. د "الله اکبر" د نارو په ځواب کې له کلا څخه د "لوی دیوتا دې ژوندی وي" نارې اوچتې شوې. او د برجونو ساتونکیو د غیشو اورول پیل کړل. حمله راورنکیو هم د غیشو په ځواب کې غشي اورول. خو د برجونو ساتونکی د دوی په پرتله زیات خوندي وو. د افغانی او ترکی سرتیرو څو ډلو ډالونه پر سر ونیول او د دېوال بیخ ته ودریدل او د کمندونو او زینو په مرسته یې پر دیوال د ورختلو هڅې وکړې. خو دښمن هغوی ته پر برجونو د پښې ټینګولو موقع ورنکړه. سلطان محمود د دښمن له شمیر نه خبر و، خو د هغوی دغه جوش او احساسات ده ته له اټکل څخه ډېر زیات وو.

تر ماښامه مسلمانانو سره له دې چې ډېرې حملې یې وکړې. پر برجونو یې چیرته پښې ټینګې نه شوې، د شپې سلطان محمود خپل لښکر ته له کلا څخه لرې د پړاو اچولو امر وکړ، په کلا کې د زنګونو او ناقوس له غړونو سره د "ژوندی دی وی سومنات" نارې اوچتې شوې او د مسلمانانو په پړاو کې دماسختن دلمانځه آذانونه کیدل.

.....

د سبا ورځې لمر د سومنات تر دیوالونو لاندې د یوه درانه جنګ شاهد و. سلطان د غشو په باران کې دریدلی و او دهغه سربښندونکو د جرئت او میړانې د ښکارولو لپاره یو له بل سره مسابقه کوله. دبرجونو ساتونکیو پر حمله راوړونکیو د تیږو او غشو د باران نه پرته سره شوی تیل ورښبندل. کمندونه

وشليدل، زينو اور واخست او ددیوال په بیخ کې مړی یو پر بل انبار کیدل.
خو پر دې برسیره د حمله راوړونکیو جوش او احساسات ، شببه په شببه زیاتیدل. د ختیځ لوری څخه څو ډلو دومره په توندی غشي واورول چې د برجونو ساتونکی د لږ ځنډ لپاره په مورچلو کې پناه اخستو ته اړ شول.

خو سرتیری په منډه وړاندې ورغلل او په زینو یې د برجونو سر ته د ور ختلو هڅه وکړه ، غشي ویشتونکیو ساتونکیو ته د سرپورته کولو موقع نه ورکوله او د سترګو په رپ کې پنځلس- شل تنه سرتیریو دښمن یوه او بل لوری ته په شا کړ او پر یوه برج یې پښې ټینګې کړې. د برجونو ساتونکیو ځوابی برید وکړ، او مسلمانان د هغوی د حملې د فشار په سبب یوه کونج ته را غونډ شول، خو په دې ځنډ کې څو نور سرتیری پر دیوال وختل، هغوی یو ځل بیا هندوان په یوه او بل لوری په شا کړل.

لږ ځنډ وروسته مسلمانانوله یوه برج څخه ښکته تللی زینې د نیولو هڅې پیل کړې.له لاندې کلا څخه د هندوانو یو سیلاب پورته ور روان و. مسلمانانو یوه زوروره حمله وکړه او څو سرتیرو په زینه کې د دښمن څو مړی تر پښو لاندې کړل وربښکته شول. په انګړ کې ددوی ښي او کیڼ لوري او مخې ته دانسانانو یو سمندر څپې وهلې. ددې سمندر څپو غوښتل دوی په غیږ کې ورسره واخلي او پرې را وړاندې شي. خو د زینې له لارې مسلمانان د هغه غرنی خوړ د اوبو په څیر لاندې ورکوزیدل چې ټول د مخې بندونه یې نړولي وي. په لږ ځنډ کې په سلګونو مسلمانان انګړ ته ورسیدل او د دښمن پر لیکو یې بې دریغه غشي اورول ، هلته هر برج ته د ورختونکو شمیر شیبه په شیبه زیاتیده . په دې کې سلطان محمود هم د برج سرته وخوت، هغه په خپل شاهینی نظر وضعه ولیده او بیایې سرتیرو ته امر وکړ چې له بهر څخه څو زینې راټولې کړی او د ننه یې کلا ته وغورځوي. هندوانو چې هغوی ولیدل وړاندې ورغلل، خو د غشو په باران کې یې هیڅ ونکړای شول. د یوه ساعت په اوږدو کې د سلطان اته زره تنه سرتیری د کلا د ننه انګړ ته ورسیدل. په دې موده کې د تُرکمنو څو ډلو د کلا په شمالی برج باندې په یوه برخه پښې ټینګې کړی وې.

مسلمانان په ډېر زغم او آرامی سره د الله په دربار کې سرونه په سجده ایښي وو.

سلطان له لمانځه وروسته پر خپلو ملګرو یو نظر راوګرځاوه، ددوی پر تندیو دفتحې زیرې لیکل شوې وو او په سترګو کې یې د مننې او احسان مندی اوښکی ځلیدلې.

سلطان له کلا څخه د خپلو شهیدانو او ټپیانو د ایستلو لپاره څو ډلګی وټاکلې، نورو ډلو ته یې د کلا پر ماڼیو د حملې امر وکړ، ډیرې ماڼی مسلمانانو ونیوې، خوددې جګړې پریکنده پړاو لا پاتې وه.

له خندق څخه پوری غاړې ته د درمسال په انګړ کې هندی سرتیرو او د دوی سردارانو دخپل سپیځلي دیوتا د ساتنې لپاره تر وروستی سلګی دجګړې ژمنې کولې.

ناڅاپه په درمسال کې د ناقوس او زنګونو غږونه اوچت شول.

پر کنده د لرګیو پلونه بیا کیښودل شول او دکلا په لور دهندوانو سیلاب بیا را ووت. دغه حمله څومره چې ناڅاپی وه. هومره زوروره هم وه. تر لږ ځنډه هندوانو د کلا دریمه برخه بیرته ونیوله. مسلمانانو یو ځل بیا حمله وکړه او هندوان یې بیا د کندې (خندق) په لور ورټولیدو ته اړ کړل. خو د دوی هڅې د یوه سمندر د توپانی څپو په مخ کې د بند اچولو په څیر وې. د کندې په پلونو د هندوانو کتارونه تړلی وو او مسلمانانو داسې احساسوله چې د سومنات خاوری نوی پوځ زیږولی دی . د لمر لویدو په مهال مسلمانان د ختیځ اوشمال دروازو په لور ورټولیدل، چې د ماښام تیارې خپرې شوې، نو سلطان پوځ ته د شاته تلو امر وکړ او مسلمانان په منظم ډول جنګیدل او بهر ته وتل.

.....

د شپې د شوری له پنګیدو وروسته سلطان په خپله خیمه کې قدم واهه، دهغه په څیره کې د اندیښنې او دوه زړه توب نښې وې د پوځ یو منصبدار خیمې ته ورننوت او له سلام وروسته یې په ادب وویل

عالیمقامه! سلمان غواړی ستا په خدمت کې حاضر شي

- راوبې غواړه!

افسر بیا سلام وکړ او له خیمې څخه ووت، څو شیبې وروسته سلمان خیمې ته ورننوت، سلطان د هغه سلام ته ځواب وویل او د سترې مشی لپاره یې لاس ور وړاندې کړ او وې ویل:

زه ستا په انتظار یم، ووایه څه خبر دې راوړی؟

سلمان ځواب ورکړ:

د دښمن ۱۲ نویو بیړیو چې ما پرون د هغو خبر درکړې وُ سومنات ته نژدې لنگر اچولی دی، دلمر لویدو نه وروسته ما خپله کیښتۍ د دوی له کیښتیو سره د دښمن د سمندری بیړۍ شاته راوستله، تر اوسه پوری دښمن له موږ نه خبر نه دی، که دوی تر سهاره له موږ نه خبر نه شي، نو زه به یې ډیرې کیښتۍ تباه کړم، د سرتیرو نه علاوه د هغو کیښتیو مانوگان هم د سومنات په درمسال کې راټول شوی دي او ماته ددوی د څو بیړیو نیول هم گران نه دي. زه به هغه وخت حمله وکړم چې جگړه وروستي پړاو ته رسیدلې وي، د سمندر پرغاړه د دښمن په سلگوتو کښتی ولاړې دي، زموږ وروستۍ هڅه باید دا وی چې دښمن له دغو کیښتیو څخه کار وانه خلي.

سلطان ځواب ورکړ: ما ددې بندوبست کړی دی. زما د سپرو تازه نفسه ډلگۍ به د سمندر پر څنډه ددښمن کیښتۍ تعقیبوي. لوږه او تنده به زړ دښمن له سمندر څخه راوتلو ته مجبور کړي.

سلمان وویل: که دښمن له څنډی څخه مایوس شي. بنایی په شاوخوا ټاپوگانو کې د پناه اخستلو هڅه وکړي. خو زما امید دی چې په هغو ټاپوگانو کې د پوځ پلی کولو لپاره تاته څو بیړۍ تیارې کړای شم. اوس ماته اجازه راکړئ، زه باید خپلې کیښتۍ ته د رسیدو لپاره یوه اوږده دوره ووهم.

سلطان وویل:

زه ستا د بری لپاره دُعا کوم، سبا ته به ان شاء الله دسومنات په درمسال کې سره گورو، خدای دې مل شه.

له خیمې څخه څو گامه لرې یو سرتیری د آس جلب نیولی ولاړ وُ، سلمان پر آس سپور شو او پونده یې کړ. لږ ځنډ وروسته هغه د سمندر څنډې ته ورسید. له آس څخه پلی شو او په یوه کیښتۍ کې سپور شو او د لویو بیړیو په لور وخوځید.

• • • • •

سبا ته تر ماسپښین پورې مسلمانانو بیا کلا ونیوله او د کلا او درمسال د انګړ تر منځ د خندق تر څنګ سخته جګړه روانه وه . د کندې پر غاړه د هندوانو لیکې د دیوال په څیر ولاړې وې، د مسلمانانو د پرلپسې یرغلونو په سبب هغوی درنه مرګ ژوبله زغمله، خو د دغو زیانونو د پوره کولو لپاره له دوی سره د انسانانو کمی نه ؤ. له درمسال څخه به د سترګو په رپ کې د دوی تازه نفسه ډلګۍ راښکاره شوې او له پله څخه به راپورې وتلې او په لیکو کې به یې تش ځایونه بیرته ډک کړل.

سلطان خپل پوځ ته د شاته تلو امر وکړ، هندوانو دا خپل بری وباله او دخوښیو نارې یې اوچتې کړې، وړاندې راغلل، چې پراخ ډګر ته راووتل، مسلمانانو ځوابی حمله پرې وکړه، هغوی صفونه په ډلګیو وویشل او پر هندوانو ورپریوتل، ددې وضعې سره د مقابلې لپاره هندوانو هم خپل صفونه په څو ډلو وویشل. ناڅاپه د مسلمانانو د کیڼ اړخ دلګیو دښمن پر شا وتمباوه او یوه د لرګی پله ته نژدې شول. هندوان وارخطا شول او د کندې په لور وتښتیدل. خو مسلمانانو دوی ته د بیا سمبالیدو فرصت ورنه کړ. د ډیرې ګډوډۍ په حالت کې د هندوانو وروستۍ هڅه دا وه چې مسلمانان د کندې له پلونو څخه لرې ایسار کړي. خو د سلطان د کیڼ اړخ ډلو یو پل ونیو. هندوان د پاتې دوو نورو پلونو له لارې د درمسال په لور وتښتیدل . یو ساعت وروسته د کندې درې واړه پلونه د مسلمانانو په لاس کې وو. او د دوی څو ډلې د کندې بلې غاړې ته رسیدلی وې.

پاتې پوځ د کلا په انګړ کې د دښمن د پاتې سرتیرو په له منځه وړو بوخت ؤ.

په درمسال کې د کفر او اسلام جګړه وروستي پړاو ته رسیدلې وه. د هندوانو ډلې د سومنات د بُت په مخکې په دُعا بوختې وې او بیا به یې په نوی جوش او احساساتو پر مسلمانانو حمله وکړه، په بهر مانیو او دهلیزونو کې د مړیو له انبارونو جوړولو وروسته مسلمانان هغه پراخه انګړ ته ورننوتل چې د لوړې درجې پنډتانو او خدمتګارانو مانۍ پکې وې. دلته په زرګونو

هندوان سر په لاس کې مرګ ته چمتو ولاړ وو. مسلمانانو د پرله پسې حملو نه وروسته هغوی په یوه لوری شاتګ ته اړ کړل.

هندوانو تازه نفسه ګروپونه د شاوخوا ماڼیو له پاسنیو پوړونو څخه راښکته شول او دخپلو ملګریو د ملاتړ لپاره راټولیدل، خو مسلمانانو ورو ورو انګړ ونیو، په نیم ساعت کې جګړه کې په انګړ کې په زرګونو انسانان پرېوتل او هندوانوپه شاوخوا ماڼیو کې پناه واخستله.

.....

د ورځې په دریمه برخه کې د درمسال شاوخوا کې مسلمانانو زیاتې ماڼۍ نیولې وې. هندوان د درمسال په منځ کې دهغې خونې د ژغورنې په فکر کې وو چې د سومنات بُت پکې دریدلې و، د هغې خونې درې لوریو ته ډیرې پراخې کوټې د سرتیریو نه ډکې وې. مسلمانانو پر هغو کوټو څو حملې وروړې، خو هندوانو پرې نښودل چې پښې یې ټینګې شي. له دغو کوټو څخه لاندې سمڅو ته زینې ښکته شوې وې. هندی پوځیان به له دې سمڅو څخه راوتل او د وژل شوی اویا ټپی ملګری ځای به یې ډکاوه. د پرلپسی یرغلونو نه وروسته مسلمانانو یوه کوټه ونیوه. خو تر دې دمخه هغه اوسپنیزه دروازه چې د منځ کوټې ته ورغلی وه. بنده شوې وه. د مسلمانانو څو تنه سرتیری ایستلی توری د دځمکې لاندې خونو په زینو کې ودریدل او پاتې نورو د اوسپنیزی دروازې د ماتولو هڅه وکړه . دروازه له څو جټکو وروسته ماته شوه او له دې سره د منځ له کوټې څخه د هندوانو یوه نوی حمله راغله. دواړه لوری په یوه تنګ محاذ کې سره مخ شول، کله به هندوانو مسلمانان شاته وتمبول اوله کوټې به یې وایستل، کله به مسلمانان د منځ د کوټې دروازې ته ورسیدل ، په دې لاس په لاس جګړه کې مسلمانانو د تورو پر ځای خنجر کارول، دسومنات د درمسال مذهبي مشر د سومنات په مخ کې دریدلې و او چیغې یې وهلې.

میړنیو ! همت وکړئ، د دښمن د تباهۍ وخت رارسیدلی دی. زموږ دیوتا د مسلمانانو د سوځولو نه وړاندې ستاسو د غیرت ازموینښت کوي. نن به هغه میړني نیغ ابدي ژوند ګټي چې پر ټېر مخامخ ګوزار وخوري.

او هندوانو په وروستیو شیبو کې د کومې معجزې د پېښېدو هیله درلوده او له سره تیریدل

خو د یوې توندې حملې نه وروسته څو تنه د منځ کوټې ته ننوتل . هندوانو هڅه کوله چې هغوی په شا وتمبوی ، په دې کې مسلمانانو له یوه بل لوری څخه هم یوه بله کوټه ونیوله او د منځ کوټې ته خلاصیدونکی بله دروازه یې هم ماته کړه، هغوی د الله اکبر نارې وهلې او پر هندوانو ورپریوتل.

اوس د هندوانو بې شمیره پوځیان چې د کوږونو پر بامونو لاندې په سمڅو کې وو، د منځ کوټې د هغې پراخې دروازې مخې ته راټولیدل چې د سمندر په لور خلاصیدله. لږ څنډ وروسته د سمندر له غاړې سره په اوږده دالان کې هم د پښې ایښودلو ځای نه و. د سومنات د بُت په شاوخوا کې درنده جګړه نښتې وه، د سمندر پر غاړه چې هندوان را ټولیدل . هغوی د ننه د جګړې ډګر ته د ننوتلو لپاره یو له بل څخه د مخکې کیدو سیالي کوله.

سلطان محمود پر منځنۍ کوټه د حملې کوونکیو غازیانو سره و. هغه چې وضعه وڅیړله، په لوړ غږ یې وویل:

د سمندر په لور ولاړ شئ! بری نږدې دی. د سترګو په رپ کې د لښکر سالارانو خپلو ډلو ته د سلطان حُکم ورساوه او لږ څنډ وروسته د مسلمانانو ډلې د شمال او جنوب څخه راوګرځیدل او پر هغه پراخه دالان یې حمله پیل کړه. هلته په منځنۍ کوټه کې مجاهدینو یوه زوروره حمله وکړه او هندوان یې شه ووژل ، څه یې تر پښو لاندې کړل او نور یې د دالان په لور په شا وتمبول . هندوانو ځوابي حمله وکړه او د خپل دیوتا پالنځي ته یې د رسیدو هڅه وکړه. خو مسلمانان د دوی په مخکې د اوسپینیز دیوال په څیر ودریدل.

د سمندر پر غاړه په پراخه دالان کې د سومنات وروستۍ جګړه پیل شوې وه ، د درمسال دمنځ دکوټې په له لاسه ورکولو دهندوانو مورال ولوید او چیغو یې د دیوتاګانو پر بې وسۍ اعتراف کاوه.

په سمندر کې په سلګونو کېښتۍ دریدلې وې او هندوان چې د مسلمانانو له حملو څخه ګډوډ او وارخطا شول په تیښته یې ځانونه کېښتیو ته رسول او پکې سپریدل. له څنډې څخه لږ لرې د سومنات په جګړه کې د برخه والو راجه ګانو او لویو راجه ګانو لویې بیړۍ ښکاریدلې.

د کیښتیو مانوګانو ناڅاپه په یوه لویه بیړۍ کې د اور لمبې ولېدې اوشور او زوږ یې ګډ کړ، چې د هندوانو په پاتې پوځ کې هم له دې سره ویره او ګډوډي خپره شوه.

دوی چیغې وهلې او په منډه په کیښتیو کې سپریدل، په زرګونو سرتیریو چې په کښتیو کې ځای پیدا نکړای شو په سمندر کې یې ټوپونه وهل.

لږ ځنډ وروسته په کیښتیو کې سپاره او تښتیدونکی هندوان له یوې بلې اندیښنې سره مخ شول، کوم نامعلوم دښمن درې نورو لویو کیښتیو ته اور اچولی ؤ او پنځه لویې کیښتۍ چې اوس ددوی د راجه ګانو د بیرغونو پرځای د مسلمانانو هلالی بیرغونه پرې رپیدل. له ځنډی څخه لرې کیدلې.

د سوځیدونکیو کیښتیولمه شا څخه یوه بله چې د مسلمانانو بیرغ پرې ټینګ و ښکاره شوه او ښی او کیڼ لور ته یې په نورو کیښتیو د اور ګولۍ اورولې. بوې خواته ووتله. د سترګو په رپ کې د دوو نور کیښتیو بادبانونه هم د اور په لمبو کې راونغښتل. په دې ځنډ کې ډیرې وړوکی کیښتۍ لویو بیړیو ته نژدې رسیدلې وې. پاتې نورو بې له ځنډه د شمال او جنوب په لور مخه کړه.

په درمسال کې پاتې پوځ چې د تیښتې لاره بنده ولیده. وسله یې وغورځوله. راجه ګان د درمسال پالونکی او سرداران لاس په نامه د سلطان محمود په مخکې دریدلې وو. د درمسال په ساره او اوږدو کې د هندوانو پنځوس زره مړی شاوخوا پراته وو، د مذهبی مشر درک معلوم نه و، د سلطان سرتیرو چې د هغه ماڼی تلاشی کړه، په سلګونو خدمتګاری یې ترې راویستلې،د یوې خدمتګارې له خولې معلومه شوه چې پیشوا د درمسال له دیوی سره په یو کوټه کې ورك شو. هغه کوټه بیا ولټول شو. خو هلته هیڅوك هم نه وو. کله چې سرتیری بهر ته راوتل. هغوی د چا د زګیروی غږ واورید، یوه سرتیری د یوې او بلې خواته له لیدو وروسته کوټې په یوه دیوال غوږ کېښود او بیا یې ناڅاپه خپلو ملګریو ته وکتل ویې ویل.

د دې دیوال شاته څوك زګیروی کوي. ښه یې وګوری ښایی دلته کومه غلې دروازه وي.

بیا یې چت ته اشاره وکړه ویې ویل:
هغه زنځیر راکش کړئ. بل سرتیري له چت څخه راځوړند زنځیر راکش کړ چې ورو ورو په دیوال کې یو چاك پیدا شو.
د غلا دروازه خلاصه شوه او سرتیري په بېړه د شا تنګې کوټې ته ورننوتل. د سومنات د مذهبي پیشوا بدن په وینو کې لت پت پروت و، هغه ته نژدې د درمسال دیوي چې په سینه کې یې خنجر ښخ ؤ خپلې وروستۍ ساه ګانې پوره کولې. هغې په کمزورې غږ وویل:
اوس زه له چا نه ویریږم، ما پیشوا وواژه. د هغه همدا سزا وه. کاشکي دی ما په هغه شپه وژلی وای او دغه درمسال مې له تباهی نه ژغورلې وای.
ستاسو پاچا چیرته دی؟ هغه ډیر ناوخته راغی. هغه باید ډیر د وخته راغلی وای.
یوه نوی مسلمان شوی هندی د هغې خبرې خپلو نورو ملګریو ته ژباړلې. هغوی د بوې راپورته کړه او بهر ته بې راوړه. په خلاص انګړ کې یې څملوله. یو سرتیري د شاهي طبیب د راوستلو لپاره منډه واخسته. خو د درمسال دیوي د طبیب له رارسیدو د مخه د عمر سفر پای ته رسولې و.

. . . .

رام نات په یوه تنګه او تیاره پنجره کې پروت و. د سومنات د جګړې په مهال د هغه درد او غم ډیر زیات شو. په لومړي ورځ یې د خپلې کوټې پر دیوال غوږ کیښود د سومنات د سرتیرو چیغې یې اوریدلې. کله به چې له دروازې بهر د کوم پهره دار د پښو غږ واورید نو چیغې به یې کړې:
د بګوان لپاره ماته ووایی بهر څه لوبه روانه ده، څه خبره ده. آیا د مسلمانانو پوځ راغلی دی؟
آیا هغوی پر درمسال حمله کړې ده؟
خو هیچا هم دهغه چیغو او فریاد ته پام نه کاوه. سبا ته د "سومنات دې ژوندی وي" د نارو په ځواب کې "الله اکبر" نارو ده په زړه کې د خوښی ټکانونه راوېښول. بیا چې کله د شپې مهال د درمسال ساتونکیو د خوښی چیغې اوچتې کړې، ده د امیدونو ډیوې مړې شوې.

کله چې په درمسال کې پریکنده جګړه پیل شوه، نو د رام نات په زړه کې د ژوند نوی ولولې په غورځنګ شوې، د جګړې په پای کې چې د ناقوس او زنګونو له غړونو سره د سومنات د پالونکیو احساساتي ناري هم چوپې شوې، نو ده ته د جګړې د پایلې اټکل ګران نه ؤ. خو له هغې وروسته هره شیبه زیاتیدونکې چوپتیا دده د صبر کاسه ډکه کړې وه، آیا مسلمانان له بري وروسته بیرته خوځیدلي دي؟

آیا د دوی څخه د چا په زړه کې دا راګرځي چې په دې تیار پنجره کې یو مظلوم انسان ددوی د راتلو لاره څاري؟ که هغوی زه همدلته پرېښودم او ولاړل ، نو څه به کړي؟

تر ډیره یې پردې پوښتنوله چرتونو وروسته یو ځل په زوره زوره چیغې کړې:

مسلمانانو! ما دلته مه پرېږدئ، ما ډیره موده ستاسو د راتلو انتظار کاوه. ما په ژړا ژړا کې ستاسو د برې دعاګانې کړې دي، خو شاوخوا دده د غږ اوریدونکی څوك نه ؤ. تر لږ ځنډه یې د خپلې کوټې دروازه په لغتو ووهله او بیا پرمخې پر غولې پریوتو او دعاګانې یې کولې:

د مسلمانانو خدایه! زه ستا پر رښتینولی ایمان راوړم. زه ستا پناه غواړم. زما مرسته وکړه. ته زما وروستی تکیه یې، په دې تیاره کوټه کې نور زما ساه بندیږي . زه له مرګه وړاندې یوازې یوځل ستا د لمر ځلا ستا د سپوږمۍ رڼا . ستا دستورو سترګکونه او ستا د ګلانو موسکاګانې لیدل غواړم.

غواړم په خلاصه هوا کې ساه واخلم.

د سیندونو پر غاړو او د غرونو په څوکو ستا د عظمت سندرې اورول غواړم، د مسلمانانو خدایه! زما خدایه او دټولو دنیا خدایه زما مرسته وکړه.

د دعا له پای ته رسولو وروسته رام نات تر لږ ځنډه چوپ او آرام پروت ؤ. ناڅاپه یې بهر د څو کسانو دپښو ترپهار واورید، بیا چا وویل:

بادارہ! رام نات په دې کوټې کې دی!

چا په آمرانه لهجه وویل.

ډیر ښه ! دروازه خلاصه کړه زر کوه!

بیا رام نات د دروازې د کولپ خلاصولو او د درانه زنځیر شرنګا واوریده چې وروسته چا د دروازې پلې خلاصې کړې. د رام نات په مخکې د بندي خانې د دوو ساتونکو او د سلطان د پوځ دځو مشال لرونکیو سرتیرو په منځ کې یوسف او عبدالواحد ولاړ وو.

رام نات چیغې کړې رنبیره، رنبیره! بیا له کوټې ووت او له هغه سره غاړه غړی شو، بیا یې په سلګیو کې وویل:

رنبیره راغلې! زما باور و چې خدای به مې مرسته کوي، دخدای لپاره راته ووایه روپ وتي چیرته ده؟

یوسف وویل:

روپ وتي زموږ په کور کې ستا انتظار کوي.

د یوې شېبې لپاره رام نات د خوښیو په اووم آسمان کې و، عبدالواحد ته یې وکتل او ویې ویل:

آیا دا رښتیا ده؟

عبدالواحد هغه ته غبږ ورکړه او ویې ویل:

هوکی دا رښتیا ده. نو زه له دې جیل ځخه له راوتو د مخه دا اعلان کوم چې زه مسلمان شوې یم.

عبدالواحد خپلو سرتیرو او د جیلخانې ساتونکیو ته امر وکړ چې ددې جیل ټولې کوټې ولټوی او بندیان یې خوشې کړئ.

* * * *

د مازدیګر تر لمانځه وروسته سلطان محمود هغې پراخې کوټې ته ورننوت چې د سومنات لوی بُت پکې دریدلې و، ددې بُت شاو خوا ته بې شمیره وړوکی بُتان هم وو. د سلطان په امر یې هغه ټول بُتان مات کړل، خو کله چې د لوی بُت وار راغی، نو هندی راجه ګان او پالونکی د سلطان پر پښو ور پریوتل، هغوی په ژړغونې غږ زاری وکړې چې که دغه بُت پریږدې، تومونږ به یې د وزن په اندازه سره زر درکړو.

د سلطان خیره له غوسې تکه سره وخوټیده او ځواب یې ورکړ:

زه غواړم چې بُت پلور نه، بُت ماتوونکی یاد شم.

سلطان بیا په دواړو لاسو یو دروند ګرز اوچت کړ، په فضا کې د سومنات پالونکیو کړیګی پورته شوې او له دې سره د ډېرې خو توتې[١] یوې او بلې خواته تیت شوې، سرتېریو د سلطان په خیر پر بُت ګوزارونه وکړل، او په پُرله پسې ګوزارونو یې د بُت بنه ویجاړه کړه، بیا یې د سلطان په امر د بُت شاوخوا خس راتول کړل او اور یې اور واچاوه.[٢]

له درمسال څخه چې کوم د غنیمت مال مسلمانانو ته په لاس ورغي، هغه د دوه ملیارډه دیناره[٣] په ارزښت و، تردې وروسته سلطان د خپلې قرار ګاه لور ته روان شو.

---

١- د ځینو روایاتو له مخې د بُت منځ تش وو او چې کله یې مات کړ، نو ډېر قیمتي جواهرات او غمې ترې راووتل ، دغه مال ترهغو څو چند زیات وو چې هندوانو د بُت په بدل کې ورکاوه.

٢- دغه بُت له چونې څخه جوړ شوې وو چې په اور زره زره شو ، د ځینو روایتونو له مخې سلطان ددې څو توتې غزني ته ورسره یوړې.

٣- د ځینو روایتونو له مخې دا مال یواځې د سلطان برخه وه او دا د غنیمت د ټول مال پنځمه برخه کیده.

# له جګړې وروسته

د شپې مهال چې مسلمانانو قرارګاه "پړاو" ته نژدې د شهيدانو مړي ښخول، رام نات او نرملا په يوه خيمه کې ناست وو او خبرې يې کولې، رام نات چې خپله کيسه نرملا ته وکړه، نو بيا هغې ورته وويل چې زه هم مسلمانه شوې يم او يوسف ماته د نرملا پر ځای سعيده نوم غوره کړی دي.

رام نات وويل:

زه د خپلې بنديخانې د دروازې له خلاصيدو څخه مخکې مسلمان شوی وم، ما خپل لومړی لمونځ په هماغه انسان پسې ادا کړی دی چې په دې هيواد کې يې دکفر تر ټولو ستره کلا ړنګه کړې ده. خو ماته تر اوسه خپل نوی نوم نه دی معلوم شوی.

نر ملا وويل:

وروره ماته د ډيرو مسلمانانو نومونه معلوم دي، ته له هغو نه کوم يو خوښ کړه.

ښه راته ووايه:

نرملا څو نومونه ورته واخستل، رام نات له لږ سوج وروسته وويل:

زما خو عثمان خوښ دی.

نرملا وويل : وروره ما تر اوسه تاته يو زيری نه دی اورولی.

- دڅه شي زيری؟

- يوسف راته وويل چې روپ وتي هم مسلمانه شوې ده او دهغې ډير ښه نوم دی ، خو زما په ياد پاتې نه شو.

تر لږ څنډه دواړه چوپ شول، بيا رام نات وويل: ډيرځنډ يې وکړ، هغه تراوسه رانه غی.

نرملا وویل: تاته خوب درځي؟
دهغه خیمه ښی لاس ته ده، بهر به یې نوکر ولاړ وي، ته هلته ورشه.
رام نات جګ شو ویې ویل:
ماته نن ډیره موده وروسته خوب راغی.
لږ ځنډ وروسته رام نات د یوسف په خیمه کې په نیم خوب حالت کې و چې د یوسف غږ یې واورید، رام نات ویده شوی دی؟
هغه ځواب ورکړ:
زه همدا اوس پریوتم.
یوسف وویل: ښه ده ویده شه او بیا د خیمې په بل کونج کې هغه وغځید.
رام نات له لږ ځنډ وروسته وویل:
رنبیره!... وبخښه تراوسه دې نوی نوم زما په ژبه نه راجوړیږي، زه له تا دا پوښتنه کوم چې د روپ وتي نوی نوم څه شی دي؟
- آیا نرملا درته وویل چې روپ وتی مسلمانه شوې ده؟
هوکي، خو د هغې یې نوم په یاد نه و.
-روپ وتی نوی نوم طاهره دی.
رام نات په زړه کې طاهره، طاهره! تکرار اوه او په همدې کې ویده شو.
سبا چې رام نات له درانه خوب راویښ شو، عبدالواحد. یوسف او سعیده نژدې ورته ولاړ وو. رام نات جګ شو سترګې یې و مښلې او ویې پوښتل:
سهار شوی دی!
یوسف ځواب ورکړ:
اوس ماسپښین کیدونکی دی، ته ډیر درونډ ویده وې.
- زما له ډیرې مودې وروسته داسې خوب په نصیب و.
یوسف وویل: ځکه خو ما مناسبه ونه بلله چې راویښ دې کړم.
اوس خو لمر ډیر لوړ راغلی دی، په بیړه ځان سفر ته تیاروه، ستا ملګری انتظار کوي.
رام نات وویل:
موږ نن روانیږو؟
- ته نن روانیږې او سعیده هم درسره ځي.

موږ به له دې ځایه تر کنټ کوټه له سلطان سره څو.

رام نات د حیرانتیا او خوښۍ له ګډو احساساتو سره یوسف ته وکتل.

عبدالواحد وویل:

زموږ یو نیم زر تنه سرتیري له تاسو سره ځي.

لږ ځنډ وروسته چې رام نات له دوی سره بهر راووت، نو له ډېرې مودې راسې یې د لمر نه لیدو په سبب سترګې یووړې د پوځ سرتیري خوځېدو ته تیار وو، رام نات او سعیده "نرملا" پر آسونو سپاره شول او له هغوی سره وخوځېدل.

.....

د سومنات درمسال له مړیو ډک و. په بوینه هوای کې کجیران او کارغان ګرځېدل. سلطان له کلا څخه څو میله لرې د سمندر پر غاړه پړاو واچاوه، د لښکر په سلګونو سرتیري د سومنات په جګړه کې ټپیان شوي وو، هغوی څو ورځې آرام ته اړتیا ردلوده. سلطان دلته نژدې دوې هفتې تال شو، په دې موده کې د اسلام د مُبلغینو په زیار د شاوخوا په زرګونو تنه هندوان مسلمان شول. پنځلسمه ورځ سلطان محمود له هغه ځایه وخوځېد.

د سومنات د تباهۍ د خبرله اورېدو سره د کاټیاواړ په ګاونډیو ریاستونو کې غم او خپګان خپور شو. هغه راجه ګان او سرداران چې د سلطان محمود د ګړندي یرغل په وجه د سومنات جګړې ته را ونه رسیدل، د "آبو" د راجه "پریم دیوا" تر قوماندې لاندې راټول شول اولږ لرې د ایرادلی د غونډیو په منځ کې یې د سلطان د لښکر دلارې نیولو لپاره تیاری ونیوه. د سلطان لپاره تر ټولو مهمه مسئله د هغو سلګونو ټپیانو ساتنه وه چې تر اوسه پورې هیڅ په جګړه کې د ګډون وړ نه وو، له دې پرته هغه بیا پر هغې سترې او ویروونکې دښتې تیریدل ضروري نه بلل، ځکه خو یې خپله مخه زیاته د لویدیځ ساحل لوری ته وه.

یوه ورځ د سلطان لښکر داسې ځای ته ووت چې په میلونو میلونو اوبه وې، سلطان د "آبو" د راجه له تیاریو څخه خبر و. هغه په دې سیمه کې د بندیدو نه وروسته له شا څخه د دښمن د برید خطر احساس کړ او خپل آس یې پر اوبو ورګډ کړ، پر سلطان پسې پوځ تر زنګنو پر اوبو ورګډ شو، مخ پر

ځوړ ددې سيمې پراخې د سلطان له اټکل څخه څو چنده زياته وه، د سرتيرو آسونه کله تر زنګنو او کله تر غاړو پورې په اوبو کې ډوبيدل کله به يې مخې ته د ريګونو وړوکې ټاپوګان وليدل، نو داسې به يې ګڼله چې څنډه را نږدې شوې ده، خو تر لږ ځايه پر وچه له تلو وروسته به يې بيا چې څومره سترګو ځار کولې شواى اوبه به يې ليدلې.

کومو غازيانو چې سومنات لورى ته د سفر په وخت کې ويروونکى دښته ليدلې وه، هغوى اوس آسونه په اوبو کې ورګډ کړې وو، دا د هغو ميړنيو يو بل ازموينت و چې د هند ځمکې ته د يوه نوى سهار له پيغام سره راغلې وو، دهغوى ارادې لوړې او حوصلې يې نه ماتيدونکى وې.

د دوو ورځوله زغم نه وتلى صبر څخه وروسته د سلطان لښکر، وچې ته ووت، د بې شميره مصيبتونو سره سره په لښکر برسيره د آذوقې او نورو شيانو بار دوه لکه آسونه او اوښان روغ رمټ پورې غاړې ته رسول. له يوې معجزې څخه کم نه وو.

له دې وروسته سلطان د کنټ کوټ لورې ته مخه کړه. راجه بهيم ديو چې د سلطان د راتلو خبر واوريد، وتښتيدل او سلطان له څه جنجال پرته کنټ کوټ ونيو. هلته سلطان دوې ورځې پاتې شو. دريمه ورځ سهار له لمانځه وروسته عبدالواحد او دهغه ملګري له سلطان څخه خداى پامانى ته چمتو ولاړ وو.

د رخصتيدو په مهال سلطان يو پر بل پسې عبدالواحد . يوسف او نورو نويو مسلمان شويو سردارانو ته وويل:

ما خپله ژمنه ترسره کړه، په دې هيواد کې د ظلم او ستم تر ټولو لويه کلا ړنګه شوې ده، خو ستاسو برخه ډير کار لاپاتې دى.

عبدالواحده، يوسفه! زه ستاسو په سترګو کې اوښکې وينم، تاسو بايد زما په بيرته تلو مايوس نه شئ، د ژوند پر جاده زما وروستى منزل را نږدې شوى دى، امکان لري موږ يو بل بيا ونه وينو. خو هغه ستر آرمان تل ژوندى دى چې د بشپړيدو لپاره يې خداى موږ ټاکلي وو. د الله په لار کې رښتيا هغه کسان تر موږ وړاندې وو چې د سومنات تر ديوال لاندې شهيدان شول. تاسو خوانان د هغو ونو ميوه ياست چې نوموړکو غازيانو په خپلو وينو خړوب کړې

دي، هغوی د ظلم، تیري، کفر او ستم برجونه نړولي دي، خو دهغو پر ځای د یوه نوي عمارت جوړول ستاسو کار دي.

زه له دې باور سره بیرته ستنیږم چې تاسو به هغه دیوې هیڅکله مړې کیدو ته پرې نږدئ چې شهیدانو په خپلو وینو بلې کړي دي، تاسو به دحق او رښتینولی هغه بیرغ هیڅکله هم نسکوریدو ته پرې نږدئ چې دالله په لار کې جهاد کوونکیو پورته کړی دي، خدای مو مل شه".

سلطان پر آس سپور شو او لښکر روان شو(!) ، لږ ځنډ وروسته عبدالواحد او د هغه ملګریو د هغې قافلې وروستی نخښې لیدلې چې امیر یې تر دیرش کلونه د ژوند پر واټ بریو بیرغونه رپولي وو.

.....

طاهره " روپ وتي" د ماڼۍ په یوه کوټه کې د مازدیګر له لمانځه وروسته لاس په دُعا ناسته وه چې د زبیدې غږ یې واورید: طاهرې، طاهرې!

څه دې خورې!

طاهرې دعُا پای ته ورسوله او دروازې لورې ته یې مخ واړاوه.

زبیدې دننه وروکتل او ویې ویل: طاهرې هغه راغی ! د یوې شیبې لپاره د ژوند ټول حواس د طاهرې په سترګو کې راټول شول. زبیدې شاته دهلیز ته وکتل او چاته یې وویل: راځئ تاسو ولې پښه ونیوله

طاهره جګه شوه ، د دروازې په لور ورغله ، خو پښې یې لړزیدلې. عثمان " رام نات" له دروازې څخه راښکاره شو. څو شیبې دواړه یو د بل مخې ته چوپ ولاړ وو، شونډې یې رپیدلې، او په سترګو کې یې اوښکې ځلیدلې. زبیده یوې خواته شوه ، عثمان کوټې ته ورننوت ، د احساساتو له زوره یې سترګې پټې کړې ویې ویل: زما روپا ، زما طاهرې ، زما ژونده! طاهره شاته ولاړه او بیا ناڅاپه مخامخ پر قبله پرسجده پرېوته. هغې سلګۍ وهلې او عثمان چوپ او بې حرکته ورته ولاړ و، کله چې راپورته شوه، مخ یې په اوښکو لوند و ، خو پر شونډو یې موسکاګانې نڅیدلې، هغې وویل:

رام ناته زه مسلمانه شوې یم.

- زه خبر یم، ما هم اسلام منلی دی.

- یوسف ورور چیرته دی؟

- هغه به څو ورځې وروسته راشي، ستا يوه خورلنه راسره راغلې ده.
هغه څوك ده؟
- سعيده.
- سعيده څوك ده؟
د نرملا ديوي نوم دی.
-نرملا ، زما خور، زما مرستندويه ، هغه چيرته ده؟ طاهرې،دا وويل او بيا د دهليز په لور ولاړه له بلې کوټې نه زبيدې پرې غږ وکړ:
طاهرې! نرملا دلته ده، هغه زر کوټې ته ورننوته او بې اختياره وړاندې ورغله او له نرملا سره غاړه غړې شوه.

.....

د سومنات د جګړې درې مياشتې تيرې شوې وې. په دې موده کې د سعيدې واده له يوسف او د طاهرې له عثمان سره وشو، د يوسف خور زبيده له عبدالواحد سره قنوج ته تللې وه.
يوه ورځ يوسف ته د عبدالواحد دغه احوال راغی چې زر خان قنوج ته راورسوي، د استازی نه چې يوسف وپوښتل چې څه خبره ده؟ ورته څرګنده شوه چې عبدالواحد نورو زياتو د نفوذ خاوندانو سردارانو ته هم بلنه ورکړې ده ، يوسف او عثمان له همدې استازي سره روان شول، او دريمه ورځ ماسپښين مهال قنوج ته ورسيدل. کله چې دوی د عبدالواحد هستوګنځي ته ورسيدل ورته معلومه شوه چې هغه يې په خپل دفتر کې دی، عثمان يې په ميلمستون کې پريښود . يوسف خپلې خور ته ورغی او ترلږ څنده يې له هغې سره خبرې او روغبړ وکړ، بيايې عثمان ورسره ملګری کړ او د عبدالواحد دفتر ته ورغلل، يوسف او عثمان له سترې مشي وروسته هغه ته مخامخ پر کرسيو کيناستل، عبدالوحد له يوسف څخه وپوښتل:
تاسو کورته تللي وی او دلته راغلې؟
هوکې! زبيدې ماته د انديښنې وړ خبر زاکړ، آيا تا رښتيا هم د قنوج د پريښودو اراده کړې ده؟
عبدالواحد وموسکل خواب يې ورکړ: هوکې!
نو د څه لپاره،آيا لوی سلطان ستا د کار څخه دلته ډاډه نه دی؟

عبدالواحد ځواب ورکړ:
ما پخپله له سلطان څخه وغوښتل چې نور رخصت راکړې، زه غواړم خپل وطن ته ولاړ شم، هلته ماته زياته اړتيا ده، ما خپل پاتې ژوند د اسلام د تبليغ لپاره وقف کړی دی ، دا ځمکه نور د خدای جل جلاله د دين لپاره تياره شوې ده، دلته زما د آرمان د بشپړولو لپاره هغه فقير صفته انسانان رارسيدلي دي چې په تېر کې يې د ايمان نور دی ، اوس د زړونو د فتحې وار پاتی دی او ددې مقصد د ترلاسه کولو لپاره د هغوخلکو نظر له تورو څخه زيات اغيزمن دی، خو د نګرکوټ په څير لرې سيمو کې هم له داسې خلکو ته اړتيا ده چې داسلام تبليغ يې د خپل ژوند هدف وي. زه په هغه ښار کې د خدای جل جلاله د وحدانيت او برابری ناره اوچتول غواړم چې د "توری ديوي" په مخکې د انسانانو قربانی ورکوي، زه د هغو خوړونو پر غاړه غواړم آذانونه وکړم چې د آشا چيغې مې ترې اوريدلې، زه داسې احساسوم چې په زرګونو انسانان هلته زما انتظار کوي.
يوسف وويل:
دلته به ستا پر ځای څوک وي؟
عبدالواحد ځواب ورکړ: دلته داسې خلک شته چې ترما غوره کار کولی شی او سلطان له هغوی څخه يو د قنوج نوی واکمن غوره کړی دي. زه هم له هغه څخه ډاډه يم . زما باور دی چې دقنوج مسلمان او نامسلمان رعيت به يې هرکلی وکړي
- هغه څوک دی"؟
عبدالواحد ځواب ورکړ:
زه به بل سبا ته په يوه عامه غونډه کې د هغه نوم اعلان کړم.
يوسف وويل: که ستاسو څه اعتراض نه وي، نو زه يې د نامه پوښتنه کولی شم؟
ډير ښه . زه تاسو ته وايم، خو لومړی وعده راسره وکړئ چې تاسو به يې تاييد کوئ.
تاسو پوهيږې چې د کومې پريکړې ته تاييد وکړي، زه به يې په سر سترګو منم.

عبدالواحد وموسکل ، د یوسف پر ځیره یې سترګې ښخې کړې او ویې ویل:
د قنوج نوی حاکم اوس زما په مخ کې ناست دی او نوم یې یوسف دی.
یوسف واخطا غوندې جګ شو ویې ویل:
نه نه ، زه ددې ور نه یم.
عبدالواحد د مېز له سره یو لیك راپورته کړ، جګ شو، هغه یې یوسف ته وړاندې کړ او ویې ویل: دا د سلطان فرمان دی ما دهغه په پوښتنه هغه ته دیوه داسې چا نوم وړاندې کړی چې زما په نظر ډېر غوره دی، زما باور دی چې ته به ما مایوس نه کړې.
کینه یوسفه!
یوسف کیناست د عبدالواحد پر ټینګار هغه په رېږدیدلیو لاسونو لیك پرانیست او په سترګو کې یې اوښکې وځلیدې، د لیك له لوستلو وروسته یې عبدالواحد ته وکتل، ویې ویل:
تا زما پر اوږو ډېر دروند پیټی کېښود.
عبدالواحد ځواب ورکړ:
ستا اوږې د یوه غره بوج اوچتولی شي.

* * * * *

دریمه ورځ د قنوج سرداران، د ښار اوسیدونکي او د ګاونډیو ریاستونو سفیران د کلا په پراخه انګړ کې راټول شوې وو او عبدالواحد دهغوی په مخکې وینا کوله:
" ورونو او دوستانو! ما تاسو ددې لپاره دلته راټول کړی یاست چې دا خبر درته واورم چې زه له خپلې دندې څخه ګوښه شوی یم، ما له لوی سلطان څخه غوښتنه وکړه چې غواړم خپل وطن ته ولاړ شم، هغه زما دا غوښتنه ومنله، له تلو څخه وړاندې تاسو ته زما وروستی پیغام دا دی چې اوس زموږ په هیواد کې دتاریخ یو نوی باب پیل شویدي، له شمال څخه چې کومې وریځې راغلې وې هغو واورول، اوس له دې څخه ګټه پورته کول زموږ کار دي. سلطان محمود چې خدای جل جلاله د کوم هدف لپاره غوره کړې و، هغه پوره شوی دی. هغه نظام چې د انسانانو په منځ کې یې د کرکې او نفرت دېوالونه

درولی وو او یو انسان یې لوړ ذات او بل یې ټیټ کړي و ماته خوړلې ده . هغه تهذیب چې ددې هیواد د لوړ ذاتو انسانانو ته یې د ټیټ ذاتو انسانانو . هډونو د عشرت ځایونو جوړولو اجازه ورکړې وه د یوه داسې تهذیب له لاسه مات شوی دی چې هدف یې د انسانانو په منځ کې د رنګ او نسل توپیرونه او بریدونه ماتول دي.

محمود غزنوی دې هیواد ته د یوه نوی سهار د لمر په څیر راغی، دی د هغو میلیونونو انسانانو دکریږو ځواب و چې د ظلم او تیري تر میچن لاندې یې شپې تیرولې. اوس د هغو بتانو طلسم مات شوی دي، چې انسانان میږو او لېوانو په ډلو ویشي، اوس په دې هیواد کې ددغه نوي تهذیب د سیلاب مخه هیڅوك نشی نیولی چې دهغې په رڼا کې انسان د خپلې وینې پرځای پر کړو وړو پیژندل کیږي.

ددې هیواد اوسیدونکیو!

زه تاسو ته خبرداری درکوم چې هغه انسانان چې د نورو انسانانو پر وینو ژوند کوی تاسو به ددې تهذیب پر خلاف راولمسوی . هغوی به هیڅکله هم داونه غواړی چې د دغه هیواد بې وسه او نادار انسانان ددوی له بوج څخه خلاص شی. دوی به تاسو دهغو بتانو پښو ته په سر ټیټولو مجبوروی چې دوی ته برتری ورکوي. خو په یاد ولرئ!

د انسانانو په لاس جوړ شوی بتان به د انسانانو په لاس ماتیږي. که هغوی د کوم نوي سومنات لپاره کلا جوړه کړي. خدای به کوم بل محمود ورته راواستوي.

د قنوج سردارانو او نورو ګاونډیو سردارانو رئیسانو له موږ سره دا وعده کړې ده چې دوی به د اسلام د تبلیغ په لار کې هیڅ خنډ نه شي، زه له دې ډاډ سره له دې ځایه ځم چې ددې ژمنې مخالفت به نه کیږي، که نه نو له شمال څخه به یو بل توپان راپورته شي چې تر لومړنی به ډیر توند وي.

خپلو نویو مسلمان شویو وروڼو ته زه یوازې دومره وایم چې ستاسو د ژوند ارمان چې څومره لوړ دي، همدومره ستاسو مسؤولیتونه درانه دي، په دې هیواد کې د اسلام د رڼا د خپرولو لپاره دبې دریغه زیار او بی دریغه

قربانيو ضرورت دی، ستاسو د ملت شهيدانو ددې هيواد ځمکه پر خپلو وينو خړوب کړه، اوس پکې يوه نوی تخم کرل ستاسو کار دی.

په پای کې زه غواړم دا ووايم چې ما د قنوج د واکمن په توګه تر خپله وسه ددې هڅه وکړه چې د اسلام پابند واوسم، ما قصداً له کوم مسلمان سره بې ځايه رعايت او له کوم نامسلمان سره بې سببه تيری نه دی کړی، خو پردې برسيره که له مانه کوم چاته څه خپګان رسيدلی وي، د زړه له اخلاصه ترې بخښنه غواړم.

اوس زه خپله وروستۍ ذمه واری ترسره کوم.

تاسو به زما د جانشين د نوم اوريدو ته ناکراره وې، لوی سلطان زما پر ځای يوسف ستاسو نوی حاکم ټاکلی دی، ستاسو څخه زيات کسان به هغه د رنبير په نامه پيژني، زه پخپله دې ستاسو لپاره ددې ذمه واری تر ټولو اهل او مناسب سړی بولم، دا مې دُعا ده چې هغه ستاسې غوره دوست او مخلص خدمتګار وې او زه د قيامت په ورځ د خدای په مخکې شرميدلی نه وم. اوس زه ستاسوله نوې حاکم څخه غوښتنه کوم چې خپلې کرسۍ ته تشريف راوړي".

يوسف جګ شو، کرسی ته نژدې ورغی، تر لږ ځنډه يې کښې ګوښې ته وکتل، بيا يې په ريږديدلی غږ ووېل:

ورونو! زه يوازې تاسو ته دا ويل غواړم چې ماته يې يوه ډيره لويه ذمه واري راسپارلې ده، زه ژمنه کوم چې په پوره نيك نيت به خپل فرض ترسره کوم. زه به په دې هيواد کې د عدل او برابرۍ اوچت شوی بيرغ نسکوريدو ته پرې نږدم، هغه کسان چې د انسانيت شعار لوړ غواړي، له ما څخه مايوس نشي او هغه کسان چې د انسانيت دښمن دی د هغوی به ما تاسو تر ټولو ړومبی دښمن ووينی، ما ته د هر هغه چا د مرستې اړتيا ده چې غواړي قنوج د امن زانګو شي، زه نور اوس تر دې زيات څه ويل نه غواړم".

* * * * *

سبا ته له ښار څخه بهر په زرګونو تنه له عبدالواحد سره د مخه ښې لپاره راټول شوی وو، پنځوس زره ځوانان چې د ننګر کوټ اوسيدونکی و، له عبدالواحد سره تلو ته تيار وو، زبيده هم له خپل خاوند سره نژدې په آس سپره وه او يوسف يې آس تر جلب نيولی ولاړ و.

زبيدې په ژړه غونې غږ ووېل:
وروره! ته خو به ما هيروې نه؟
د يوسف په سترګو کې اوښکې ډنډ شوې، ځواب يې ورکړ:
ليونۍ! زه تا کله هيرولی شم.
هغې ووېل: ما تر تلو دمخه له ورينداري سره ونه ليدل، وعده راسره وکړه چې له هغې سره يو ځای نګر کوټ ته راشې.
زه وعده کوم. موږ به لږ تر لږه په کال کې يوځل خامخا تاسو ته درځو.
بيا زبيدې عثمان ته وکتل او ويې ويل:
تاسو او طاهره خور زموږ ځای ته راځئ؟
عثمان ځواب ورکړ:
خورې!خامخا به درځو، موږ به ډير زر ګواليار ته ولاړ شو. له هغه ځايه به ستا د ليدو لپاره نګر کوټ ته درشو.
تاسو ګواليار ته د څه لپاره ځئ له ورور سره دلته نه پاتې کيږئ؟
نه اوس زه هم غواړم خپل وطن ته ولاړ شم.
هلته به زما هم د ژوند هدف اسلام ته بلنه وي.
عبدالواحد د خدای پامانی لپاره لاس ور وغځول او ويې ويل:
نور موږ ته اجازه راکړئ!
يوسف او عثمان يو پر بل پسې لاس ورکړ او عبدالواحد کاروان ته د کوچ امر وکړ.
لږ ځنډ وروسته يوسف او عثمان په يوه لوړه ځمکه دريدلي وو او د کاروان وروستۍ ځلکا يې ليدله، ددوی په سترګو کې اوښکې ځليدلې.
يوسف ورو ورو دا الفاظ تکرارول:
خدای دې مل شه زما ملګريه، زما وروره، زما مرستندويه او زما لارښوونکيه خدای دې مل شه. [۴]

---

[٤] - د کچ له سيمې څخه چې سلطان تير شو، په يوه بل مصيبت واوښت، د ځينو روايتونو له مخې يوه بُت پال چې له مسلمانانو څخه يې د کسات اخستلو سوګند کړی و، د سلطان خدمت ته حاضر شو او سلطان ته يې وړانديز وکړ چې لاره به وروښيي.



←

د سلطان لښکر د دې سرې په لاړښوونه یوې داسې دښتې ته ورسید چې د اوبو نوم او نښه پکې نه وه. سلطان له هغه څخه پلټنه وکړه، معلومه شوه چې د سومنات پالونکی دی او قصدی یې مسلمانان په غلطه لاره راوستی دي، چې بیا د سلطان په امر د هغه ورمیږ ورباندې غوڅ شو. لښکر څو ورځې په دې لاره کې له ډول ډول مصیبتونو سره لاس او ګریوان شو. بالآخره بې خپل پوخ وژغوره او سند ته راووت. په لاره کې سلطان په منصوره یرغل وکړ. د منصورې حاکم له ښار څخه وتښتید او د خُرماوو په یوه ځنګل کې یې پناه واخسته. د سلطان پوځ ځنګل کلابند کړ، دهغه ډیر ملګری یې ووژل، له دې وروسته سلطان د سند د دریاب پر څنډه سفر ته دوام ورکړ. په دې سیمو کې د جټانو جګړه مارو قبیلو د سلطان لښکر ته زیات تاوان ورساوه، دغه خلك به ناڅاپی د بوټیو او ونو له منځه راووتل او د آذوقې پر کاروان به یې برید وکړ او بیرته به وتښتیدل، بالآخره سلطان په ۱۰۲۶ میلادی کال د اپریل په ۲ مه غزنی ته ورسید.

راتلونکی کال د مارچ په میاشت کې سلطان د جټانو قبیلو ته د سزا لپاره د ملتان په لور راوخوځید، ملتان ته نژدې یې د دریاب پر غاړه واړول او ۱۴ سوه داسې کیښتی یې تیارې کړې چې ښې او کیڼ، مخې او شاته یې په څوکو اوږده د اوسپنې سیخونه لګیدلې وو، په هره کیښتۍ کې شل شل تنه سرتیری له لیندۍ، غشیو، ډالونو او اورنیو ګولیو سره سپاره وو. جټان په څلورو زرو کیښتیو کې د مسلمانانو د مقابلې لپاره راغلل، خو سلطان یوه له عبرته ډك ماته ورکړه. جټان له دریاب څخه ووتل او د تیښتې هڅه یې وکړه، خو په دواړو غاړو ترکمن سپاره او پر پیلانو سپاره غشې ویشتونکی دوی ته په مورچلو کې ناست وو. له جګړې وروسته د جټانو په زرګونو مړی په سیند کې بهیدل او په زرګونو نور پر څنډه خواره واره پراته وو، له دې جګړې وروسته سلطان ته بیا د هندوستان راتګ نصیب نه و.

